# له ښاغلی جمهور رئیس سره دفنلنډی ژورنالیستی مرکه

۲۴ر۱۲ر۵۵

دجمهور رئیس ښاغلی محمد داود دغه مرکی متن چه په کابل کی د۱۳۵۵ کال دکب په ۲٤ نیټه له فنلند ی ژورنالیستی میرمن ایرماسوی نیوسره شوی ده .

لمړی ښاغلی جمهوررئیس وویل : دفنلند نه تاسی لومړی ژورنالیستی میرمنی سره دکتنوله امله خوشحاله یم .

میرمن سوی نیو. داچی ښا غلی جمهور رئیس ماته وخت راکړ دمطبوعاتی مرکی دپاره ددوی حضورته ورسیږم ډیره خوشحاله یم. دوه کاله پخوادښاغلی یوکوهاواپه نامه یوه‌بل فنلندی ژورنالیست هم له تاسو جناب سره مرکه کړی وه اوله ماڅخه یی وغوښتل دهغه تاوده سلامونه ستاسو خدمت ته ورسوم .

پوښتنه : هیله لرم دځپلی سوانح او بیوگرافی په باب یوڅه مطالب ووایاست ؟

ځواب : کوچنی ماشوم وم، ځوان شوم دسپاهی گری شغل می وټاکه اومنصبدارشوم وروسته بیاوزیراوپه پای کی می دافغانستان دصدراعظم په توگه دځپل هیواد دپاره خدمت وکړ اودادی اوس چی په‌کوم کاربوخت یم، البته تاسی‌یی په ځپله وینیء خووطن ته دخدمت په‌ټوله‌موده‌کی زمایوازینی لاربنوونکی دیوه هیواد اودافغانستان خلکوته خدمت‌کول اوددغی خاوری دځمکی دتمامیت دساتنی‌دپاره خدمت کول دی .

پوښتنه : زه په (۱۹۷۳)کی هم افغانستان ته راغلی وم له هغه وخت څخه تراوسه‌پوری زیات اوښتون وینم خونه پوهیږم چی دغه اوښتون یوازی ظاهری دی اویاپه رښتیا ژوروالی اوحقیقت لری نوپه دغه باره کی دښاغلی جمهوررئیس نظرڅه دی ؟

ځواب : که ووایم ډیرکارونه سرته‌رسیدلی مبالغه ده اوکه چیری ووایم هیڅ‌کار ندی‌شوی البته سمه نده هغه څه‌چه تراوسه پوری یی عملا تحقق موندلی دی اوزموږ دوستان یی وینی هغه پرمختگونه دی چی داوسنیوامکاناتو په چوکاټ‌کی شوی دی . په تیرودری نیمو کلونوکی‌دکورنی امنیت‌اوثبات تامین اقتصادی اوټولنیز ریفورمونه اوله بهرنیو هیوادو سره دافغانستان په اړیکوکی دنژدی والی پیدا کیدل اودسیمی له هیوادوسره د مناسبات ښه والی زمادحکومت له اساسی اقداماتوڅخه بلل کیږی زموږ داهدافونوله جملی څخه اوس اوس دهیواد اقتصادی او ټولنیزی پرمختیاته تحقق ورکول دی او داکار امکان نلری مگرداچی په دغه لاره کی ددولت‌اقدامات په معقوله توگه پلانیزه شی .

زمونږ زيات وخت دنوی اوه‌کلن پرمختيائی پلان په ترتيب اوتدوين تيرشو .

ترڅوچی دتطبيق دپاره چمتوشو. ددغه پلان عملی کيدل د۱۳۵۵ کال له سرخخه پيل شويدی دغه پلان په خپله زمونږ په منابعواو ددوستو هيوادو په مرسته تمويليږی . البته دپلان پرمختگ ستونزی نلری زمونږ ستره ستونزه ددريمی نړۍ دزياترو هيوادو په شان دکدرونواوفنی اواداری پرسونل کموالی دی چه بايد گرارگرار وروزل شی اوپه خدمت وگمارل شی .

په نوی پلان کی پدغه برخه کی پوره‌پاملرنه شويده اواميدلرم دا دارتياوړ پرسونل په راتولونکی وخت کی دهيوادله پرمختيا سره برابراو دارتياوپه نظرکی نيولو سره لاسته راشی .

پوښتنه : مهربانی وکړی د۱۳۵۲ کال دانقلاب دليلونه بيان کړی څه‌عوامل اونقايص پدغه تاريخی قيام کی ستاسو انگيزه شول ؟

ځواب : هغه علتونه چی زه يی انقلاب ته راوبللم پخوادافغانستان دجمهوريت په لمړی اعلاميه اونوروويناووکی په تفصيل‌سره ويل شوی دی همدغه رازيوه مياشت مخکښی دافغانستان په لويه جرگه کی هم دچنگابن د۲٦ انقلاب دليلونه په ډاگه بيان شويدی تاسی کولی شی ددغواعلاميو اووينااو متن ته په مراجعه کولوسره لازم معلومات تر لاسه کړیء .

پوښتنه : هيله لرم له پاکستان سره دافغانستان دمناسباتو په باب نظر ځرگند کړیء ؟

ځواب : له بهرنيو ژورناليستانوسره زماپه تيرومرکوکی پدغه باره‌کی دافغانستان دريځ پوره‌ ځرگندگړی شويدی .

سره ددی هم غواړم لنډه يادونه وکړم چی له پاکستان سره زمونږ يواځنی پرابلم زمونږ دپښتنواوبلوڅو ورونو دحقه حقوقو تأمين دی اوهمدغی مسئلی چه تراوسه پوری نده حل شوی ددواړو هيوادو په روابطو باندی ناوړه اغيزه کړی ده .

مونږ له پاکستان سره يواځی يوسياسی اختلاف لرو اوزمونږ ترمنځ بل اختلاف نشته دکابل اواسلام آباد په کتوونکی چی ددواړو هيوادودمشرانوترمنځ وشوی مونږوکولی شول په‌ښه توگه يودبل په‌دريځونوباندی وپوهيږو ددواړه خواوخبری گټوری اودوستانه وی او اميدی يوه ورځ ددغی لانجی په شرافتمندانه حل باندی بريالی شوکه څه هم دحل دغه لاره تراوسه پوری لاس ته نده راغلی خو يوه ورځ ممکنه ده پدی بريالی شو چی خپله ستونزه ليری کړو .

خواوس اوس په پاکستان کی حالات‌داسی دی چی حقيقتانه پوهيږوددواړو هيوادو په راتلونکوروابطوبه څه اغيزه ولری .

پوښتنه : لکه څنگه چی ليدل کيږی په افغانستان گی زيات شميرهندوان ژوند کوی آياستاسی په هيوادگی دمذهبی اقليتونو دزړه ساتنه گيږی ؟

ځواب : له نیکه مرغه دغه ساتنه داسلامی دیانت له منل شوی اصول څخه بلل کیږی اوزموږددین جزدی هندوان له پیړیو پیړیو راهیسی په افغانستان کی اوسیږی اوزموږ دهیواد داتباعو له جملی څخه دی دغه رازپه افغانستان کی سکهه خلك هم میشته د ی دهیڅ مذهبی اقلیت په وړاندی توپیر نشته زموږ په هیوادکی هرڅوك چی د افغانستـان تابعیت ولری زموږ په نزدافغان بلل‌کیږی .

پوښتنه : دافغانستان دجمهوریت اساسی قانون څه وخت نافذیږی ؟

ځواب : نوی اساسی قانون همـدا اوس نافذدی څکه لومړی دافغانستان دلوی جرګی له خواتصویب شو اووروسته له هغه چـی دهیواد جمهوررئیس وټاکل شو جمهور رئیس توشیح کړی اودهغه انفاذ اعلام شویدی نو قانونی اواجرائی قدرت لری .

پوښتنه : په افغانستان کی راتلونکـــی انتخابات څه وخت کیږی ؟

ځواب : داساسی قانون له مخی راتلونکی جمهوررئیس به له شپږوکلونو وروسته وټاکل شی خودملی جرګی داستازو دټاکلو د پـاره انتخابات څه‌کم دری کـــاله وروسته کیږی اوراتلونکی حکومت به دانتقالی دوری پـــه اوږدوکی چی څه کم دری‌کالـــه به وی لازم قوانین برابر اوترتطبیق لاندی ونیسی .

پوښتنه : جناب جمهور رئیس دفنلنددملت دپاره څه پیغام لریء ؟

ځواب: ډیربه‌خوشحاله شم چی‌دفنلندزړوراو میړنی ملت دپاره خپل تاوده سلامونه ورسوم که څه هم دجغرافیی له نظره زموږ هیوادونه یوله بل څخه لیری پراته دی خود فنلنـــد تحولات اوپرمختیاوی موتل په دقت ســـره لیدلی دی مونږډیرښه پوهیږوچی دفنلندمیړنی اووطن پال ملت دخپلی خپلواکی اودځمکی دتمامیت دساتنی په لاره‌کښی زیاتی فداکاری کړیدی زه دزړه له‌کومی دفنلنـــد د ملـــت دهوساینی اونیك مرغی . اوترقی د پـــاره خپلی هیلی څرګندوم .

میرمن سوی نیوداچی ښاغلی جمهور رئیس له درندو مصروفیتونوسره سره اجازه راکړه دغه مرکه وشی دزړه له‌کومی مننه کوم .

# و ښاغلي نوي کال په مناسبت

۱ر۱ر۱۳۵٦

دوطن دنیکمرغی ، اولوړتیا په امیــد . تاسی ټولو وطنوالو خویندو اووروڼو ته دزړه له کومی دنوی کال مبارکی وایـم او هیلـه لرم چه نوی کال د نعمتونود زیاتوالی کال دنیکمرغی کال او د وروروولی او برابری کال او دافغـانستان نجیـب ملـت تـه دمهمـو پرمختګونو کال وی .

پدغه ښه وخت کی چه مونږ دخپلـــو نیکونو په دود دنوروز نمانځه ګوو لازمــه بولم چه یوځل بیاتیر وخت ته وګورو او دخپلو کړواونه کړ ونتیجی وسنجوو.

زما په عقیده ۱۳۵۵ کال دافغا نستـان دخلکو د پاره ډیر حساس کال ؤ په دغه کال کښی لوی‌خدای دافغا نستان ملت او دولت ته توفیق ورکړچه دخپل نوی ژونـد لومړنی پړاوچه د امنیت او دجمهوری‌نظام ورځ په‌ورځ زیاتیدونکی ټینګښت ؤ په بری سره تیرکړی اویو ډیر نوی پړاو تـــه ورسیږی .

تیرکال چه دافغان نجیب ملت له‌برمه‌ډک تاریخ کی‌به بی‌له شکه په‌غښو تورو ولیکـل شی زمونږخلکو اوهیوادو ته له عظمت نه‌ډک او دوران جوړونکی کال ؤ پدغه کـال کـی په‌هغو یولړ ډیر و مهمو اوبنیادی ګامونو سر بیره چه داقتصادی ، ټولنیزی سیاسی او فرهنګی پرمختیاپه لاره کښی واخستـل شول یوشمیر ډیر مهم قوانین تدوین‌اونافذ شول چه هریوبه په خپل ذات کی دقانون د حکومت په ټینګښت او دټولنیز عدالت په تامین‌کی مهمه اغیزه ولری. دغه رازداجتماعی ژوند په بیلا بیلو برخوکی یولړ ګټــــور پروژی بشپړی شـــوی او داستفـــادی وړ وګر ځیدلی اوهم د اقتصادی او ټولنیـــزی پرمختیا داوه کلن پلان د تطبیق‌کارچه پـــه یقینی ډول دټولنیز پر مختـګ لـه پـــاره ټینګ اودوامدار بنسټ دی پیل شو .

دتیرکال ډیره مهمه پیښه دجمهـــوری دولت دلومړی لوییجرګی جوړیدل ؤچه په هغی‌کی د افغانستان میړنی‌ملت د افغانستان د جمهوری اساسی قانون په مسوده باندی دنظر او قضاوت دڅرګندولو په غــرض پــه پوره دیموکـراتیکــو او آزادو شرایطو کــی خپل استازی وټاکل اوله غور اوخبرو او په هغی‌کی دځینو مندرجه موادو د تعدیـل نــه وروسته یــی دغه مسوده چی دافغـانستان ملی ، مترقی او تاریخی وثیقه ده‌تصویب کړه .

اوس چه دجمهوری دولت اساســـــی قانون نافذ اواعلام شویدی لوی او ستـــر خدای دی مونږټولوته‌توفیق راپه برخه کړی او پدی ستره او تاریخی ازموینه کی‌مونـږ په خپل حضور او د افغانستان دخلکـو او تاریخ په وړاندی بریالی اوکامیاب کړی .

گرانو خویندو او ورونو !

هغه کال چه په مخکی مودی ډیر گران اوله نویو مسؤلیتونو څخه ډک کـال دی داسی کال د ی‌چه‌باید ستومانی هیره کړو زمونږ پرو گرامونه پراخ دی مونږ له بل هرڅه‌زیات‌د خپل‌ملی شخصیت‌بیا جوړ ولـو دهماغه جوهرجوړ ولو ته‌چه د نجات،یووالی او پیاوړ تیا یوازنی عامل دی اړیو د دغه مقصدله پاره مونږ‌دافغانستان ملـت دملـی او وگړنی انقلاب د تیوری تسوید او تدوین ته ضرورت لرواوباید دغه‌کار دټولنی دتکامل دقانون پربنسټ زمونږ دخلکـو د ټولنیـز شعور ددرجی سره سم وشی مونږ بـا یـد ټول یالږ ترلږه زیاتره خلك په عملی‌ډول دخپل هیواد دودانی عملی ته ورسوو هغـه کال چه‌په مخکی مودی بایدقدم په قـدم دخپلی ټولنی‌او ملت د طبیعت دپیژند لوله لاری دافغانستان د انقلاب تیـوری تشخیص کړو اوپه تطبیق کی‌یی هڅه وکړو .

د دغو ټولو پیښو اومهمو وقایعو ا وپراخ پروگرام په وړاندی زماهیله داده چه باید د جمهوری نظام‌بنسټونه په رښتیا هم‌دقانون له‌مخی ټینگ شی څکه دیوانسانی نظم اویو رښتیانی او واقعی دیموکراسی د ټینگښـت له‌پاره دابس ندی‌چه زمونږ قوانین یـوازی دکاغذ پرمخ یادمترقی او انسانی الفاظولـه مخی‌وی بلکه باید دغه ترقی زمونږ په عمل اوکارکی څرگنده اوښکاره وی که چیری یوه ضابطه یاقانونی حکم دخلکو په ژوندکی‌یوه لاره خلاصه نکړی په‌واقعیت کی به دکاغذ‌په مخ دکرښو څخه زیات‌څه نه‌وی .

گرانو وطنوالو !

یوه ملت هغه وخت کولی‌شی یوټولنیـز انقلاب دتکامل پړاوته ورسوی چه د هغـه زیات خلك په اساسی توگه د انقلاب حقیقی هدفونو په‌باب خبراوپه هغه پوهیدلی وی. پدی پیری کی چه له بل هروخت نه زیات د دیموکراسی خبری کیږی په هماغه انـدازه یی حقیقی او رښتیانی تعبیر ،تفسیراوتطبیق خړپړ شویدی څکه داسی نظام له‌دی به تیر شوچه کیږ دی اوکه ښی لږلیدل کیږی چـه د دیمو کراسی‌دعوا ونکړی اوځان دیموکرات اومترقی ونه‌بولی‌له دی خبری څخه‌معلومیږی چی انسانی ټولنیزی تیوری گانی دنوروټولو شیانو په شان ابدی او ثابتی نشی پاتـی کیدی اوزمانی له مخی دمحیطی پوهی سویه دایدیالوژی طرزدټولنی لوړی گټی او ډیـر نورعوامل تعبیر او تفسیر کیږی .

جمهوری دولت دهیواد دنیکمرغی له پاره دپرنسیب اوپاکلی لاری اوچال چلندپه توگه دیوی معقولی او رښتیانی دیمو کراسـی د ټینگولو څخه پرته بله لارنه وینی .ددغـه رازیو ټولنیز حالت اصلی بنسټ بایددخلکو د حقوقو پوره تامین اودملی حاکمیت اصل‌ته احترام وبولوچه باید دغو دوو اصلونو ته په ښکاره یاپه پټه زیان ونه‌رسیږی .

دودی په حال‌کی یوی ټولنی له‌پاره چـه په‌ډیره خواشینی سره د ډیرو دلایلوله‌مخی دتمدن له‌کاروان‌نه‌بیرته‌پاتی‌شوی اوباید کیدل په ډیره هڅه خپل‌دغه بیرته پاتی کیـدل

تلافی کړی دغه راز سپیخلی هدف تەرسیدل ساده او آسان کارندی په هرصورت باید تصمیم ونیول شیچه پەکار پیلوکړ و اودغه سختنه لارپړاوپه پړاو ووهو .

په بشری ټولنوکی پرته له دیچه په کومه سویه دی او دکوم نظام لاندیژوندکوی امکان نلری په ښکاره یاپه پټه دبیلا بیلو ډرگنوتر مینځ توپیر اوتضادونه په طبیعی توگه موجود نەوی.

تراوسه پوری په عملی توگه هیڅ ډول ایډیالوژی په رښتیانی ډول اوپه حقیقیمعنی ددغی ستونزی او تشی په لری کولو ندی بریالی شوی باید زیاتەکړوچه په قهر آمیزه ډول د دغو تضاد ونو حلنه یوازی نشی کولی د دغی بشری ستونزی اساسلریکړی بلکه بر خلافدیوی ټولنی دډرگنو تر مینځ دکرکی ،بدبینیاونفاق حس زیاتوی خپله کول پیداکوی اوپه نتیجه کی انسانیکرامت ته احترام په عملی ډول بی مفهومه کوی.

دیموکراسی په اساس کی آزادی، ورورولی اوبرابری ده خوپه هیڅ ډول بایددیموکراسی ازارشی ،خپل سری ځان ځانی توپیر، درز اچول او ورانکاری تعبیر او تفسیر نکړواوله هغه نەدملی یووالی امنیت او گټوپه ضد ناجایزه گټه وانخستل شی له دیموکراسی نه مقصد دادی چه ملت دهغو قوانینو او اساساتو چه په خپله یيوضع کړی دخپل هیواد په سرنوشت کی د اختیار خاوند اوهر وگړی یی له ځان سره مصئو نیست احساس کړی .

زه له ټولوهیوادپالونه په ټینگه او دزړه له کومیغواړم چه په عملی او ورځنیژوندنه کیږ قوانینو د ترویج او تامین سمی لاری زده کړی اوپه صادقانه ډول هڅه وکړی چه د اساسی قانوناودهغه دنور وبشپړونکو قوانینو دمحتویاتو لەلاری دملی او مترقی ایدیالوژی داساساتو په لارەکی ددی خاوری دبی برخی اکثریت ډیره لږ او ډیره زیاته ستونزه حل کړی .

برسیره پردی پدی برخەکی زما خبری په خاصډول د دولت اوحکومت اراکینو تەهم متوجه دی .

دلوړی لەمراسمونه وروسته دکابینی په اوړی غونډه کیپه خپل منځ کیمی پەډیر دوستانه او صمیمانه ډول هغه څه چیباید دیو مسؤل شخص په توگه او دهغیلوړی لەمخی چی دافغانستان دملت د نمایندگانو په وړاندی میکړی او دهغی محتویات د جمهوری دولت د اساسی قانون او د هیواد دنورو قوانینو او مقرراتوته پوره احترام او دچنگابس د (۲٦) انقلاب دهدفونو احترام او پیروی ده چی دهغه اساسی اولنەی کرښی وخت پەوخت څرگندی شوی دی او د ملی انقلاب دگوند اساساتو باندی دپابندی له مخی چی تفصیل بەیی په راتلونکی وخت کی اعلام شیپەیونوی دوره کی پەکارباندی دبیل نه مخکی هریوه ملگری تەمی پەډیر روښان اوڅرگند ډول توضیح کړیدی ماخپلو ملگروته وویل چی مونږ دخپلی ټولنی دعینی او ذهنی شرایطو سره سم دهیڅ مترقی

سلوك له‌منلو نه وړه نه‌کوو خوهر ټولنیز انقلاب ته اقتصادی ، ټولنیز سیاسی او تخنیکی ټاکلی شرطونه لازم دی چی له‌هغو پرته هدف ته نشورسیدلی اوهم می زیاته کړیده چی باید زمونږ تحلیلونه زمونږ دتاریخی مشخص حالت نه جلانه وی مونږ په پټوسترګو دهیڅ ډول لیاری او دودتقلید ونکړو .

د افغانستان جمهوری انقلاب په داسی اصولو ولاړ دی چی افغانستان دټولنی له‌تل او زمونږ دټولنی له تجربو څخه مینځ ته راغلی دی .

افغانستان داسی هیواد دی چی پخوانی اوستر تاریخ اوخپل‌خاص دو دونه، فرهنګ او مشخصات اری. دی ټولو زمونږ دټولنی دربنتیانیو اوعینی شرایطو څخه سر چینه اخیستی ده ،څکه یوملی جنبش ترهغه‌وخته پوری چی په خپله ددی خاوری د زامنو دافکارو او عقیدونه سرچینه وانخلی ندی بریالی شوی اونه‌به شی‌لکه څنګ، چی مونږ او تاسو ټول پری پوهیږو دهیواد د تاریخ پاڼی ددی ګواهی ور کوی. دخلکو اکثریت ته خدمت دافغانستان د انقلابی جمهوریت شعار دی اوپه نظر اوعمل کی دټولوتیوریو یووالی دافغانستان د خلکو اکثریت ته د خدمت لپاره دی .

هغه‌توك چی مونږته خاص اهمیت او ارزښت لری اومونږ د انقلاب او دجمهوری نظام اصلی او اساسی هدف دی دخپلواکی او ملی حاکمیت ساتنه ، دنیکمرغی تامین او زمونږ دخلکو اکثریت ته خدمت دی‌نسبه یو خاص شمیر ته .

ماهغه څه‌چی‌ویل می‌وویل‌ټول په دوستانه لوورورولی په فضاکی له ټولو همکارانوا نه می بی استثنا هیله وکړه چی دوجدان لرونکو ورونو او برابرو ملګرو په توګه په قلبی صمیمیت نه‌په ظاهری ډول یواځی بل سره‌په لوی خدای باندی په‌ایمان، وطن او وطنوالوته د خدمت لپاره او دهیواد دویری ژرلو ړتیا اوپر مختګ په‌غرض په پوره تقوا اوپاکی دزړه له‌کومی څه چی مو‌په وس‌کښی وی‌هغه وکړو او دخپلوملی سپیځلو وظیفو دسرته رسولو په لاره کی هیڅ ډول ستومانی په ځان کی احساس نه کړو دخپل ګران‌وطن افغانستان دسر لوړی او نیکمرغی په لاره‌کی ټول خپل ځان لکه په‌یوه بیړی کی دیسوی سربښندونکی ډلی په شان داسی بیړی چی زمونږ وطن دی وبولو دخپل هر ملګری بد نامی‌اوناکامی دخپل هیواد بدنامی اوپاتی کیدل وبولو دهغوی ښه نوم اوبریا لیتوب خپل وبولو او د ورور ولی او ګوندپه‌همدی ستره روحیه په ربښتیا هم دیوه ربښتیانی متحد ټیم په توګه له ځانه تیرویدو نکی او فداکار دلوی خدای په‌فضل پرمخ لاړشو .

ماملګروته زیاته کړه بله مهمه وظیفه به داوی چی هغه تیاره پردی چی له‌کلونو کلونو راهیسی د دولت اوملت تر مینځ دفاسدو ماموریڼو او مرتجعو استفاده کونکو اوافراطی عناصر ولخوا پیدا شویدی یوپه بل پسی لری او د دغو دواړو ترمیڅ مستقیم تماس

پیدا کړوچی خلك په رښتیا سره دولـت اوګوند ته نژدی شی اوپدغه ډول دخپل‌ملی یووالی په ټینګښت کی اساسی ګام واخلی البته داهغه وخت کیدی شی‌چی غروراوځان ځانی او دخلکو په مقابل کـی شخصیات او کرکجن حالت له ځان څخه لری‌کړو اوتـل اوله هره پلوه‌په عمل ئوکارکی ایمان‌لرونکی اوباتقوا اووطن پال او رښتیانی وطندوستان انسانان واو سونه په وړیناکی اوپه خپلـه دنورو لپاره مثال‌اونمونه شو .

دادی دیو افغان مسلمان او انقلابی میړه حقیقی صفت او داداسی لاره چـی کـولـی شی مونږ داوی خدای په مهربانی دمقصـد پړاوته چی دهیواد داوړتیا اوخلکوته دخدمت نه‌پرته بل‌شی ندی ورسوی. له‌هغو ټـولـو کسانونه چی له ماسره همکاردی زما هیله او ارزوهمداوه .

ماپه خپل وارځه چی ویلی دی په هغـه ټینګ ولاړیم او دژوند تر وروستی، ګړی به د افغا نستان د جمهوری اساسی اصولـــو پیروی وکړم او ترهغی ورځی پوری چـــی مسئولیت لرم پری‌به نږدم چی عدالت‌دقدرت دخاوندانو دلوبو وسیله او دیوبـل د زور زیاتی ډګرشی .

د افغا نستان جمهوریت تر ټولو زیـات د افغانستان دزیار کښو او محروم اکثریت جمهوریت دی ترهغه وخته پوری چی توپیر نابرابری او تفاوتونه پوره له مینځه لاړنشی زه‌به هیڅ ډول زیاروته سپموم .

باید مونږ داوی کال راتګ یوازی دزمانی ساده بدلون اوتحول ونه بولو زماپه نظـــر نوروز دهغو سترو هیلودنوی کیدو اومیوی نیولو پړاودی چی یوه ورځ زمونږ دتاریخی ستونزو علاج وکړی او د افغا نستان‌له‌ملت نه یوه سرلوړی نیکمرغی او دپرمختګ او ترقی په‌ره‌وز باندی پوه ملت جوړوی .

په پای کی دلوی خدای له دربار څـخه د افغانستان د ملت او پښتنو او بلوڅـــو نجیبو خلکو او داسلامی نړی دنورو ملتونو اونړیوالو دپاره دنیکمرغی ،سولی اوټولنیزی ترقی هیله کوم .

و من الله التوفیق

# دجمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد مطبوعاتي سرکه

۲۱ر۱ر۵۶

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد دده۱۳۵۵ کال دوری په ۲۱ نیټه دمطبوعاتوله داخلي نماینده ګانوسره په یوه مرکه کی دعامه ذهنیت په روښانه ولو او د ۱۳۵۲ کال د چنګابښ د ۲۶ ملي او مترقي انقلاب هدفونو په تحقق کی د ژور نالستانو دنقش ټینګار وکړ.

ښاغلي جمهور رئیس دغرمي د مخه په لسو بجو د مطبوعاتو نمایندګان په داسي حال کی چه‌داطلاعاتو او کلتور وزیرپوهاند ډاکټر زوین‌حاضر و ،دمرکی‌دپاره دجمهوری ریاست په ماڼۍ کی ومنل .

لومړی د اطلاعاتو او کلتور وزیر وویل: دډیری خوښۍ ځای دی چی دجمهوریت‌مؤسسس دمطبوعاتو نمایندګان ومنل اووخت یی ورکړ هغه پوښتنی چی په عامه ذهنونو کی شته مطرح کړی ، اوپدی توګه دخلکو دافکارو په روښانتیا کی خدمت وکړی شی اوله دولت‌سره د خلکو په‌نژدی کولوکی اغیزمن رول سرته ورسوی .

پدی کی شك نشته دغه مرکه چی دلومړی جمهور رئیس په توګه دښاغلی محمد داؤد له پاکل کیدو اود هیواد د اساسی قانون له نافذیدو وروسته په‌خپل ډول کی‌لومړی مرکه ده،دعامه‌اطلاعاتو دوسایلو دلاری دعامه ذهنونودروښانتیادپاره ښه پیل بلل کیږی .

وروسته بیا ښاغلی محمد داؤد د هیواد مطبوعاتوله نمایندګانو سره ، دګتنی اومرکی له امله د خوښی د څرګندولوپه ترڅ کی وویل:

زه هم عقیده لرم‌چی مطبوعاتی مرکی‌دناوړو تفاهمونو په لیری کولو او دعامه ذهنیت په روښانتیا کی مهم رول لری نوله دی امله خوشحال یم چی دهیواد اساسی قانون له نافذیدو وروسته دهمدغه شان ګړبړ لاره او اریږی امیدی په راتلونکی وخت کی‌هم ددغه شان مرکو لړۍ دوام وکړی که چیری ملګری پوښتنه لری حاضریم ځواب ووایم.

وروسته بیا دباختر آژانس د ریاست وکیل ښاغلی غلام رسول یوسفی داسی پوښتنه وکړه :

ښاغلی‌جمهور رئیس دملی وثیقی‌دیوسلو دیرشمی مادی له مخی د انتقال په دوره‌کی د ملی انقلاب‌دګوند اساسنامه د هغه لومړی ګوند په توګه چی دافغانستان دخلکود ۱۳۵۲ کال دچنګابښ‌د ۲۶ ملی او مترقی انقلاب بانی اوپیشاهنګ‌دی د ښاغلی‌جمهور رئیس له خوانافذه ا و اعلامیږی .

ښاغلی جمهور رئیس به په دغه برخه کښی‌چه دملی انقلاب ګوند د اساسنامی

دتدوین کار څومره پرمخ تللی اوڅه وخت به اعلام شی رښا واچوی ؟

ښاغلی جمهور رئیس په ځواب کی وویل:

دملی انقلاب ګوند د اساسنامی د تدویـــن کارله ډیری‌مودی راهیسی سرته رسیدلی‌دی، طبعاً د اساسی قانون له نافذیدو پرته‌دیوه ګوند جوړیدل ممکن ندی ، نو لومړی لازمه وه‌اساسی‌قانون منځ ته راشی او وروسته‌بیا دګوند اساسنامه اعلام شـــوی وای اوس دغه اساسنامه چمتو شوی چی له‌نوی کتنی او د اساسی قانون‌له مواد وسره دهغـی د محتویاتو له تطبیق څخه به وروسته ډیـــر ژراعلام شی .

هغه څه‌چی غواړم وی وایم دادی چی‌پدغو دریوکلونو او اتومیا شتوکی په تیره بیاپه وروستی‌کال کی له لویی جرګی دمخه امکان شته څینو کسانو دښه نیت او د افغانستان دانقلاب په‌مرام باندی دباور له‌مخی‌دجمهوری دولت دهدفونو دځرګندولو په مقصدتشبث دړ لود چه‌یو مجاز کاروو خو یـــوشمیـــر اپرچونیستانو د ګټـی اخیستو په مقصـــد اوبوشمیر ورانکارو دورانکاری پـه مقصـــد په‌ګوند کی دنوم دثبتولواوتعهدپانی په څپله شخصی غوښتنه و ویشلی چی په هیڅ‌توګه هغوی ته‌کوم هدایت نه و، ورګړ شوی خو دګوند په باره‌کی زما عقیده داده چه هروطن پال‌توك او عنصر باید یوهدف لفظاً تائیـــد نکړی بلکی اساسی وظیفه داده چی‌دانقلاب په اصول اوخلکوته‌په خدمت باندی‌دعقیـــدی اوقوی باور له مخی‌ذمه واری په‌غاړه واخلی.

زموږ دهیواد په‌خاصو شرایط کی‌ګونـدی او سیاسی کار آیجابوی چه مونږ‌منځنی لاره دښوئیدو او کین اوښی له افراط څخه‌پرته غوره کړو چی زمونږ‌له ملی اوټولنیزو دو-دونو او عنعناتو او دزمانی له شرایط سره سمه‌وی اودایوه مترقی لاره‌ده چی‌دافغانستان دپر مختګ دپاره له دغه سلوك څخه پرته بل سلوك نه‌وینم .

زمونږ ملت له ټولو وروسته‌پاتی کیـــدو سره طبیعی شعور لری چی‌خپل ملی‌شرافت او غرور یی‌تل ساتلی د ی .

دزمانی پیښواو ستونزو زمونږ خلکو تــه طبیعی شعور ورکړیدی چی په خپل خیر او شر ډیرښه پوهیدی شی او دتاریـخ پـــه اوږدوکی یی دپردیـو دهـر ډول تیـری او د زمانی دستری امپرا توری په وړاندی پـه میړانه له خپل شرافت څخه دفاع کړیـــده او تاریخ شاهد دی اچی مـونږ هیڅکلـــه د استعماری قدرتونـو دلـوبـوشیـان نــه یوګر ځیدلی .

دجمهوری دولت لومړی لویی جرګی چــه زمونږ د ټولو خلکواستازی پکی وه، ثابتــه کړه چی زمونږ د ملت اکثریت دحق اوباطل دپیژندنی او دملی مصلحت په کارکی‌طبیعی شعور لری اوپه حساسو وختونوکی دوطـن په وړاندی خپل رسالت او ذمه واری‌پیژنی.

مونږ په جمهوری لویه جرگه کی ولیدل دملت استازی د تحصیل له درجی څخه بهیی تیرشو په څومره زور نظر د ملی مسئلـــو په باب وغږیدل اودغه کار د دی ښکارندوی دی چی افغان ملت په رښتیا د ملی‌هدفونو په باب ښه ۱ حساس او شعور لری.

وروسی د جمهوریت د ورځپاڼی مرستیال ښاغلی محمود فارانی څپله پوښتنه داســـی مطرح کړه :

ایا دملی انقلاب دگوند د اساسنامی پــه تدوین کی ترټولو زیات په کومو معیارونــو اواساساتو باندی ټینگار کیږی او دهغه په چوکاټ کی زیات کوم هدفونه شته ؟

ښاغلی محمد داودپه ځواب کی وویل : معیارونه روښانه دی هر سیاسی‌گوند بایــد د ایثار اوله ځان څخه تیرېدو دروحیی پــــه اساس دتاریخ دملی فرهـنگ ، کـلتور او معتقداتو او وطن ته دخدمت په اساس‌عمل وکړی اوله ځان غوښتنی څخه ډ ډه وکړی. دملی انقلاب گوند د مرام اساسی ټکــی د افغانستان خلکوته د خطاب په وینا اونور ویناؤکی څرگند شوی دی.

البته دکل په توگه دملی انقلاب گونـــد څخه مقصد دیوی فداکاری وطن پالی اووطن دوستی کتلی منځ ته راتلل د ی‌چی دافغانی ټولنی ډیر مختگ اوپرمختیا دپاره په پوره صداقت او ایمانداری لههر ډول توپیــــــر اوځان غوښتنی پرته زیار وباسی .

د انیس د نشراتی‌موسسی وکیل ښاغلی سرشار روشنی داسی پوښتنه وکړه .

دملی انقلاب په گوندکی دبرخی اخیستو شرایط څنگه دی ، آیاپه لومړی گام کی به کوم کسان په‌کومو شرایطو سره ومنی ؟

ښاغلی جمهور رئیس وویل : : ملــی انقلاب په گوند کی دغړیتوب شرط د ۱۳۵۲ کــال دچنگاښ ۲۶ انقلاب په اصول بــانــدی بشپړ ایمان اوعقیده ده البته دغه گوندلـــه انقلاب څخه مخکی هم وه اود خپلو هدفونو او مقصد دتطبیق دپاره یی زیارویست چـی له‌نیکه مرغه اوس د اساسی قانون پـــه رڼاکی‌دگونداساسنامه طرحه اودهغه‌هدفونه په ډاگه تعقیب او تطبیق کیږی خوباید وویــل شــی چی دملی انقــلاب په گوند کــی بــه داپرچونیستانو او ورانکـارو د پاره ځای نه وی .

وروسته بیا دراډیو افغانستان د ریاست وکیل ښاغلی سید یعقوب وثیق پوښتنـه وکړه آیادملی انقلاب گـوند بـه دگـونـدی دسپلین له نظره څه ډول وی ؟

ښاغلی جمهوررئیس په ځواب کی‌وویل: په هرگـــوند کی د غړیتوب لـومړنی شرط د انضباطرعایت دی ،خوباید هیڅکله دگوندی دسپلین منل د کور کورانه اطاعت منل ونه بولو هغه گوند چی زه دهغه په باب خبری کوم، دکاردننه والی لپاره بهپه ځان انتقـاد اوپه اجتماعی معایبو باندی انتقادمراعات‌کړی دغه گوند پههیڅکله دعقیدو دتفتیش‌دمحکمی په شان چی په منځنی پیړیوکی موجود وو

عمل ونکړی او د دیمو کراتیك مرکزیـــت متابعت بهپکی مراعات شی .

د هیواد د نشراتی موسسی وکیل ښاغلی محمد ولی زلمی خپل سوال داسی مطـــرح کړ :

دگوند له مرامنه تیری کول اودصلاحیت نه ناوړه استفاده به آبادیوی گوندی مرجـع له خوا پوښتنه وشی ؟

ښاغلی جمهور رئیس و فرمایل :بیلـه تردید نه دگوندی مرامونونه دتیری کولـــو پوښتنه به دگوندی مسؤلو اورگانو لهخـوا وشی خوکه دگوند غړی د دولتمامور هموی په هغه صورت کیبه تری دولت همپوښتنه وکړی .

د کابلتایمـــز د نشراتی موسسیوکیل ښاغلی نور محمد رحیمی پوښتنه وکړه :

ښاغلی جمهور رئیس شوروی اتحـاد تـه د سفر په درشل کی دی ایا غواړیدد دغـه سفر د هدف په باره کی رڼا واچوی ؟

ښاغلی محمد داود په ځواب کی وویل: هغه وخت چی د شوروی اتحاد عالی شورا درئیسه هیأت صدر ښاغلی پـود گـورنـی افغانستان ته راغلی ؤماته یی دغهشان بلنه راکړچی دزیاتی بوختیا له امله می ونشـــو کړای تردی دمخه زمونږ دوست هیـــواد شوروی اتحاد ته سفر وکړم کوم تردیـــد نشته چی د دواړو هیوادو د مشرانو ترمنځ دغه شان تماسونه زمونږ دوستانه مناسباتو

په لاټینګتیا اوپیاوړتیاکـی اغیزمن ؤ اودی او دغه شان خبری اتری دهغو پیښوپه وړاندی چی په نړۍ کی پیښیږی گټوری دی امیـد لرم د غهمسافرت د دواړو هیوادو د دوستی په زیاتی تقویی کی یوگټور او اغیزمن گام وی .

جمهور رئیسښاغلیمحمد داود دمطبوعاتو د نمایند گانو دپوښتنو له پا ی ته رسیدو وروسته وویل:

ورځپانه لیکونکی تل درندی وظیفی پهغاړه لری ،دهغوی رسالت دادی چی دعامه ارتباط دوسایلو له لاری دخلکو او دولت ترمنـځ لاټینگی رابطی ټینگی کړی او خلـك د هغو واقعیتونو په جریان کی پریږ دی چی پـه محیط کی په هغو باندی پوهیدل او تفسیـر ضروریدی.

خپل وطن ته میدخدمت په اوږدوکلونوکی په خپلی تجربی کی پدی وپوهیدم چـــی دهیواد دترقیاولوړتیاد پاره لازمه دهچیتول ځوانان او دهیواد وگړی په خدای بانـدی په ایمان او خلکو ته په خدمت باندی پـه عقیدی سره تصمیم ونیسی چی هیوادپـــه خپله آباد کړی او هغه دترقی په لویه لاره روانکړی ځکه یواځی ددی خاوری اولاد دی چی کولی شی په خپل ځانباندی د متکـــی نوی افغانستان دودانولو دپاره زیاروباسی .

د مطبوعاتو له اهل ځخه زماهیله دادهچی

تل‌په آزادانه اوبی غرضه توگه دزړه لــه کومی پدغه شان وختونوکی هغه پوښتنــی چی وی لری، مطرح کړی او دعامه اطلاعاتو دوسایلو دلاری زمونږ دخلکو ذهنیت‌روښانه کړی ستاسو لیکوالو او ورځپاڼه لیکونکــو ستره وظیفه دا ده هغــه وږمی او نــاوړه تفاهمو نه‌چی په محیط کی پیدا‌شوی اولـه یوی بڼی څخه په بلی بڼی ښودل کیږی ، روښانه کړی او بالوسیله ټولنی ته‌دحقایقو د ځرګند ولو اود هغوی د روښانولو، دپاره زیار وباسی .

دژور نالستانو اصلی وظیفه داده چــی ګډووډذهنونه روښانه‌کړی اوناوړه‌تفاهمونه لری کړی ، ګــام په‌ګام دټولنی دترقی ، او سر لوړی دپاره زیار وباسی .

زماپه عقیده دورځپاڼه لیکو نو کارله ټولو زیات یوانسانی کاردی‌او تاسو باید دخاوری دسر لوړی او پر مختګ دپــاره خپــل استعدادونه په کار واچوی چی د ټولنی‌پــه مقابل کی خپله ګټنده لګه چی لازمه‌ده سرته ورسوی هغه‌وخت هیڅ شك نشته چی‌دټولو ربنتینو وطن پالونکو په همت به یوه ورځ خپل مقصد پړاوته ورسیږو، بدمرغی ، فقر اوبی عدالتی لیری کړو .

له لوی خدای (ج) څخه تاسو ټولوتــه ستاسو په ټولودرندو وظیفوکی چی خلکــوته خدمت دی ،دتوفیق او بری هیله کوم .

په پای کی د انیس دنشراتی موسسی وکیل ښاغلی سرشار روشنی دمطبوعاتــی همکارانو په نمایندګی خلکوته د خدمت او دعامه ذهنونو د روښانه کولو په لاره‌کښــی د مطبوعاتی داهل‌همکاری ځرګنده‌کړه.

# د ښاغلي جمهور رئيس وينا د پوهنې
# د سيمينار په مناسبت

۲۲ر۲ر۱۳۵۶

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد په هیواد کی د پوهنی د هراړخیزی پرمختیا په سیمینار کی له برخه والو کسانو سره د غږیدو په ترځ کی وویل :

پدی کی شك نشته چی زمونږ هیواد د نړی رو ودی په حال کی هیوادو په شان له ډیرو ستونزو سره مخامخ دی چی هغه په لنډه موده کی نشی حل کیدی او دډی غوښتنه کوی چی د هیواد ټول وگړی د نظر او عمل په یووالی سره د دغو ستونزو د لیری کیدو د پاره پرله پسی مبارزه وکړی .

که څه هم د دغه سیمینار موده لنډه وه خو سیمینار د دی لاری اواره کړه چی د هیواد د پوهنی د کروندگرو استازی د علاقمندو موسسو له ماموړینو سره راټول شی او د خپلو ستونزو د لیری کولو د پاره سره وغږیږی او خبری اتری وکړی .

امیدلی په بیلابیلو برخو کی د ستونزو د حل د پاره وخت په وخت د هیواد په هر گوټ کی نور سیمینارونه جوړ شی او خلك له نژدی څخه د چارو له مسئولو کسانو سره تماس ونیسی او د هغوی د ستونزو په لیری کولو کښی زیار وباسی .

دودی په حال کی د یوی ټولنی ستونزی هغه وخت لیری کیدی شی چی د هغه وگړی په ډیره صمیمی فضا کی او ښه تفاهم او د عمل او نظر په یووالی سره د هغو د لیری کولو د پاره زیار وباسی او په خدای باندی په ایمان او کلك عزم د خپل هیواد د آبادی او ودانی په لاره کښی زیاته ونډه واخلی .

گرانو ورونو د پوهنی د هراړخیزی پرمختیا په سیمینار کی چی تاسو په هغه کی برخه دراوده د پوهنی د پرمختیا او کرنی په لاره کی د هیواد اقتصادی مسئلو په یوی برخی با ندی غور او څیړنه وشوه پداسی حال کښی چی مونږ په خپل چاپیر یال کی له بی شمیره مسئلو او ستونزو سره مخامخ یو چی هغه یوازی د خولی په خبرونه حل کیږی بلکه د هیواد دوگړو هر اړخیز گډ زیار غواړی .

د مسئلو د حل د پاره لازمه ده چی د ستونزو د پیژندلو په څنگ کی د هغو د حل لاری هم ولټول اوڅرگندی شی او پدغه کار کی باید هیڅ ډول شخصیات او فردی غرضونه نه وی څکه په هره برخه کی انتقاد آسانه کار دی خو د ستونزو د حل د پاره د معقول نظر څرگندول ډیر سخت کار دی.

امیدلرم د هیواد ټول وگړی په ښه تفاهم سره د ستونزو د حل په برخه کی د هیڅ ډول ښه نظر څرگندول ونه سپموی .

اوږدو تجربو مونږته راښودلی دی چې ــ ی نفاق اوبدبینی هیڅکله کوم کارپرمخ ندی بیولی بلکه بدبختی اومصیبتونه یی پیداکړیدی اوپه مونږده چی دخپلی ټولنی دپرمختیا دپاره لــه پخوانه زیات په خپلوایمانی او وجــدانی مسئولیتونو باندی خبروا وسودجمهوری بختور نظام پەرڼاکی دملی یووالی دساتنی اوټینګښتیا په لاره کی عملا زیار وباسو .

جمهوری دولت دجوړیدو راهیسی دخپــل توان اووس په اندازه دیوه نوی اوهوسا ـ افغانستان دجوړواوپه لاره کی اقدامات تر لاس لاندی نیولی اوپدغه برخه کی به خپل زیار ته دوام ورکړی .

امیدی دخدای په توفیق وکولی شو،وه ورغ به خپل ګان باندی دیوه متکی هیوادپه توګه شو او تر وسه وسه پوری په داخل کی خپلی اړتیاوی پوره کړی شو .

دهیواد پرمختګ اولوړتیا دوګړوپه تیــره بیادځوان نسل هراړخیزه زیار غواړی چــی هرڅوك په خپل واردهیواد بنسټ په ایښودو کی اساسی اوسمی تیری کیږدی اوراتلونکی نسل ته خدمت وکړی .

# دښاغلي جمهور رئيس پیغام دښوونکي دورځې په مناسبت

۳۱ر۲ر۵٦

دلوی اوتوانا خدای په نامه. گرانواستادانو اوښوونکو !

خوشحاله یم چې بیاهم دښوونکي دبختوری ورځې له امله دغه ورځ زمونږ دحق پیژندونکي ټولنې له خوازمونږ په هیوادکي داستادانو او ښونکو معنوی مقام نمانځل کیږی . زه دزړه له کومې ټولواستادانو، ښوونکو دپوهې او معرفت خاوندانو ته ددغې بختوری ورځې مبارکي ورکوم . دښوونکي نمانځنه اوداستادانو او ښوونکو زیاراو خدمتونو ته په درنده سترگه کتل اومننه په حقیقت کښې دپوهې اومعرفت نمانځنه ده چه په خپله زمونږ یودیني سنت اوزمونږ دملي فرهنگ له هغوارزښتونو څخه ده چې په پیړیو، پیړیوکي له یوه نسل څخه بل نسل ته پاتې شوی اوزمونږ دخاوری تاریخ دهغو صادق گواه دی .

دپوهې اوفضیلت دمننې دهمدغې روحیې له امله ؤچې زمونږ دتیرو پوهانو اومتفکرینو ارزښتناك خدمتونه دپوهې اوروزنې او دیوه اصیل اوانساني تمدن دبنسټ ایښودودپرمختگ په لاره کې دنړیوال تاریخ اوکلتور څلانده پاڼې گڼلې کیږی اوځرگنده ده چې مونږ ندبـل هروخت په پرتله ددغه شان روحیې پیاوړتیا ته زیات ضرورت لرو. دایوځرگند او داسې حقیقت دی چې انکارتری نشی کیدی چـې دیوی ټولنې دربښتیانی نیکمرغی اوسوکالي تامین هغت وخت ترسره کیدی شی چې دهغې ټولووگړو دسالمې پوهې اوروزنې څخه پـه خبرتیاسره گټه اخیستې وی اوداهغه وظیفه ده چې دتاریخ په اوږدوکی د ښوونکي په غاړه ده اوننن چې دبشریت نړۍ له راز، رازاو ډول، ډول سترو تحولاتو سره مخامخ شوی البته دغه کار دښوونکي ډیره مهمه وظیفه بلله کیږی .

توکیدی شی، ښوونکي د یوی ټـولنـې راتلونکي تمدن اونیکمرغی بنسټ ایښودونکي وبلل شی اودغه شان شخصیت دنمانځلـو اودرناوی وړدی .

دپوهنې بنیادی ریفورم زمونږپه هیواد کی دخلکو دمادی او معنوی اړتیا ؤ په نظرکی نیواوسره دهغه بنسټ ایښودل شوی اوپړاؤ په پړاؤ دتطبیق پهحال کی دی، داستادانو ښوونکو اوټولو هغوکسانو جدی همکاری چې له پوهې اوفضیلت سره مینه لری اوامیددی چې دهغه په پوره تطبیق سره پدی برپالی شوهغه نیکمرغی اوسوکالي چې زمونږدټولنې هیلهده بیخې تامین کړو دافغانستان جمهوریت له استادانو، ښوونکو اودپوهې او فـرهنگ له ټولو خاوندانوڅخه چې دعلم اوعرفان پـه پراختیااوخپرولو اودهیواد دځوان نسل پــه روزنه کی یی خپلې وظیفې پهښه توگه سرتـه رسولې . تشکرکوم اوټولوته یوځل بیاددغې بختوری ورځې مبارکي وایم .

# له ښاغلي جمهور رئيس سره مرکه

۱۳۵۶ر۲ر۳۱

دجمهور رئيس ښاغلي محمد داؤد دهغې مرکې متن چې په کابل کي دبزنس ټايمز د جريدې له مدير اودلندن دفاينشل ټايمز دورځپاڼې له استازي ښاغلي کيون رافيرټي سره يې کړيده .

لومړی ښاغلي جمهور رئيس وويل : تاسو سره دکتنې له امله خوښ يم .

آيادافغانستان ته ستالومړی سفردی ؟

ښاغلي کيون رافيرټي وويل وياړم چې ماته له ښاغلي جمهوررئيس سره دکتنې وخت راکړشو اوله دې امله متشکريم چه تاسو جلالتمآب زه دمرکې دپاره ومنلم اوبايدستاسې په خدمت کې عرض وکړم چې زه په ۱۹٦۹ کال کې هم دلنډې مودې د پاره افغانستان ته راغلی وم وروسته بيابناغلي کيون رافيرټي خپلې پوښتنې داسې طرحه کړې .

پوښتنه : ستاسې له خوادجمهوری نظام داعلان څخه څه ناڅه څلورکاله تيرشول ، تاسې په دغه موده کې دجمهوری د ولت داساسې قانون اودپرمختيايې اووه کلن پلان دلارې دافغانستان دخلکو دپاره دښه ژوندانه دپرمختيا چوکاټ طرحه کړيدی آيا تاسې جلالتمآب به څرگنده کړی چې ستاسې دنظره به افغانستان په راتلونکې وخت کې څنگه پرمختياوکړي ؟

ځواب : دجمهوری دولت اساسی قانون په باب بايدوويل شی چې په حقيقت کې له هغه څخه هدف اومقصد دوخت او زمانې دضرورتونو سره سم دهوسا ژوندانه يوه پړاؤته رسيدل دی البته په هغه کې ددرج شويو ارزښتونو پوره تطبيق اوتحقق چې ددې هيواد وگړو داکثريت دهوساينې او سوکالۍ متضمن دی د يولړ نورو قوانينو بشپړتيا هم غواړي . دقانون او دهغه داساساتو دتطبيق څرنگوالی به دولت ناداری دستگاه په ښواجراآتو او دافغانستان دولس دزړه له کومې همکاری پوری اړه ولری چې بايدهغه دخلکودگټو اودهيواد دلوړو ښيگڼو په لاره کې عملی کړی. دپرمختيايي اوه کلن پلان په باب بايدووايو دافغانستان ستونزو دټولو پرمختياهيوادوپه شان يوه اقتصادی ستونزه ده چې په ټولوټولنيزو مسئلوباندی اغيزه کوی نوداقتصادی پرمختياموضوع زمونږ دپاره يوه حياتی موضوع ده دهرپرمختيايي هيوادپه شان دخپلوگټوودپيو او وروسته پاتې کيدودليری کولو دپاره دخپل وس او توان په اندازه زيارباسو چې دپرمختيايي اوه کلن پلان په چوکاټ کې په بيلابيلوبرخوکې يولړ داسې پروژې چې داقتصادی ودی عمليه گړندی کوی اوله دغې لاری څخه دهيواد دخلکو د هوساينې په لاره کې اغيزمن گام اخيستل کيدی شی تطبيق کړو .

پوښتنه : داقتصادی پرمختیادموضوع په ارتباط اوددغه کارپه نظرکی نیولوسره چی له ټولوهغو اقداماتو سره سره چی تراوسه پوری تاسو داقتصادی ودی په لاره‌کی کړیدی افغانستان اوس هم یوفقیرهیواددی ښاغلی جمهوررئیس ویلی شی چی دخپل هیواد د پرمختیاپه لاره‌کی‌کوم شی خپله ستره ستونزه بولی یاداچی دجلالتمآب په نظردافغانی‌ټولنی دپرمختیاپه کارکی به مثبت او منفی عوامل څه وی ؟

ځواب : دافغانی ټولنی داقتصادی پرمختیا په لاره‌کی مثبت عوامـــل په حقیقت کـــی دافغانستان دحکومت اوولس ایمان او عقیده ده چی ترکومی اندازی پوری کولی شی دوطن دآبادی په لاره‌کی دښوخدمتونو مصدر شـــی.
دافغانستان په اقتصادی پرمختیاکی منفی عوامل البته اوسنی مالی حالت درسیدلـــی پرسونل دکار کمبود اوددغه جغر افیایـــی موقعیت دی .

پوښتنه : آیاښاغلی جمهوررئیس له هغو مرستو څخه چه شتمن هیوادونه یی له دغه هیوادسره کوی راضی دی اویاخوتصور کوی چه دغه هیوادونه ددی توان لری چی زیاتی مرستی وکړی ؟

ځواب : فکرکوم د افغانستان په خیـــر هیوادونه داقتصادی ودی دپاره په کـــورنیو منابعو سربیره بهرنیو مرستوته هم اړ دی چی وکولی شی له‌دغی لاری دخپل اقتصادی بنسټ آبادولوته ورسیږی . پدی کی شـــک نشته شتمن هیوادونه‌که چیری وغواړی‌کولی شی زیاتی مرستی وکړی په هرحال تراوسه پوری له هغومرستوڅخه چه‌دوستوهیوادوکړی دی تشکر کوو .

پوښتنه : ښاغلی جمهور رئیس به البته دافغانستان داقتصادی پرمختیاپه‌کارکی یـــو موډل په نظرکی ولری ستاسی په نظربه‌دغه موډل ترټولوزیات دلویدیځی اروپـــا پـــه خصوصیات باندی ولاړوی اویادختیځی اروپا مقصد دادی چی ستاسی په عقیده کوم شیان په لویدیځ کی اوکوم شیان په ختیځه اروپا کی ښه اویاخراب دی ؟

ځواب : سخته به‌وی حساب وکړوچی کوم شیان په لویدیځ کی اوکوم شیان په ختیځ کی ښه اوخراب دی البته مونږ هرښه شی که دلویدیځ وی اوکه دختیځ‌که چیری ګټور او زمونږله ملی ښیګڼوسره سم وی منو .

پوښتنه : آیاتاسی جلالتمآب کوم‌ځانګړی څیزپه‌کوم لویدیځ شتمن هیوادکی خوښوی اویاکوم شی‌یی نه غواړی مقصد دادی ځینی شکایت لری چی لویدیځه ټولنه په کراری سره ډیره مخ په مادی‌کیدوروانه ده داسی چی ددغه‌کارپه نتیجه‌کی په کورنی ټولنیـــزو ارزښتونو اومذهب باندی سترګی پټیږی دغه رازځینی بیاله دغه‌کارڅخه شاکی دی چـــی په ختیځه اروپاکی دمذهبی اعتقادخپ ځپانده شوی اوالحادمخ په زیاتیدو دی ؟

ځواب : لومړی بایله ووایم چی هـم پـه لویدیځ اوهم په ختیځ کی شتمن هیوادونه

شته البته ستاسی دپوښتنی په برخه کی زمونږسلوك داقتصادی مسئلوپه باب یسوه منځنی لاره ده چی زمونږدټولنی له فرهنگ کلتور اوملی گټوسره سمون وخوری .

پوښتنه : په بهرنی نړی کی افغانستان کله ناکله دشوروی دیوی سپوږمی په توگه بلل کیږی خوکله چی انسان کابل ته راځی دغه نظرسم نه بریښی آیاښاغلی جمهوررئیس سره ددی چی دناپیلتوب په سیاست باندی کلکه عقیده لری له دی څخه اندیښنه لرو چی کله ناکله پری شوروی ته دتمایل له امله انتقاد کیږی ؟

ځواب : پدی کی شك نشته چی دغه شان انتقادونه په دځواشینی سبب وی البته هر هغه نظام چی په خپلوخلکواوملی مسئلوباندی متکی وی کله ناکله دهغه په باب دغه شان ناوړه تبلیغات کیږی خوهغه څه چی غواړم وی وایم دادی چی افغانستان ولس تل اوترهرڅه دمخه افغان دی اوباورلرم چی تل به همدغه شان وی زمونږ پالیسی له ټولو هیوادو سره دوستی ده اوداددی معنی نلری چی مونږ پدغه دوستی کی په خپلو ملی گټو او شخصیت باندی سترگی پټوو .

پوښتنه: دافغانستان اوپاکستان مناسبات دتیر وخت په پرتله اوس ښه دی دپاکستان صدراعظم ښاغلی ذوالفقارعلی بوټوپه کابل کی خبری وکړی اوښاغلی جمهور رئیس هم اسلام آباد ته سفروکړاوخبری وشوی آیاجلالتماب جمهور رئیس ویلی شی چی دافغانستان اوپاکستان ترمینځ دانږیکودغه ښه والی به څه ډول وده وکړی اولاتراوسه پوری څه اختلافونه شته ؟

ځواب : له پاکستان سره دافغانستان یوازنی سیاسی اختلاف تل څرگندی اوهغه دپښتنو اوبلوڅو ورونو دروا حقوقو پلوی او تائید دی مونږله ښاغلی بوټوسره په کابل اواسلام آبادکی خبری وکړی اوپدغه خبروکی زمونږدریځونه یوبل ته روښانه شویدی .

زمونږخبری په دوستانه فضاکی وشوی که چیری ښه نیت موجودوی اوامیدلرم چی یوه ورځ به په عادلانه اوشرافتمندانه توگه له سوله ایزی لاری څخه ددغی مسئلی حل ته ورسیږو.

پوښتنه : دافغانستان او پاکستان ترمنځ دخبروبل پړاوبه څه وخت وی ؟

ځواب : په غوڅه توگه به دراتلونکی خبرودوخت ټاکل اوڅرنگوالی سخت وی لـه بده مرغه په پاکستان کی اوس داسی پیښی پیداشوی چی حالت یی گډوډ کړیدی په هر حال اوس داپه پاکستان پوری اړه لری چی دراتلونکی پړاو دپاره څه ابتکار اوحرکت ښیی چی دراتلونکو خبرولاره خلاصه شی. که نه پدغه برخه کی به خبری درکودپه حال کی پاتی شی .

پوښتنه : آیاتاسو پدغه برخه کی دپاکستان له خوا دڅه ډول اقدام هیله لریء .

ځواب : مقصد روښانه دی مونږپه مخکنیو خبروکی په خپلو دریځونو باندی پوهیدلی یووځوپداسی شرایطو کی چی دپښتنو ا و بلوڅو گڼ شمیر مشران په جیل کی پراته وی

راتلونکی خبری بهځنګه ممکنی وی اوترهغه وخت پوری چی په خپله له پښتنو اوبلوڅو سره مفاهمه ونشی ځنګه امکان شته پدغه لاره‌کی عملی ګام واخیستل شی .

پوښتنه : آیادپښتنو اوبلوڅو له مشرانو څخه ستاسو مقصدهغه مشران دی چی پدی وروستیو وختوکی له انتخاباتو وروسته‌توقیف شویدی اویاخوهغه کسان دی چی پخوا جیل ته بیول شویدی ؟

ځواب : دهغوبندی کیدو موضوع چی په دی وروستیو وختوکی شوی اویا کیږی نوی موضوع ده البته زموږمقصد هغه مشران دی چی پخوابندی شویدی اوموږتل دهغوی دحقوقو ملاتړ کړیدی .

خبریال : دملی عوامی منع شوی ګوند دمشر عبدالولی خان په ګډون ؟

ځواب : هو! خبریال‌که چیری له ښاغلی بوټوڅخه پدغه باره‌کی پوښتنه وشی وبه‌وایی چی خان عبدالولی خان دمحکمی دحکم وروسته بندی شوی دی .

ښاغلی جمهور رئیس : تاسی ګولای‌شیء به خپله وپوهیږی چی دده په باره کی دمحکمی حکم څه ډول شویدی .

پوښتنه : که چیری دپاکستان له خوانه نیت موجودوی اودپښتنو او بلوڅو بندیان شوی مشران پریښول شی آیادافغانستان او پاکستان ترمینځ به حالات عادی شی او په دغه صورت‌کی به‌کوم سیاسی اختلاف په‌مینځ کی نه وی ؟

ځواب : له پاکستان سره زموږسیاسی اختلاف یوازی دپښتنو اوبلوڅودمشرانو دبند اویادهغوی دپرېښودو موضوع نده بلکه دهغوی دحقه حقوقوتامین دی دموضوع سوابق له هرچاڅخه تاسو انګلیسانوته ښه معلومدی.

پوښتنه : آیادخان عبدالولی خان او نورو پښتنواوبلوڅو مشرانو پرېښودل کیدلای‌شی دتفاهم په لوریوګام وبلل شی ؟

ځواب : البته یوښه ګام بلل‌کیدی شی .

پوښتنه : آیادپښتنواوبلوڅو دبندیانو له پرېښودلو پرته ددواړو مملکتونو تر مینځ‌ښه تفاهم مینځ ته راتلای شی ؟

ځواب: فکرکوم له دغه‌کارڅخه به پرته هر ډول ښه فوق العاده تفاهم ته رسیدل سخت وی .

پوښتنه: آیاښاغلی جمهوررئیس وایی چی دافغانستان اوپاکستان ترمینځ اړیکو دعادی کیدوله پاره شرایط دپښتونستان جوړیدل اودشمال لویدیځی پولی دایالت اوبلوچستان دراتلونکی په باب دریفراندم تطبیق دی چی ددغو دوو ایالاتو خلك وایی‌له‌کوم هیوادسره یوځای کیږی ؟

ځواب: موږبه ټاکلی شرایط پیشنهادنکړو بلکه زموږ پیشنهاد به داوی چی زموږ پښتنواوبلوڅو وروڼو ته وخت په لاس‌ورکړی شی‌چی پخپله ووایی چی څه غواړی اوڅه هیله لری موږدهغوی دغوښتنو ملاتړ کوواو غواړوچی هغوی په‌خپله دخپل سرنوشت په باره‌کی تصمیم ونیسی .

خبریال وویل : ښاغلی جمهوررئیس پدغه باره‌کی فوق العاده څرگنددریغ وړاندی کړی دی .

ښاغلی جمهوررئیس‌وفرمایل: هوافغانستان له خپل روښانه دریځ څخه په پیروی تل د خپلوپښتنواوبلوڅو وروڼو دحقه حقوقو ملاتړ کړی اوکوی یی .

پوښتنه : آیادپښتنو اوبلوڅو ولسونو به دخپل سرنوشت دټاکلو په باره کی خپـل تصمیم په‌څه ډول ونیسی ؟

ځواب : دخلکو دنظریومعلومول آسان دی په هرشکل چی پخپله وغواړی کولی شـی پدغه باره‌کی خپلی غوښتنی څرگندی کـړی

پوښتنه : ښاغلی جمهوررئیس ایران یوبل گاونډی دی چی له تاسی سره دوستی لری ایران له افغانستان سره داورگاوی دپټلی دجوړولوپه باره‌کی مالی مرستی منلی دی آیا ښاغلی جمهور ر ئس غواړی داورگاوی دپټلی دپروژی دبشپړیدو دپړاوړو اودهغی دلگښت په باب څه ووایی ؟

ځواب: پدی‌کی شك نشته چی له ایران سره زمونږاړیکی دوستانه‌دی ایران زمونـږ په اوه‌کلن پلان‌کی دځینوشاملو پروژودتمویل په باره‌کی ژبه‌کړیده چی داورگاوی دپټلی جوړیدل هم پدی جمله‌کی دی .

باید ووایم چی داورگاوی دپټلی پـروژه تر سروی لاندی ده اوډیر ژربه دهغی نتیجی بشپړی اوحکومت ته وسپارلی شی .

پوښتنه : اوریدل کیږی چی ایران دهلمند دسیند داوبودموضـوع په ارتباط داورگاوی د پټلی دتمویل په برخه‌کی دخپلومالی ژمنوپه سرته رسولوکی پلمی کوی گواکی دهلمنـد سیند داوبوموضوع پدغه برخه کی ستونزی راپیداکړی البته افغانستان دهلمندداوبوتړون ندی نقص کړی بلکه ویل‌کیږی چی په‌ځینو پروژوکی له ایران سره سلامشوره نده‌شوی دغه رازدښاغلی جمهـور رئیس وروروپـــدی وروستیووختوکی ایران ته تللی‌دی اوپدغه‌باره کی‌یی خبری‌کړی دی ښاغلی جمهوررئیس‌پدی باب اودخپل خاص استازی ښاغلی محمدنعیم دسفردنتیجوپه باب څه نظرڅرگند وی ؟

ځواب : دهلمند داوبو موضوع په تیرنظام کی فیصله شوی اوپدغه باره‌کی تړون‌لاسلیك شویدی اوله دی امله ناوړه تفاهم په منځ کی ندی پاتی له افغانستان سره دایران د اقتصادی مرستو دتړون په باب باید ووایم چی ایران پدغه باره‌کی مرستی منلی چـــی هیله لرم پرهغوباندی عمل وکړی .

دخاص استازی ښاغلی محمد نعیم سفـر ددوستانه بلنی له‌امله‌شوی وُچی له‌هغه څخه گټوری نتیجی لاس ته‌راغلی دی. اوس زمونږ په‌وړاندی پدی باره‌کی کوم دلیل نشته چی ایران په خپلومالی مرستو کی پلمی کـوی اوددواړو هیوادوگډکمیسیون به ډیرژرخبـری وکړی .

پوښتنه : آیادایران په مالی مرستو کی داورگاوی دپټلی جوړول هم شامل دی ؟

ځواب: هودهغه پروتوکول په چوکاټ کی

چې دایران دمرستو په باب دواړو خواؤ دهیاتونو ترمنځ لاسلیك شوی دی دایران له خواددغې پروژی دتخنیکی او اقتصادی نتیجوپه اساس دمالی آسانتیاؤ دبرابرولوژبه په نظرکی نیول شویده .

پوښتنه : په تجویز شوی پلان کی داورګاډی دپټلی جوړول دایرن له پولی څخه ترکابل پوری په نظرکی نیول شوی خو دحاجی ګك کان دهغی له مسیرڅخه لری پروت دی آیادغه‌کارپه لوی لاس داسی شوی اویاداچی دحاجی‌ګك کان هیرشویدی ؟

ځواب: دحاجی‌ګك کان هیرشوی نه دی‌بلکه له‌هغه څخه دګټی اخستلودځرنګوالی موضوع به ترڅیړنی لاندی ونیول شی‌که چیری‌غواړی پوره اوزیات معلومات پدغه باره‌کی دپلان له وزیرڅخه اخیستلی شی .

پوښتنه : ښاغلی جمهوررئیس اجازه‌غواړم چی دیوی شخصی پوښتنی ځواب له تاسی څخه وغواړم تاسی تر۱۹٦۳ کال پوری په خپل هیوادکی له حرکت څخه ډك یوه صدراعظم په توګه خدمت‌کړی دی اوبیادلسو کالولپاره په کورکی ناست واست وروسته موپه ۱۹۷۳ کال‌کی دچارروواګی ترلاسه‌کړی دقدرت له مخی پدغودووپړاونوکی ستاسی احساس څه دی ؟

ځواب: دژوندانه تجربوهغه مهم ټکی چی ماته رازده‌کړی دادی چی اصلی قدرت په‌هره ټولنه‌کی ملت دی اوهره هغه وسیله چی حاکمیت ملت ته ورسوی مشروع او معقوله ده له‌دی امله زماپه نظرکښی دخلکو اکثریت اودهغوی هیلی دی نه لږکی اوکم شمیر .

پوښتنه : آیاښاغلی جمهوررئیس له دی کارڅخه خواشینی دی چی په لسوکالوکی ګوښه اوله قدرت څخه لری ؤ؟

ځواب : له صدارت څخه زماګوښه کیدل خلکوته دقدرت دورکولودتکامل اودغی عملیی دچټکوالی لپاره ؤ خولس کلنی تجربی ماته وښودل چی دغه کاریوه بی ځایه هیله وه له‌دی امله‌می یوځل بیادخلکو داکثریت په‌ګټه دجمهوری نظام دټینګولو لپاره هڅه وکړه ؟

پوښتنه : ښاغلی جمهوررئیس دقدرت په لیږدولوکی ګټوراقدام ترسره کړی او دغه کارښتیانی ښه غوره کړیده خویوشمیر په اندیښنه کی دی که چیری تاسی جلالتماب نه یاست دغه عملیه به څرنګه بشپړه شی ؟

ځواب : په هره شیبه‌کی ددی احتمالی تصورکیدی شی چی انسان وی اوکه نه وی اونشوکولای چی دراتلونکوپه باب اټکل وکړو په هرډول پدی ایمان لرم چی یو ملت به‌په پای‌کی خپله لارپیداکړی اوخپل مشران به بیامومی .

پوښتنه : آیاښاغلی جمهوررئیس دخپل جمهوری ریاست لپاره وخت ټاکلی دی اوکوم بل څوك په راتلونکی وخت‌کی ددغی څوکی

لپاره په نظرکی لری ؟

ځواب : دغه موضوع دجمهوری دولت په اساسی قانون کی څرگنده شوی اوداچی په راتلونکی وخت‌کی څوك دجمهوررئیس په‌توگه ټاکل کیږی په خلکوپوری اړه لری .

پوښتنه : په اساسی قانون‌کی دجمهـور رئیس دمرستیا لانو دټاکلو لپاره څینی مواد ذکرشوی دی آیا ښاغلـی جمهـــور رئیس دمرستیال اویامرستیالانو دراودل په نظرکی لری ؟

ځواب: هویوجمهور رئیس یواځی نشـی کولای ټول کارونه سرته ورسوی .

پوښتنه : آیادجمهوری ریاست مرستیـال اویادمرستیالانو ټاکل په‌نژدی راتلونکی‌وخت کی په نظرکی دی ؟

ځواب: نشی‌کیدی چی ددغی موضوع پـه باره‌کی دقیقاځه ووایو خوپه نژدی راتلونکی وخت‌کی دمرستیال اویا مرستیالانو دټاکلـو احتمال شته . ښاغلی کیون رافیرتی ده‌رکی په پای‌کی دښاغلی جمهوررئیس په حضورد شرفیابی له امله خوښی وکړه او وی ویل له دی امله خوښ‌یم چی ښاغلی جمهوررئیس زمامفصلوپوښتنوته په سړه سینه ځواب‌ووایه :وله ځوابونو څخه یی خوښ شوم .

# دخپلواکۍ د ۵۹ کالیزې په مناسبت
# دبناغلي جمهور رئیس وینا

۱۳۵۶/۳/۲۶

ګرانو خویندو او وروڼو !

تاسو درندو وطنوالوته دزړه له کومې دګران وطن دخپلواکۍ دبیرته اخیستلو دنهه پنځوسمې کالیزې مبارکي وایم او ددغې ستري تاریخي بختوري ورځې له امله دهغو جنګیانو او سرښندونکو میړونو پاك روح ته چې دګران هیواد دآزادۍ دبیرته اخیستلو په لارکې یې مبارزه کړیده او سرېي ورکړیدی زیات درود اوتحیات لیږم .

ددغې ورځې منڅه اونمانځنه د افغانستان دقهرمان ولس دفداکارۍ اوسرښندنې خاطره چې تل په‌خپل ځلانده تاریخ کې دپردیو د تسلط په خلاف جنګیدلې راپه زړه‌کوي، البته هغه کسان چې‌دهیواد دآزادۍ‌دګټلو په‌لاره‌کې په ډیرو سختو شیبوکې دخپلې خاورې او د وطن دناموس څخه یې ددفاع دپاره دزړورو وطن پالو میړونو په لارښوونه هیڅ ډول فداکارۍ اوسرښندنه نده سپمولې زمونږ دارغونې خاورې په تاریخ کې لوړاو ځلانده مقام لري اودافغانستان حق پیژندونکې خلك تل دهغوی مجاهدو ته په درنده سترګه ګوري .

دګران هیواد دخپلواکۍ دبیر ته اخیستو نهه پنځوسمه کالیزه په داسې حال کې نمانځو چې زمونږ دخلکودهوساینې اوسوکالۍ په لاره کې دملي ارمانونودترسره کیدودپاره دبنیادي تحولاتو په لاره‌کې مهم ګامونه اخیستل شوي اواخیستل کیږي .

دجمهوري دولت اساسي قانون یوه بلبه پاڼه ده چې دافغانستان دولس دویاړنه ډك تاریخ کې راوښتې ده اوزمونږ ټولنه دهیواد دخپلواکۍ اودتیرو لرغونو ویاړونو ساتنې‌او صیانت اودامید بخښونکې راتلونکې په لور دحرکت دپاره چې دهغې اساسي هدف زمونږ دخلکو اکثریت ته خدمت کول دي زیاتــه مکلفه کوي .

پدې کې شك نشته چې داستعمار پــه خلاف په بیلابیلو دوروکې دافغانستان دخلکو مجاهدې او دوخت دډیر ستر استعماري طاقت په خلاف ددوی د۱۲۹۸ ش‌کال راپورته‌کیدل اودهیواد دخپلواکۍ ګټل دآسیا په وچه کې دآزادۍ غوښتنې دنهضتونو سریزه شوه او دزړورو وچو په زیاترو هیوادو کې دآزادۍ غوښتنې دنهضتونو سبب شوه اوهغه یـــې زړور او پیاوړې کړل .

ددغې خاورې دمیړونوله مجاهـــدو او د خپلواکۍ دمعرکې دقهرمانانو له مبارزو څخه هغه‌څه‌چې ډیره زیاته لارښوونه کوي اوبیابیا

ودهغه یادونه کړی دادی چی دافغانستان زړورولس دخپل تاریخ په ډیرو سختوشیبو کی دتیری کوونکو اودوخت دډیرو ستـــرو استعماری قدرتونو په وړاندی در یــدلی مصیبتونه اوقربانی ېیزغملی دی خو هیڅکله یی دافغان په توګه خپل ملی غرور اوکرهووه اوآزادمنشی لهلاسه ندی ورکړی اوانشاء الله چی وربه یی نکړی .

دهیواد دملی قهرمانانو دځلاندو کارنامـــو اومجاهدو یادونه ډیرپه ځای اوحتمی کار دی خوپه مونږده چی یوازی په تیرو ویاړونـــو اکتفا ونکړو بلکه دهیواد د اساسی قانـــون دارزښتونو په رڼاکی اودجمهوری نظام لــه مترقی هدفونو سره سم دخپلواکی اودتیرو ویاړونو دساتنی په لاره کی په لازم زیـار سربیره، دافغانستان دنوی ټولنی په ودانولو اودهیواد په زیات پرمختګ اولوړتیا کـــی دښوخدمتونو مصدر وګرځو چی حقیقتا مونږ یوی مترقی هوسا او ډاډه راتلونکی تـــه ورسوی .

ګرانو وطنوالو!

مونږ اوس په داسی وخت کی ژوندکوو چی دهغی شرایط له تیروخت سره ډیـــر زیات توپیرلری پدی وخت کی چی ټـــول پرمختیایی هیوادونه له زیاتو ستونزو ســره مخامخ دی اوغواړی ډیر ژرهغه تشه چیلدغه پلـو ، د دوی او پر مخ تللـــو هیوا دو تـــر منـــځ شتـــه کمـه کړ ی ، مونږ هم نا چاره یو چی د ضرورت پـه حکــم له پخوانه زیات خپلودرندو ټولنیزو مسئولیتونو ته پام وساتو دتمدن له قافلی سره لاپوګام شواو د هیواد دآبادی او دوخت او زما نی دغوښتنو سره سم دیوه ښه ژوندانه پهلاره چټك روان شو، دغه‌کاربه هغه وخت ترسره شیچی د۱۳۵۲ کال دچنګابن د۲۶ انقـــلاب ټول هدفونه اواساسات په ډیرغور سره یوپه بل پسی دافغانستان د جمهـــوری دولـــت دارګانونو دملی انقلاب دګوند دغړیو اووطن پال ولس له خواتطبیق او دهغو ملاتړوشی .

داهغه یوازنی لارهده چی ګولیشی زمونږ ملت دخپل مقصود سرمنزل ته ورسوی او باید دغه حقیقت سرسری اوباېیزه ونه بلل شی .

پهپایکی یوځل بیاګرانو وطنوالوته ددغی بختوری ورځی مبارکی وایم او داعلیحضرت امان الله غازی اواعلیحضرت غازی محمد نادر شاه شهید اودوطن دخپواکی دبیرته اخیستو دمعرکی دنورو قهرمانانواوسر ښندونکو پاك روح ته درود استوم اوله لوی خدای څخـه دافغانستان دولس دنیکمرغی اوپر له پسی سرلوړی هیله کوم .

تل دی وی خپلواکی
تل دی وی جمهوریت

# دسور د ورځې په مناسبت دنباغلي جمهور ئیس پیغام

گرانو اودرندو میندو !

دموردېرلوړاو غوره مقام په درناوی سره دوطن ټولومیندوته دمور دورځې مبارکی وایم. دموردمقام لمانځنه زمونږیوغوره ملی دوددی چی داسلام دپاك دین په تعالیمو او زمونږ دخلکوپه خوزره کلن ځلانده فرهنگ باندی ولاړ دی .

افغانومیندودزمانی په اوږدوکی ددغی‌خاوری له طبیعت څخه په الهام دانسانی، ټولنیزو، اوملی لوړوهیلوپه پیروی اودعصر دغوښتنو اودورځی دربښتیانو ایجاباتو له مخی دخپلی ډیری ستری وظیفی‌یعنی دوطن دزامنودروزنی په سرته رسولوکی دزړه له‌کومی او بریالی توگه خپل تاریخی اوارزښتناك رول پرمخ بیولی . سربیره پردی دکورنی دچارو پـــه سمبالتیا، دکورپه اقتصاد کی اودهیواد پـــه تولیدی چارو اوملی اقتصادکی په مستقیمی اوغیرمستقیمی ونډې اخیستوکی ددغی خاوری دمیندورول تل زیات دی .

دغه زمانه چی اوس مونږ پکی ژوندوکوو په بیلابیلوملی اوبین‌المللی سویو دډول ډول مجادلوزمانه‌ده پدغومجادلوکی بری دهغه چاپه برخه‌دی‌چی‌دشخصیت دنظرمزیاتهوړتیااوپیاوړتیا ورپه برخه وی اووکولی شی په ځانگړو او ټولنیزوملی اوبین‌المللی سویوخپلی وظیفی په ښه توگه سرته ورسوی اودخپل ځان اوخپلی ټولنی اوخپل ملت دسرلوړی سبب شی .

له لوړی اوبی وزلی سره مجادله او دیوه آبرومنده ژوندانه دتامین دپاره زیارپه تیربیا په پرمختیایی هیوادوکی نن دولسونو یوستر شعار دی .

دغه رازپه ټولوبشری ټولنوکی د ښځــو دحقوقوتامین ددغو مجادلویوه برخه بلله‌کیږی چی له نیکه مرغه افغانستان دیوه اسلامـی هیواد په توگه پدغه لاره‌کی ترټولودمخه دی.

پرهغواقداماتوچه پدغه‌برخه‌کی عملی شوی اوپه هغوپرله پسی مجاهدو سربیره چـــی دعمومی اقتصاددښه والی په لاره‌کی کیـږی دافغانستان دجمهوریت په اساسی قانون کی دبرابروحقوقو تامین اوپه هغه مدنی قانون‌کی

چی تیرکال نافذشو دښځو دحقوقو تضمیـن، هغه اساسي گامونه دي چي دښځینه برگني دبشري کرامت دساتنی‌اوددغي خاوري دمیندو ددرناوي په لاره‌کي اخیستل شویدي کولی شي دغه قانوني تضمینات دهغووظیفوپه سرته رسولوکي چی‌ورپه غاړه‌دي دښځوپه‌بري اورول کي ارزښتناکه اغیزه ولري .

دجمهوري نظام دارزښتونوپه رڼاکي چـي زمونږدټولوخلکو دملي اوعمومي گټومتضمن او دزماني د غوښتنو سره سم دي دافغانستان دنوي ټولني په جوړولوکي دگرانومینـدو او ښځووته اخیستل له دغووظیفو څخه یـوه ده چي میندي ترټولوزیات کولی شي ددغي وظیفي په سرته رسولوکي دخپل ځان او د خپلی ټولني اوخلکودلوړتیا اوسرلوړي وسیله وگرځي اودخپل هیواداوخلکو پخواني ویاړونه لاپسي زیات کړي .

دټولودرندو میندوورځ په ورځ زیاتیدونکي نیکمرغي‌په‌هیله، دوطن پالو، وظیفه‌پیژندونکو اوفداکارومیندو دبري دپاره چي خپل ژونـد دخپلوزامنو دخدمت اودخپل وطن دسرلـوړي اولوړتیادپاره وقفوي خپلی ډیري ښي هیلی څرگندوم .

# مسافرت بناغلی محمد داؤد رئیس دولت وصدراعظم به سریلانکا

بناغلی محمدداؤد رئیس دولت وصدراعظم برای اشتراك در کنفرانس سران دول و حکومات کشور های غیر منسلك در کولمبو مرکز سریلانکا قبل از ظهر ۲۴ ـ اسد ۱۳۵۵ عازم آنکشور گرد یدند •

زعیم ملی ما در حالیکه موتر حامل شان را یکدسته موتر سایکل سواران بدرقه مینمود در حوالی ساعت هشت و نیم صبح وارد میدان هوایی گردیده و متعاقباً باشاغلی محمد نعیم ،دوکتور محمد حسن شرق معاون اول صدارت‌عظمی ،بناغلی سید عبد الاله معاون دوم ووزیر مالیه ، اعضای کابینه و کیمته مرکزی ، جنرال های اردوی جمهوری و رؤسای کور دیپلو ماتیك مقیم کابل که برای وداع در میدان هوایی بین المللی‌کابل حضور بهمرسا نیده بودند ، خدا حافظی کردند •

سپس بناغلی رئیس دولت و صدراعظم در حالیکه موزیك سرود ملی جمهوری را مینواخت مراتب‌سلام و احترام گاردتشریفاتی را قبول و آنرا معاینه کردند •

رهبر انقلاب بعداً بداخل طیاره تشریف برده وتانزدیك طیاره بناغلی محمدنعیم، معاونین صدارت عظمی ، وزیر داخله ،لوی درستیز، رئیس عمومی هوانوردی ملکی و توریزم ، روسای دفتر جمهوری و دفتر وزیر امور خارجه وکابل ښاروال ، بناغلی رئیس دولت وصدراعظم را همراهی نمودند •

اعضای هیأت افغانی که بریاست بناغلی محمد داؤد رئیس دولت وصدراعظم در کنفرانس سران‌دول و حکومات کشور های غیر منسلك اشتراك نمودند عبارتند از:

# مزارشریف ته دښاغلی جمهور رئیس مسافرت

دکب ۲۹ـ۱۳۵۵

جمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد د حضرت علی کرم الله وجهه دروضې دزیارت او د شاه ولایت مآب دروضې دمبارکې جنډې د پورته کولوپه لرغونو مراسمو کې دبرخې اخیستوپه مقصد د۱۳۵۵ کال دکب په ۲۹ نیټه مازدیګر دباختر په الوتکه کښې دبلخ ولایت مرکز، مزارشریف ته ورسید.

دمزارشریف په هوایی ډګرکې والی ښاغلی محمدعالم نوابی، د بلخ ولایت عسکری قوماندان بریدجنرال فرح الدین ، ددایرو رئیسانو ، سپین ایز و مامورینو او د هغه ولایت مخورو دانقلاب دمشر هرکلی وکړ .

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد هغه وخت چه له الوتکې څخه راکوزشویوی ولی‌ماشومانو دمزارشریف دښاریانو په نمایندګی دانقلاب مشرته دګلوګیډی وړاندی کړی .

بیاوروسته دجمهوریت مؤسس په داسی حال کی چی دبلخ والی اوهغه ولایت عسکری قوماندان ورسره ملګری وودتشریفاتی قطعی سلام قبول اوهغه یی معاینه کړه.

دجمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد دسپرلی دموټرودتیریدوپه وخت کی په داسی حال کی چی دیوی ولی موټرسایکل سپرو له خوابدرګه کیده زمونږ په زرګونو هیوادوالواودبلخ‌ولایت خلکو، ښځو، نارینه‌واودښوونځیو زده‌کوونکو دزیاتواحساساتو په څرګندولو، چکچکو ا و ژوندی دی‌وی دجمهوریت مؤسس، تل دی‌وی افغانستان اوهمیشه دی وی جمهوری نظام په شعارونو اودګلو په شیندلو دانقلاب دمشر هرکلی وکړ .

ښاغلی محمد داؤدله هرکلی کوونکو سره له روغبړ څخه و روسته په موټر کښی ددوی استوګنځی ته لاړ .

زمونږ دملی مشرښاغلی محمد داؤد سره دبلخ ولایت ته پدغه سفرکی ددولت وزیر ډاکتر عبدالمجید، داطلاعات اوکلتور وزیر پوهاند ډاکترنوین ، دکانو اوصنایعو وزیر انجنیر عبدالتواب آصفی ، اودتجارت وزیر ښاغلی محمدخان جلالر ملګری وو .

دانقلاب مشر ښاغلی محمد داؤد په‌داسی حال‌کی چی له‌ده سره په سفرکی ملګری وزیران اودغه راز دبلخ والی اوددغه ولایت دعسکری قواوقوماندان له دوی سره ملګری‌وو دسهار داتوبجوپه ښاوخواکی دحضرت علی کرم الله وجهه مبارکی روضی ته تشریف

راوړ. اودخلکو چکچکو، شعارونو اووطن‌پالنې په احساساتو سره يې ډېرزيات تودهرکلی وشو، کله‌چې دجمهور رئیس ښاغلي محمدداؤد دسپرلي موټر داستوګنځي اوډشاه ولايت مآب پاکي روضې په واټ اوخط السيرکې تيريده دمزارشريف ښاريانو اودهيواد دنوروولاياتوپه زرګونوخلکوپه‌شعارونواودګلانوپه شيندلوسره احساسات څرګندکړل .

## دحضرت شاه ولايتمآب مبارکه‌جنډه پور ته کړای شوه

۱ر۱ر۱۳۵٦

دحضرت شاه ولايتمآب دپاکې روضې‌مبارکه جنډه سهار دقرآن عظيم الشان دځو آياتونو له لوستل کيدو وروسته په داسې حال‌کې چې دجمهوريت مؤسس ښاغلي محمد داؤدپه دغو عنعنوي مراسمو کــې برخــه درلوده دافغانستان دجمهوري دولت دزياتې ترقــې اونيکمرغۍ په دعادجمهوري ملي سرود لــه خپريدو اودتوپ له ډزوسره يوځای زمونــږ دوطن والوپه زرګونو تنو دځينو اسلامــــې هيوادو دزيارت‌کوونکو او ګڼ شميــر بهرنيو سيلانيانو داحساساتو په څرګنديدو خوښــې اواوړدو چکچکو سره په خاص درنښت‌پورته کړای شوه. اوله هغې سره جوخت دمزار ـ شريف دګل سرخ لرغوني ميله پيل شوه .

## دشاه ولايتمآب دمبارکې جنډې‌دپورته کيدو په مناسبت دښاغلي جمهور رئيس وينا

ګرانو خويندواووروڼو دمزارشريف ګرانو ښاريانو! له‌لوی‌خدای (ج) څخه شکر کــوم چې نن يې‌ماته وخت راکړ چې له ځوکالــو وروسته دغه تاريخي ښارته راشم اوله‌تاسې سره وګورم ستاسوله فوق العاده تودو اوله مهربانۍ ډکواحساساتو اومننې څخه دزړه له کومې دخپل ځان اوهغوملګروله خواکوروداني وايم چې له ماسره ملګري دي .

زمادپاره بله خوښي داده چې نن په دغه سپيڅلي ځای‌کې چې داسلام دستر خليفــه آرامګاه ده دنوی‌کال دپيل کيدوپه مراسموکې چې دافغانستان دملت يولرغوني دود دی‌برخه واخلم‌او دزړه له‌کومی‌خپلو ګرانو خويندواو وروڼوته خوکلمې څرګندې کړم .

په دريوکلونو او اتومياشتوکې يعنــې د ۱۳۵۲ کال دچنګاښ دشپږ و يشتمې نيټــې دانقلاب دلومړۍ ورځې څخه دورې ترلومړې دهدفونو د مينځ ته راتلو دعلت پــه باب‌او دغه باره کې چې زمونږ راتلونکې به‌څه ډې

اوهم مونږ دخلکودپاره او دافغانستان دملت دپاره بهٔزمونږ هیلیٔخهوی له همهغه پیــل څخه وخت پهوخت دگرانو وطنوالوپه خدمت کی مطالب څرگند کړی اوهیڅ شی موپټندی پرینبی.

تل می دزړه لهکومی اوپه څرگنده لهجه د افغانستاننجیب خلك دخپل ځاندافغانستان د دولت اوحکومت اوخپلوتو لوملگرو پــه ښوهیلواوارزوگانو باندی خبر کړیدی .

زمادرندو خویندو او وروڼو اّنهٔغواړم نوی کال پدیوږخ ستاسی قیمتداره وخت چــی دحضرتعلی کرم الله وجهه دسپیڅلی روضی دزیارت او مبارکی جنډی دپورته کیدودپاره پدی ځایکی راټول شوی یاست د خپلــو خبروپه تکرار سره تیرکړم ،یوائحی دومـره غواړم ووایم باید وپوهیږو چی د افغانستان ملت په خپله لهٔویاړ نهٔوك تاریخی اوستــر اولرغونی دو دونه لری .

همدغه ځایچی نن‌مونږ اوتاسی پکیراټول شوی یوددی ملت دلرغونی تاریخ ډیر ښه اوستره نمونه ده • یعنی زوړ باختر هــــغه باختر چیپه‌هغه باندی یی‌ام‌البلاد نوم ایښی دی .

دادنیا چی مونږ اوتاسی په کښی ژونـد کووو دخوب اوخیال دنیانده داسی دنیانــده چیمونږ هرڅه پهٔتصوراتو اوخوب او خیال کییی ووینودهر مسلمان اوهرایمان لرونکی انسان وظیفه ده چی تل دخپل لوی خدای په حضورکی دعاوکړی او دهغه لهٔدربار څخــه تل مرسته اوپایداری وغواړی لههم هغهلوی خدای څخه چیخپل بندهٔته یی‌امر کړیدیٔته باید حرکت وکړیچیله ماڅخه برکتووینی.

کهٔڅه هم حقیقت ویل ډیرترخه دی خــو شریف‌انسانان او ملتونه تل هغه کسان‌دی چی پهٔخپلونواقصو، خطاگانو، وروسته پاتـی کیدو اوکډو دیوباندی اعتراف وکړی. هغـه کسانچی پهٔحقایقواو واقعیتونو باندیاعتراف نهٔکوی په حقیقت کی خپل ځان غولوینهٔدنیا مونږبایدٔ اعترافوکړوچیلهٔبده مرغهٔدافغانستان نجیب ملت چی دبدبختیو یوه او بډه دوره یی تیرهٔکړیده اوپه تیره بیا دامپریالیزم او استعمار دوری د دغه هیوادپهٔبدن درانــــده داغونه پریښی دی. چی دنړی لـه نـــورو ملتونو څخه دکلونو او کلونو وروسته پاتی کیدوسبب شویدی، لاکن دافغانستان ملتتل یو ویاړ درلوده اودغهٔافتخاریی داو او وی‌به چی هرډول قربانی اوټولی بدبختــی ومنــی خوهیڅ وخت خپل ملی شرافت ،ملیخپلواکی اوملی کرامت لهٔلاسه ورنکړی .

گرانو د وستانو اّدتاریخ دغه دوری دغه لوړی ژوری تلدملتونو په ژوندانه کیشتـه اوتل‌بهٔوی خودملتونو قوی ایمان او لـــوړ همت کولی شیدغه وروسته پاتی کیــدل تلافی کړی .

دگران افغا نستان دپرمختگ ، نیکمرغـی اولوړتیا دپاره یوائحی دقوی ایمان درلـودل دربښتیانی فکر اوعمل یووالی او دزړهٔدکومی هیله پهٔکارده .

گرانو دوستانو! نن په سحراوجادو باندی دباوروخت ندی‌چه‌گمان وشی ټول شیان په یو وار سره بدلیږی او کـولی شـو ټولـی وچی اوشاړی دښتی په‌یوی تازگی سره په کښت زار بدل کړو حقیقت دادی چـی نـن ټولو دمخه زمونږ ملت یووالی اوقوی ایمان ته اړدی . خکه ددی خاوری دښمنانو په پیړیو پیړیو زیاروپستلی دی دنفاق تخم وشیندی، ناوړه تفاهمونه پیداکړی چی په خپله تـری گټه واخلی او دافغانستان نجیب ملت لـه زرگونو ستونزو سره مخامخ کړی او زمونږ دننیو وروسته پاتی کیدو سبب شی .

ښه‌به داوی چی یوځل خپل تاریخ وینو اوداپکی ولټوو چی کومه ورځ زمونږدبدبختی ورځ وه اوکومه ورځ هغه‌ورځ وه‌چی مونږ یو حرکت اوعمل‌ترسره کړیده چه زمونږ دنـن ورځی اوراتلونکی نسلونو دویاړ سبب دی.
گرانو خویندواو وروڼواگه‌چیری خپل تاریخ ته‌ښه ځیرشو وینو هروخت چی دافغانستان ملت په رښتیانی یووالی سره یوعمل سرته رسولی دی هغه وخت زمونږ دهیواد دتاریخ ډیره ځلانده دوره ده زمونږملت په یووالی اوقوی ایمان اویوه ملی حرکت سره ددی‌چی توان یی نه درلود وکولی شول دوخـــت دامپراطوری دوډیرستر قـدرت پـه وړانـــدی ودریږی .

ډیروگرانو دوستانو! مونږ باید دخپلـو وروسته پاتی کیدواوبدبختیو دلری کولودپاره دوخت اوزمانی له غوښتنوسره سم خپل ځان عیارکړو یوه ټولنه نشی‌کولی دنړیوال حرکت دتگ لوری په خلاف یوه جلالاره ووهی اویا ددنیادطبیعی حرکت اوجریان خنډشی زویوملت هغه وخت کولی شی خپل وروسته پاتی‌کیدل تلافی کړی چی دزمانی له جریان سره جوخت گام واخلی اوداسی لیاقت وکړی چی دیـو شریف اوآبرومند ملت په توگه دنړی دولسو ترمینځ شرافتمندانه ژوند وکړی .

یوځل بیادمزاردښاریانو اوډټولوهغوخویندو اوروڼوله فوق العاده احساساتو ځخه چـی نن دهیواد له هرگوټ ځخه داسلام د سترخلیفه دسپیځلی روضی دزیارت دپاره دی ځای ته راغلی دی دزړه له‌کومی تشکرکوم اودوطـن دیوه خدمتگار په توگه دیوی شپږ کلنی دوری دپاره زماپه ټاکلوکی دافغانستان دنجیب‌ملت قدردانی اوباورځخه ستاسی هریو وگړی ته دزړه له‌کومی خپل تشکرات ځرگندوم دهغـه لوی خدای له درباره ځخه چی زه اوتاسی یی پیداکړی یواوپه پای‌کی به مونیست کــړی اوداسلام دستر خلیفه دروح په برکت توفیق غواړوچی په پوره صداقت اوایمان پـه ټول بشری قدرت اوتوان سره دگران افغانستان دسرلوړی ، نیکمرغی او پرمختگ په لاره‌کی خدمت وکړای شم .

# جوزجان ته د ښاغلي جمهوررئيس مسافرت

ښاغلي جمهور رئيس او ددوی ملگــرو دحضرت علي کرم الله وجهه دمبارکې جنډې دپورته کيدوپه مراسموکې له برخې اخيستو ددغه نومیالي روح ته له دعا کولو وروسته دخلکودتودواوله شوراوزوږنه ډکو احساساتو ترمينځ دجوزجان دولايتدنفت اوگازدتأسيساتو دکتنې دپاره په هليکوپترکې دجوزجان ولايت ته تشريف يوړ .

دجمهوريت دمؤسس اودوی دملگرودسپرلۍ هليکوپترونه دسپاردلسو بجو اولسو دقيقــو په شاوخواکې دخواجه گوگردك ساحې ته‌نژدې ځمکې ته راکوزشول اوکله چې زموږملي‌مشر له هليکوپترڅخه راښکته شودجوزجان والــي ښاغلي محمدگل نجيب له‌خوايي هرکلي وشو.
وروسته بياښاغلي جمهور رئيس او ددوی ملگروپه خواجه‌گوگردك کښې دگاز دچــاڼولو بيلابيلې برخې په داسې حال‌کښې دافغانــي ماهرانو او مربوطو موظفينوله خوا تو ضيحات وړاندې کيدل وليدلې .

ښاغلي محمد داؤد ددغو سيمو دکتنې پـه پای کښې په داسې حال کښې چه دخواجـه گوگردك دچان خاني له هريوکارکوونکو سره روغبړکوه پدغه برخه‌کښې کورنيو اوبهرنيــو کارکوونکو ته دخپل رضايت مراتب څرگنـد کړل اوهمغوی دورسپارل شويو وظيفودسرته رسولو دپاره له پخوانڅه زيــات تشويــق کړل اومهربانۍ‌يې پرې وکړه .
ښاغلي جمهوررئيس اوددوی ملگروروسته بياپه هيلکوپتر کښې دقشقرې ساحــې تــه تشريف يوړ اوپدغه ځای کښې دتيلو لوړې اوددوم هم نمبر څاگانې وليدلې .
کله چې دانقلاب مشر پـه قشقرې کښــې دتيلو دبرمه کارۍ دساحې بيلابيلې برخــې ليدلې د مربوطو موظفينو له خوا تو ضيحات ورکول کيدل .

ښاغلي جمهوررئيس دغرمې ډوډۍ دقشقرې دساحې دپروژې له کاريگرو سره چه‌دلومړۍ اودوهم لمبر څاه دبرمه کارۍ اوپلټنې په‌کار گمارل شوي وخوړه .

جمهور رئيس ښاغلي محمدداؤد تر غرمــې وروسته په دووبجو دشبرغان له ښاريانوسره ددغه ښارپه ورزشي ستديوم کښې وکتل .
زموږملي مشرووروسته له هغه چه‌جمهوري ملي سرود خپورشو دشبرغان ښاريانو ته په خطاب کښې وفرمايل :
گرانوخوينډو اووروڼو !
تر ټولو دمخه تاسې ته دنوی‌کال مبارکي‌وايم اوله لوی خدای څخه زموږدوطن دنيکمرغۍ اودگران افغانستان لوړتيا اوسرلوړی دپــاره دښوکلونو هيله کوم .
گرانو دوستانو ستاسو له تودواودوستانه

احساساتو اوله‌هغه تاوده هرکلي څخه‌چي‌خپل يوه خدمتګارته ايل ياست دزړه له‌کومي خوښ اوخوشحاله يم لوی خدای‌دی تاسو او مونږټولوته توفيق راپه برخه کړی چه‌دخپل وطن دنيکمرغی او لوړتيا دپاره چه زمونږ او ستاسو دټولوګوردی په صداقت اوايمانداری ټينګ عزم اوپوره يوالي سره‌کاروکړو، زيار وګالو ،وکوشش وکړوچه يوه ورځ خپل وطن لاآبادلاسمسور اولاپرمختللي ووينو .

داچي نن زمادپاره لنډوخت پيداشو چه‌له تاسودوستانوسره وګورم ، زمادپاره ددېرې خوښی اوخوشحالی ځای دی زه تاسوته وعده درکوم چه په يومساعد وخت‌کښي بياهم له‌تاسوسره اوږده کتنه اوليدنه وکړم .

ستاسی ددولت هدف‌اوزحکومت اودهغوکسانو هدف‌چه‌نن‌يی مسئوليت‌په غاړه اخيستي د ی دافغانستان دخلکو اکثريت ته خدمت‌دی .

باوروکړیء ترکومه ځايه پوری چه زمونږ په‌وس اوقدرت پوری‌وی خپل وطن اووطنوالو ته موخدمت‌کول نه‌دی سپمولی اونه به يي وسپموو لاکن بايد تاسي ته‌ووايم که‌چيری يوملت وغواړی پرمخ لاړشي او خپل ځان پرمختللی نړی سره جوخت‌کاندی بايدايثار اوله‌ځان څخه تيريدل ومني اوکه نه امکان نشته نورخلك زمونږوطن چه زمونږ اوستاسو ګډکوردی‌آباد کړی .

دوطن آبادول په خدای باندی ايمان، لوړ همت اودملت دهرو‌کړی نه‌ستړی کيدونکی زيارغواړی .

له لوی خدای څخه هيله‌کوم‌چه دافغانستان ملت ته توفيق ورپه برخه‌کړی چه دخپل وطن دلوړتيااوسرلوړی دپاره دزړه دکومي دهيڅ ډول دځان ځانی اوشخصی اغراضو پرتـه خدمت وکړی اووطن دمقصدمنزل ته‌ورسوی.

پدی پيړی کښي ديوه ملت دپاره ژوندله کاراوزيار څخه پرته امکان نلری اوکه چيری بياهم ژوندی پاتی کيدل ممکن وی نـولـه مصيبتونو اوبدبختيو څخه به يوډك ژوندوی.

زماګرانو خويندو اووروڼو! په مونـږ او تاسی ده چه ټول يوبل ته سره لاس ورکړو اويوموټی اويولاس په پوره ايمان اويووالی سره دخپل وطن دخدمت دپاره د لوی‌خدای په توکل پرلامخ لاړشو. خدای‌دی دغه ملت لکه څنګه چه دتاريخ په ټولو دوروکښي يي تل له وياړنه ډك ژونددراوده تل سرلـوړی اونيك‌نامه ولری .

دجمهوريت مـؤسس د شبرغـان دښار اوسيدونکو داحساساتو ځپو کـی په داسـی حال‌کی چه‌په اوږدو چکچکو دګلانوپه شيندلو اوژوندی دی وی دانقلاب مشر اوسر لـوړی دی‌وی‌افغانستان جمهوريت په شعارونو سره بدرګه‌کيده دشبرغان له ورزشي لوبغالی څخه ووت . کله چه دجمهوريت مؤسس دستديوم څخه دهليکوپتر لورته تشريف يووړ دسيمی دخلکوله خوايي تودهرکلي وشو اوله هريوه سره يی روغبړ اوداحوال پوښتنه وکړه .

ښاغلي جمهوررئيس اوددوی ملګری تـر غرمی وروسته دخلورو بجوپـه شاوخواکښي

مزارشریف ته ستانه شول اوهغه ستره وزلو په‌یې ولیدله چه‌دبلخ، مزارشریف، دولت‌آباد چاربولك، چمتال اوشولگری دټیمونو ترمینځ دشادیانو دبنته کښی وشوه . کله چه ښاغلی جمهوررئیس دوزلوبی دننداری دپاره دشادیانو دبنتی ته تشریف یووړ زمونږ په زرگونو تنووطنوالوچه دگل سرخ په میله‌کی دبرخی اخیستو دپاره مزارشریف ته تللی‌وو ددوی دپیرزیات تودهرکلی وکړ .

ښاغلی محمد داؤد اوددوی ملگرو بیگاشپه په مزارشریف‌کی اقامت درلود .

دجمهوریت مؤسس ښاغلی محمدداؤدمازدیگر په‌پنځه نیموبجو دحضرت علی کرم الله‌وجهه مزارته تشریف یوړاودهغه حضرت روح ته‌یی درود ولیږه اودعایی وکړه .

جمهوررئیس ښاغلی محمدداؤداووروسره ملگرو یی دماښام په شپږنیموبجو دسری اوحرارتی برښنادفابریکو بیلابیلی برخی وکتلی .

پدغه وخت کښی اړوندو ماهرانو دانقلاب دمشر حضورته لازم توضیحات عرض‌کول .

ښاغلی محمدداود په هغه میلمستیا کی برخه اخیستی وه چه دبلخ دوالی له خوا ددوی په‌وياړ شوی وه .

دجمهوریت موسس ترغرمی دمخه دبلخ دولایت دعسکری قواووله منصبدارانوسره وغږید اودغه رازددغه ولایت دجن او پرس اونساجی فابریکی یی ولیدلی .

کله چه زمونږملی مشر ښاغلی محمدداؤد دبلخ دولایت عسکری قواوو د گارنیزیون دروازی ته ورسید موزیك جمهوری ملی‌سرود وغږاوه اودجمهوریت مؤسس دتشریفاتی‌قطعی دسلام اواحترام مراتب ومنل اوهغه یی‌معاینه کړل .

هغه وخت چه زمونږملی مشردبلخ‌دعسکری قواؤدسینما تالارته ورسیدل ټول منصبداران اوقوماندانان ودریدل داحساساتوپه خرگندولو چکچکو او زیاتی خوشحالی سره یی ددوی هرکلی وکړ. وروسته بیادبلخ دعسکری قواؤ قوماندان بریدجنرال فرح الدین دانقلاب دمشرورتگ ته ښه راغلاست ووایه .

دانقلاب مشر، وروسته بیا دعسکری قواوو، دسینماپه تالارکی، له منصبدارانو سره دکتنی په ترځ‌کی هغوی ته‌په خطاب‌کی وویل :

ډیروگرانو ورونو !

دافغانستان دمیړنی اردوباشرفو منصبدارانو اوقوماندانانو !

نن ستاسی له لیدواوله تاسوگرانو ورونو سره دکتنی له امله ډیرزیات خوښ او خوشحاله یم .

گرانومنصبدارانو! تاسی په‌حقیقت‌کی ددغی خاوری دخپلواکۍ ، شرافت، همت اوناموس ساتوونکی یاست .

لوی خدای ته شکرکوم چه دافغانستان قهرمان اردو، حقیقتادیوه بنیادی او مترقی تحول دمینځ ته راوستو دپاره رادمخه شوی اودغه‌ویاړ دافغانستان اردوته ورپه برخه دی.

گرانووروڼو! باورلرم چه دافغانستان داردو دغه خدمتونه به هیڅ وخت دهیوادپه تاریخ کی هیرنه شی او افغان ملت به‌هیڅ‌وخت خپل

دغه شان یوقهرمان اوزړه وراردودخپل احترام له نظرڅخه لیری نه‌کړی .

تل دگران هیوادپه میړنی اوزړورارډوباندی باورلرم اودهغه احترام اومینی ته‌می په‌زړه‌کی ځای ورکړی دی .

لوی خدای دی مونږاوتاسوټولو او ټولـو هغوکسانوته‌چه نن دخپل هیواد دوظیفو دسرته رسولو مسئول یوتوفیق راکړی چه حقیقتـا هغه احترام اوباورچه دافغانستان نجیب ملت زمونږپه غاړه اچولی، هغه‌په‌سمه اوفوق‌العاده توګه په‌ایمان‌اوامانت‌داری سره‌سرته‌ورسوواو وکولی شویوه ورځ خپل دغه وطن هغه وطن چه نن له‌بل هروخت نه‌زیات دهیواد دټولـو وګړونه ستړی کیدونکی زیاراوکوښښ ته‌اړ دی دترقی اوپرمختیاپه لویه لارروان کړوچه البته دغه‌کارله ایثاراوځان ځخه تیریدو پرته نشی کیدی .

له نیکه مرغه اوس په خپل مخکی داسی خوانان وینم چی ټول په‌لوړزده‌کړو او ښـو علمی پانګو سمبال دی .

پدی‌کی شك نشته تاسی اوس په هغـه پړاوکی یاست چه‌ښه اوبدسره پیژندلی‌شی اوخپل هیوادله نوری نړۍ ســره ډیرښـه پرتله کولی شی، نوتاسی بایـد خپلـو مسئولیتونو ته له ځنګه چه ښایی له پخوانه زیات پام‌وساتی .

ګرانوورونو! لکه چه بیابیامی ویلی دی، یوځل بیاغواړم پدغه ټکی ټینګار وکړم چـه دهیواددګټوډیو اووروسته پاتی‌کیدودلری‌کیدو دپاره بایدکارته ملاوتړواووخت له لاسه ورنه کړوځکه دافغانی نوی ټولنی بیاودانول دهیواد دټولووګړو عسکری وی اوکه ملکی، پرله‌پسی زیارته اړدی، البته دوطن په آبادی‌کی دهر وګړی ونډه‌کوچنی وی‌که لوی، په خپله‌اهمیت لری، اوبایدپه درنده سترګه ورته وکتل شی.

دیوی ټولنی پرمختیا اوپرمختګ په تیـره بیاانقلاب دهدفونو اوملی ارمانونو پوره‌کیدو دپاره یوازی کوچنی ګامونه نه بس کیـږی بلکه پرله‌پسی هلی ځلی کولی شی هو نږ مقصدته ورسوی .

ګرانوورونو! که ربښتیاغواړی چه زمـونږ هیوادآباد شی اوپه ربښتیا زمونږ اردو یـو عصری اوسمبال اردووی تاسی ته بایدووایم چه ترټولودمخه دملی انقلاب په هدفونوباندی پوهیدل ضروری دی اوپس له هغی کولی‌شو دلوی خدای (ج) په توفیق دخپلوسپیڅلواو ملی هدفونو په سرته رسیدویوپه بل پسی بریالی شو.

پوره ایمان‌لرم چه‌افغان میړنی اردوتل په ورسپارل شویو چاروکی مخکی دی اووی به او امیدلرم‌چه بیاهم‌فداکاراردودوطن دپرمختګ اولوړتیادهغه دزیاتو ترقیو دپاره نه یـوازی ددغی خاوری ساتنه اوپالنه خپله وظیفه‌وبولی بلکه باید دصادقو فداکارو اوایمان لرونکو زامنو په توګه دهیواد په‌ریفورم اوآبادی‌کی زیات کوښښ وکړو .

ګرانوورونو ! لکه ځنګه چی‌می ویلی دی له ډیروکلونو راهیسی دهیواد له اردو سره مینه‌لرم، زمادپاره ډیرښه ویاړدادی چه دیوی

سرباز اوديوه قوماندان په توگه دافغانستان په اردوکی‌می خدمت‌کړی اوترپایه پوری به دغه وياړته په‌درنده سترگه گورم .

دافغانستان دنجیب قهرمان اوفداکار اردو افرادله هغی ثانیی څخه چه دانقلاب غږاو د جمهوری نوی رژیم اعلام یی واورید، دهیواد په هره سیمه اوهره وظیفه کی چه وو پــه پوره ایمان اوصداقت سره دجمهوری نظـام په ټینگتیا اوټینگښت کی یی زیارووېست .

یوشمیر غیرملی عناصــروپه دسیسو سره غوښتل چی دافغانستان دملی انقلاب او رژیم په ضدعمل وکړی خوبیا هم دافغـــانستـــان دفداکاراردوپه جدیت اوبیداری سره دهغوی منفی حرکات شنډشول او دهغـــوی دسیسی کشفی شوی .

وروسته له‌هغه زموږملی مشرپه داســی حال‌کی چه دبلخ والی ښاغلی محمد عالــم نوابی دهوایی اوهوایی مدافع لوی قوماندان ډگرجنرال محمدموسی، دبلخ دولایت دعسکری قواؤ قوماندان بریدجنرال فرح الدین له‌دوی سره ملگری وو، دبلخ دعسکری قومانداني بیلابیلی برخی ولیدلی .

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد ترغرمــی دمخه دلسوبجوپه‌شاوخواکی پداسی حال کی چی دکانواوصنایعو وزیر ا نجنیر عبدالتواب آصفی له دوی سره ؤ دبلخ دجن او پـرس دتصدی دریاست مربوط دنباتی غوړیوفابریکه ولیدله، دفابریکی دروازی ته دانقلاب دمشر درسیدوپه وخت کښی کارگراٖو ژوندی د ی وی‌ملی مشر، تل‌دی‌وی جمهوریت، په‌شعارونو اوچکچکو اودگلانوپه شیندلوسره دملی مشر ډیرزیات تودهرکلی وکړ .

ښاغلی جمهوررئیس په هریوه‌کاریگرباندی مهربانی وکړه اودهغوی احوال یی وپوښــت کله چه ښاغلی جمهوررئیس دبلخ دنباتـــی غوړیوفابریکه ولیدله دجن اوپرس دتصــدی درئیس اومربوطو موظفینو له خواتوضیحــات ورکول کیدل .

وروسته بیا دجمهوریت مــؤسس د بلــخ دنساجی دفابریکی پراختیایی او تــولیـــدی دستگاوی ولیدلی . دبلخ دنساجی فابریکــی کارگرانو اومنسوبینو دملی مشر درانگ پــه وخت‌کی په خوښی او خوشحــالی اواوږدو چکچکو سره ددوی، هرکلی وکړاو فابریکــی ته‌یی ددوی ورتگ ته ښه راغلی ووایاست، ښاغلی جمهوررئیس ددغی فابریکی بیلا بیلی برخی په‌خاصه مینه ولیدلی او د فابریکـــی درئیس اوموظفینو توضیحات یی واورید .

تصاویری از خاطره های مسافرت

# ښاغلی محمّد داود رئیس جمهور

به ولایات بلخ و جوزجان

# د جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد مسافرتونه

ښاغلي محمدداؤد اوددوی ملګرو پــه مزارشریف کښې دغرمې دوډۍ له خوړلـو وروسته دماسپښین په دریوبجو کله چه ددوی دسپرلۍ موټردکابل لورته دراتګ په مقصد دمزارشریف دهوایي ډګرپه لاره روان ؤدلاری په سریې دجن اوپرس فابریکه هم ولیدله.

فابریکې ته دانقلاب دمشر، درسیدوپه وخت کې کارګرانو زمونږ دملي مشرډیر زیات تود هرکلی وکړ .

ښاغلي جمهوررئیس دکارګرانو له تود او وطن پالنې له تودواحساساتو څخه دزړه لــه کومې تشکر وکړ اودهغوی دوظیفوپه پرمختګ کې یې دهغوی دزیات برې هیله وکړه .

پدغه وخت کې دجن اوپرس دفابریکې یوه کاریګر ښاغلي وفانجفي هغه یوه ټوټه شعر چه دافغانستان دجمهوری انقلاب، په بـاره کښې یې ویلیؤ ولوست چه دهر کلــی وړ وګرزید .

کله چه ښاغلي جمهوررئیس اوددوی پـه سفرکښې ورسره وزیران دمزار شریف لــه ښارڅخه کابل ته روانیدل دمزار شریف او زمونږدهغووطنوالوپه زرګونوتنه چه دګل سرخ په میله کښې یې برخه اخیستې وه دوا‌ړونوپه دوډوغاړوکښې لیکه ولاړوو اوله شور اوزوږ څخه په ډکــو احساساتو اوږوندی دی وی دجمهوریت مؤسس په ناروســره یې دوی بدرګه کړل .

جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤ او ددوی ملګری دحضرت شاه ولایتمآب حضرت علی کرم الله وجهه دپاکې روضې دمبارکې جنډې دپورته کیدوپه عنعنوی مراسمو کې له‌برخې اخیستلو دبلخ اوجوزجان دولایاتودځینوپروژو دکتنې وروسته مازدیګر دپنځو بجوپه شاوخوا کې په‌الوتکه کې له مزارشریف نه‌کابل تــه راستانه شول .

دکابل په بین المللي هوایي ډګر کــې ښاغلي محمدنعیم، دکابینې‌غړیو، سترو‌عسکری اوملکي مامورینو زمونږ دملي مشر هرکلــی وکړ .

# شوروی اتحاد ته د ښاغلي جمهور رئيس مسافرت

۲۳ر۱ر۱۳۵٦

جمهور رئيس ښاغلي محمد داود دشوروی سوسیالستي جماهيرو د اتحاد دعالي شورا درئيسه هيات او حکومت په بلنه د يوه رسمي او دوستانه سفردپاره د ۱۳۵٦ کال دوری په ۲۳ د(۱۹۷۷) کال داپریل په ۱۲ نيټه ترغرمی دمخه دآريانا افغان هوايي شرکت په الوتکه کی مسکوته روان شو.

د جمهوريت موسس ښاغلي محمد داؤد دنوی بجواوپنځه خلويښتو دقيقوپه شاوخواکی دکابل بين المللي هوايي ډګرته ورسيد اوله ښاغلي محمدنعيم ،دکابينی له غړيو،دجمهوری دولت دوسله وال پوځ، لوی درستيز، جنرالانو او منصبدارانو ،سترو ملکی مامورينو اوپه کابل کی دشوروی اتحاد دلوی سفارت له شارژدافير سره چی ژمونږ له ملي مشرسره دمخه ښی دپاره ورغلی ووخدای په اماني وکړه.

وروسته بيا ښاغلي جمهور رئيس پسرله هغه چی موزيك ملی سرود وغږ اوه دجمهوری تشريفاتو دګارد داحترام مراتب ومنلی او هغه يې معاينه کړه .

جمهور رئيس ښاغلي محمد داؤد کله چه دجمهوری تشريفاتی ګارد احترام منی



وریسې ښاغلی محمدداؤد د الوتکې لورته لاړ او د الوتکې پوړې ښاغلی محمد نعیم. د ملي دفاع وزیر ډګر جنرال غلام حیدر رسولي، د مالیې وزیر ښاغلی سید عبدالله د دولت وزیر ډاکټر عبدالمجید، د کورنیو چارو وزیر ښاغلی عبدالقدیر، کابل ښاروال ډاکټر غلام سخي نورزاد، د جمهوري دفتر رئیس ښاغلی محمد اکبر او په کابل کې د شوروی اتحاد د لوی سفارت شارژ دافیر زمونږ له ملي مشر سره ملګری وو او د دوی د پاره یې د ښه سفر هیله وکړه .

د جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد د زولنه هغوی سره د ملګری هیات د سپرلي الوتکه تر غرمې دمخه په لسو بجو د کابل له بین المللی هوایی ډګرڅخه د مسکو په لور والوتله .

په دغه سفر کې له جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد سره دغه کسان ملګری وو .

د تجارت وزیر ښاغلی محمد خان جلالر د پلان وزیر ښاغلی علی احمد خرم، د اوبو او برېښنا وزیر انجنیر جمعه محمد محمدی د بهرنیو چارو د وزارت د سیاسي څانګې مدیر ښاغلي وحید عبدالله د سیاسي نوی مدیر ښاغلی عبد الصمد غوث، د بهرنیو چارو د وزارت د تشریفاتو رئیس ښاغلی میر شمس الدین د بهرنیو چارو د وزیر د دفتر امر ډاکټر محبوب رفیق، پوځي مشاور برید جنرال بابه جان د بهرنیو چارو د وزارت د اقتصادي اړیکو د لوی مدیریت وکیل ډاکټر عبدالفرید رشید، د بهرنیو چارو د وزارت د دریمې سیاسي څانګې مدیر ډاکټر محمد رفیق شمریز . یاوران ډګرمن مرتضی قل او لومړی بریدمن عبدالمجید او د بهرنیو چارو د وزارت یو شمېر نور مامورین.

دغه راز د باختر آژانس د ریاست وکیل

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد د تاشکند هوایی ډګر ته د رسېدلو پر وخت کښې د شوروی ازبکستان د عالي شورا رئیسه هیات د صدر له خوا تود هرکلی وویل شو .



ښاغلی غلام رسول یوسفی په مشری دخبر یالانو، فوتوراپور ترانو ، او دفلم اخیستلو دیونت په ګډون یومطبوعاتی هیات شوروی اتحادته په سفرکی زمونږ له ملی مشر سره ملګری وؤ .

د جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد اوله دوی سره ملګری هیات دسپرلی الوتکه دافغانستان په وخت ترغرمی مخکی دیوولس نیمو بجو پهشاوخواکی دلنډی مودی دتم کیدو دپاره په تاشکندکی راکوزه شوه.

دتاشکندپه هوایی ډګرکی ښاغلی جمهور رئیس ته دشوروی ازبکستان دعالی شورا درئیسه هیات صدر ښاغلی نظر متچانوف د صدراعظم ښاغلی خدای بردی یوفدبهرنیو چارو دوزیر ښاغلی تورسونوف او ددغه جمهوریت دیوشمیر نورو شخصیتونو اوپه تاشکند کی داوسیدونکو افغانانو له خواتود هرکلی وویل شو .

زمونږ ملی مشر په تاشکند کی د غرمی ددوډی له خوړلو وروسته دافغانستان پهوخت په دولس نیمو بجو دمسکو په لور خپل سفرته دوام ورکړ .

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد ته مسکوته درسیدو پهوخت کی د شوروی سوسیالیستی جماهیرو داتحاد دمشرانو له خواتود هرکلی وویل شو. دجمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد اوله دوی سره دملګری هیات دسپرلی الوتکه د افغانستان په وخت دخلورنیمو بجو په شاخواکی دونوکوا هوایی ډګرته ورسید .

کله چه د جمهوریت موسس ښاغلی محمدداؤد له الوتکی څخه ښکته شول . د شوروی سو سیالستی جماهیرو اتحاد دعالی شورا رئیسه هیات صدر ښاغلی نیکولای پود ګورنی ،صدراعظم ښا غلی الکسی کاسګین، دبهرنیو چارو وزیر ښاغلی اندری ګرومیکو دوزیرانو دشورا نورو غړیو او ددغه هیواد څینو نورو سترو شخصیتونو اودغه رازپه مسکو کی د افغانستان دجمهوری دولت لوی سفیر ډاکتر علی احمد اوپه کابل

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤدداودشوروی اتحاد دعالی شورا درئیسه هیات صدر نیکولای پودګورنیدونوکوا پههوایی ډګر کی دهرکلی کوونکـواحساساتو تهځواب وایی .



کی دشوروی اتحاد لوی سفیـــر ښاغلـــی الکساندر میخائیلو ویچ پوزانـوف دښـاغلی جمهور رئیس هرکلی وکړ اومسکوته یـــی د دوی دورتگ له امله ښه راغلی ووایه .

ورو سته ښیا جمهور رئـیس ښاغلـــی محمد داؤد له‌دوی سره ملگری هیات‌دشوروی اتحاد د عالی شورا درئیسه هیات صدر تـه ورو پیژانده اوپس له‌هغه یی د ښا غلـــی پودگورنی په ملگرتیا پداسی حـال کی چی موزیك د افغانستان د جمهوریت ملی سرود او دشوروی اتحاد ملی سـرود وغــــږاوه د تشرفاتی گارد د احترام مراتب وملل اوهغـه یی معاینه کړ.

وروسته ښیاجمهور رئیس ښاغلی‌محمدداؤد له نورو هرکلی کوونکو ،د افغانی سفارت‌له غړیو اوپه مسکوکی د اوسیدونکو افغانـــی محصیلنو سره‌روغبړ وکړ اودمسکو دښاریانو دیوی ټولنی له خوایی چی دغی ستر ښـــار د اوسیدونکو په نمایندگی دونوکوا هوایی

پرته‌ورغلی وُ دتودواحساساتوپه خرگندویدو چکچکو اود دواړو هیوادو دملی بیرغـونوپه رپولو ا ودښه راغلاست په شعارونو سـره هرکلی وشو.

پدغه وخت‌کی یوشمیر ماشو ماتودگلانـــو گیډی دښاغلی محمد داؤد حضورته وړانـدی کړی .دهوایی ډگر له مراسمو ورو ستـــه دجمهوریت موســـس او د شوروی اتحاددعالی شورا د رئیسه هیات صدر پداسی حال‌کی چی ددوی دسپرلی موټر دیوی ډلی مـوټـر سایکل‌سپرواله خوابدرگه‌کیده دکریملین پـه ماڼی کی خپل استوگنځی ته روان شو .

دونوکوا دهوایی ډگر سیمه ددواړو هیوادو په‌ملی بیرغونو ښکلی کـړی شـوی وه اود افغانستان ددوست هیوادجمهور رئیس‌ښاغلی محمد داؤد ته سلام اوښه راغلاست شعارونه دهوایی ډگر په ترمینل کښی لیدل کیدل .

دغه رازکله چی زموږ دملی مشردسپرلی موټر دهوایی ډگراودکریملین دماڼی تر مینځ

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد مسکوته درسیدلو په‌وخت‌کی‌په هوایی ډگرکی دشوروی اتحاد دمشرانو له خواتود هرکلـی‌ویل شو .



واټونو کی تیر یده په هره برخه کی د مسکو ښاریانو د واټونو په دواړو غاړو کی په چکچکو سره شوروی اتحاد ته دافغانستان دجمهوریت د موسسس و رتګ ښه راغلی ووایه .

جمهور رئیس ښاغلی امحمدوٌد دافغانستان په وخت د ۱۳۵۶کال دوری په ۲۳ د(۱۹۷۷) کال داپریل په ۱۲ نیټه مازدیګر په شپږو نیمو بجو د شوروی سوسیالستی جماهیـــر د اتحاد له مشرانو سره دخپلو خبرو لومړی پړاو پیل کړ .

پدغه خبروکی له افغانی لوری د تجــارت وزیر ښاغلی محمد خان جلالر ، دپلان وزیر ښاغلی علی احمد خرم، او دابواو برښنـــا وزیر انجنیر محمدی ، دبهرنیو چارودوزارت مرستیال ښاغلی وحید عبدالله، په مسکوکی دافغانستان لوی‌سفیرډاکتر علی احمد،سیاسی لوی مدیرښاغلی عبدالصمد غوث دبهرنیوچارو دوزارت داقتصادی‌لوی‌مدیروکیل‌ډاکترعبدالفرید رشید .د سیاسی دریمی څانګی مدیر ډاکتر محمد رفیق شمریز اودبهرنیو چارو دوزارت دمخصوص دفتر مرستیال ښاغلی عبدالاحـد ناصر ضیایی برخه درلوده .

دغه رازله‌شوروی لوری څخه پدغوخبروکی دکمونست ګوند دمرکزی جرګه ګی عمومـی منشی ښاغلی لیونید بریژنیف ، د شوروی اتحاد دعالی شورا درئیسه هیئت صدرښاغلی نیکولای پود ګورنی ،صد راعظم ښا غلـــی الکسی کاسګین د بهرنیو چارو وزیرښاغلی اندری ګرومیکو ، د اقتصادی روابطو دجرګه ګی رئیس ښاغلی سکـاچکـــوف د بهرنیو چارو دوزارت دسیاسی څانګی رئیس ښاغلی ویکتورمین په کابل کی د شوروی اتحادلوی سفیر اودهغه هیواد یوشمیر نورو ستــــرو شخصیتونو برخه اخیستی وه .

دغه خبری په یوه دوستانه او صمیمانـــه فضاکی وشوی .

دمسکو تلویزیون او ورځپاڼو دجمهوریت د موسسس ښاغلی محمد داؤدعکسونه خپاره کړی‌او د افغانستان او شوروی اتحادترمینځ د ښو مناسباتو او علایقو په‌باب دمضمونونو دخپرو لوپه ترڅ کی‌یی شوروی اتحاد تــه د جمهوریت د موسسس دور تګ هرکلـــی کړیدی .

جمهور رئیسس ښاغلی محمد داؤد دوری‌په په ۲۴ ترغرمی دمخه د شوروی سوسیالستی جماهیرو داتحــاد دولت د بنسټ ایښودونکی ولادیمیر ایلیچ لینن په ابــدی اودغــه راز دکریملین دماڼی ددیوال پــه څنګ‌کی دورك نومی سپاهی په ابدی باندی دګــلانو ګیډۍ کیښودی .

د ګلانو د ایښودو په وخت کی دجمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد په ملګـرو ســـر بیره په‌مسکوکی افغانی لوی‌سفیر اودسفارت ځینی غړی د شوروی اتحاد دعالی شورا د رئیسه هیات دصدر مرستیال ښاغلی پاویل ګلیشس ویلی د بهرنیوچارو دوزارت‌مرستیال ښاغلی کوزنیتسوف او دهغه هیواد ځینی نورستر دولتی‌شخصیتونه له دوی سره‌ملګری وو .

## د جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد مسافر تو نه

جمهور رئیس ښاغلی محمـد داؤد د افغانستان په وخت دوری په ۲٤ له غرمې وروسته په د ولسي‌نیموبجو د سوسیالیستي جماهیرو د اتحاد له مشرانو سره دکریملین په ماڼۍ کې ددوهم پړاو خبرې وکړې پدغو خبروکې چه‌په دوستانه او صمیمانه فضاکې وشوې او دوه ساعته روانې وې د افغانستان او شوروي اتحاد د دوه اړخیزو روابطو او همکاري او د دواړو هیوادو دعلاقې وړمسالو په باب خبرې اترې وشو .

د افغانستان له‌پلوه پدغو خبروکې‌دتجارت وزیر ښاغلی محمد خان جلالر، دپلان وزیر ښاغلی علی احمد خرم، داوبو اوبرېښناوزیر انجنیر محمدی،دبهرنیو چارو دوزارت‌مرستیال ښاغلی وحیدعبدالله ،په مسکوکې دافغانستان دجمهوري دولت لوی سفیر ډاکتر علی احمد سیاسي لوی مدیر ښاغلی عبدالصمد غوث د اقتصادي لوی‌مدیریت وکیل ډاکترعبدالفرید رشید، د سیاسي دریمې څانگې مدیر ډاکتر محمد رفیق شمریز او دبهرنیو چارو وزیر دمخصوص دفتر مرستیال ښاغلی عبدالاحد ناصر ضیایي برخه درلوده دغه راز دشوروي اتحاد له خوا د شوروي اتحاد د کمونست گوند دمرکزي جرگه گې عمومي منشي ښاغلی لئونید بریژنف ، دعالي شورا درئیسه هیات صدر ښاغلی نیکولاي پود گور نـی ، صدراعظم ښاغلی الکسی کاسگین، دبهر نیو چارو وزیر ښاغلی اندری گرومیگو ،دوزیرانو دشورا اقتصادي اړیکو دجرگه گې رئیس ښاغلی سکاچکوف د هغه هیواد د بهرنیوچارو په وزارت‌کې دسیاسي څانگې رئیس ښاغلی ویکتور مینن یوشمیرنورو د ولتي شخصیتونو اوپه کابل کې دشوروي اتحاد لوی سفیر ښاغلی پوزانوف پدغو خبروکې برخه‌اخیستې

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد اودافغاني‌هیأت غړي له شوروي مشرانوسره دکریملین په ماڼۍ کښې دخبرواتروپه وخت‌کښې .



د جمهوریت مؤسس ښاغلی محمد داؤد د افغانستان په وخت مازدیگر په پنځوبجو په مسکوکی دسیاسی نمایند گیو مشران د شوروی اتحاد دبهرنیو چارو د وزارت د هرکلیو په ماڼی کی حضورته ومنل . پدغه وخت کی د شوروی اتحاد دبهرنیو چارو د وزارت د تشریفاتو رئیس ،په مسکوکی اوسیدونکی، لوی سفیران ښاغلی محمد داؤد ته وروپیژندل دغه راز جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد د افغانستان په وخت بیگا په اووبجو دمسکوپه ښارکی دشوروی اتحاد د اقتصادی او زراعتی پرمختگو او نندار تون ولید اوپه مخصوص کتاب کښی لا سلیک وکړ .

کله چه ښاغلی محمد داؤد دکاز میکسی خیرنو دپیل څخه چه تراوسه پوری په هغه هیوادکی شوی دفضائی بیړ یو نندارتون او دغه رازدکرنی او باغوالی دتولیداتو نندارتون وکوت دنندارتون د رئیس ښاغلی میخایلوف لخوا توضیحات ور کول کیدل .

ښاغلی جمهور رئیس د دغه نندار تون دکتنوپه پایکی په گردی سینماکی دهغه فلم ننداره وکړه چه دمسکو دښار د اقتصادی اوټولنیزو پرمختگونو اوپرمختیاو ښکارندوی دی .

د جمهوریت د موسس سره د نندار تون دکتنی پهوخت کی د دوی دملگرو هیات هم حاضر وو .

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد دوری په ۲٤ شپه پههغه میلمستیا کښی برخه واخیسته چی دشوروی سوسیا لستیجماهیرو د اتحاد دعالی شورا د رئیسه هیاتاوحکومت له خوادکریملین ماڼی په سترتالارکی ددوی په ویاړ شوی وه.

جمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد کله چیپهمسکوکی دکیهانی اوفضایی چارودپرمختگونو دنندارتون دلیدلوپهوختکی دنوموړی نندارتوندرئیس له خواتوضیحات ورکول کیږی .



پدغی میلمستیا کښی د ښاغلی جمهور رئیس ملګرو د شوروی اتحاد د کمونست ګوند، دمرکزی جرګه‌ګی، عمومی منشی‌ښاغلی لیئونید بریژنف، د عالی شورا د رئیسه هیات صدر ښاغلی نیکولای پود ګورنی صد راعظم ښاغلی‌الکسی کا سیګین ،دبهرنیو چارو وزیرښاغلی اندری ګرومیکو اویوشمیر نورو سترو شخصیتونو اوپه مسکو او کابل کی د افغانستان او شوروی اتحاد لویـــو سفیرانو برخه اخیستی وه .

پدغی میلمستیاکی د جمهور رئیس‌ښاغلی محمد داؤد او د شوروی اتحاد دعالی شورا درئیسه هیات دصدر نیکولای پود ګورنی‌لخوا ویناوی وشوی .

## دښاغلی جمهور رئیس‌دوینا متن

په هغه میلمستیاکښی دجمهوررئیس‌ښاغلی محمدداؤد دوینامتن چی دشوروی سوسیالستی جماهیرداتحاد دعالی شورا درئیسه هیـــأت اوحکومت له خوادنوی په ویاړد ۱۳۵٦ کـال دوری په (٢٤) شپه شوی وه .

دشوروی سوسیالستی جماهیرو داتحـــاد ګرانو مشرانو !

پوره خوښ یم چی دشوروی سوسیالستی جماهیرو داتحاددعالی شورا درئیسه هیأت او حکومت په دوستانه بلنه څوادپاره دغه‌بختور وخت پیداشوچی یوځل بیاستاسی ستر ا و ښکلی هیوادته راشم اودهغه له درندومشرانو سره شخصی او دوستانه تماسو نه نیولی اود علائق ورمسئلوپه باره‌کی وغږیږم .

خوشحاله یم چی پدی تولنه‌کی یوځل بیا وخت پیداکوم چی د شـــوروی سوسیالیستی جمهوریتونو داتحاد ددولتی مقاماتو او خلکو دتودهرکلیو له امله دځیل ځان اودخپلوملګرو دزړه له‌کومی خوښی څرګنده کړم .

هرځل چی ستاسی سترهیوادته راځم دهغو پرمختګونو اوبریوله امله چی دژوندانه پـه بیلوبیلوبرخوکښی شوروی خلکوته ورپه برخه شوی ستاسی افغانی دوستان خوشحالیږی .

یودبل هیوادوته ددواړودولتونو دمشرانو سفرونه، تماسونه، خبری اودهغوی تر مینځ مخامخ خبری اتری چی تل ددوستی دزړه د کومی تفاهم اومتقابل درناوی په فضا کـــی کیږی دیوی داسی عنعنی بڼه غوره کړی چی په هغی‌کی دافغانستان اوشوروی اتحاد ترو ګاونډیودښمه ګاونډیتوب خلل نه مینډونکـــی اساسات پکښی شته .

دداوړو هیوادو دمشرانو دغـــه شخصی تماسونه اومخامخ خبـری نه یـوازی ددواړو دوستودولتونو ترمینځ دښی دوستی دښتګښید اوتفاهم په تامین‌کی اغیزه لری بلکه ددواړو ګاونډیوهیوادو ترمنځ دزیاتو همکاریو دپاره دښولاروپه اوارولوکی هم د ډیرارزښتناکه رول لوبولی دی . دافغانستان دجمهوری دولت او

دشوروی سوسیالستی جمهوریتونو داتحاد. دوستانه اودېمه ګاونډیتوب اړیکی چېددوستی اوښه ګاونډیتوب دصراحت او صمیمیت اود بې شائبه اوګټورو همکاریو په ټینګو او ارزښتناکو بنیادونو بانـدی ولاړدی خپلـه پرمختیایی اوارتقایی لاره بې ددواړو هیوادو دخلکودهیلو اوګټو سره سمه وهلی ده .

ددواړوهیوادودغه دوستانه اړیکی زمونږ په سیمه کښی دسولی اوامنیت دتضمین یو مهم عامل بلل کیږی . له دی امله چې پـه افغانستان کښی دجمهوری نظام له جوړیدو وروسته دشوروی اتحاد دعالیقدرو مشرانوپه دوستانه بلنه راته مناسب وخت پیداشـو د۱۳۵۳ کال په غبرګولی کې می دشـوروی سوسیالستی جمهوریتونو داتحاد ، دوسـت هیوادته سفروکړدغه ښه خاطره تل راسره ملګری ده .

دافغانستان جمهوریت ته د۱۳۵٤ کـال دلیندی په میاشت کښی دشوروی سوسیالستی جماهیرو داتحاد دعالی شوراء درئیسه هیـات دصدرښاغلی پودګورنی دوستانه سفر او په کابل کښی دنور ولسو کـلونو دپاره ددواړو هیوادو د۱۹۳۰ کال دبیطرفی وتیری نه کولو دتړون داوږدیدودپروتوکول لاس لیك دواړو دولتونو دمناسباتو په ټینګتیا اوپراختیا کـی یوبل ارزښتناك پړاودی .

امیدلرم چې دشوروی اتحاد دوست هیوادته به څمادغه دوستانه سفرهغه په زړه پـوری اواغیزه منی همکاری چې له نیکه مرغه پـه رضائیت بخښوونکی اندازه ددواړو دولتونو ترمینځ شته لاپسی پراخه کاندی .

جلالتمآبانو ، ګرانوحاضرینو !

لکه څنګه‌چې پوهیږئ دافغانستان‌جمهوری دولت دخپلو بهرنیواوبین المللی اړیکو پـه ساحه‌کی په صداقت سره دناپیلتوب فعالی او مثبتی بیطرفـی د سیاست پیروی کـوی زمونږ ددغه سیاست ستر او اساسی هـدف ترتولوزیات دافغانستان دخپلواکی دحاکمیت اوملی تمامیت ساتنه اودخلکو دهوسایني او نیکمرغی تامین دی .

همداوجه ده چې دجمهوری دولت دناپیلتوب سیاست دسوله غوښتنی په روغه جوړه کی دګډژوند دمتقابل احترام اودنوروپه کورنیو چاروکی دلاس نه وهلو په سیاسی ډلوټپلو اوپوځی تړونونوکی دبرخی نه اخیستوله هر ډول استعمار اواستثمارسره دمخالفت دملګرو ملتومنشور اواساساتوته داحترام په ټینګو بنیادونو باندی ولاړدی .

افغانستان عقیده لری چې ددوستی، سولی اوهمکاری دغه سیاست دبین المللی کړکیچونو دکموالی اواری ګډواودنړی دولتونو ترمینځ دښه تفاهم اوزیاتوهمکاریو دتامین په لاره‌کی اغیزه مـن رول لـری اودنړیوال سولـی او سلامتیاپه تضمین کښی فعاله رول لوبوی .

دناپیلو هیوادو دولتونو او حکو متونـو دمشرانو جرګی چې په تیراوړی‌کی په کولمبو کی وشوه اودهغی نتیجی دنړی دسوله دوستو هیوادوله خواتائید اوهرکلی بې وشویو ځل

بیادسولې اوبین المللي عدالت په ټینګتیاکې دیوه سالم ـقدرت پهتوګه دناپییلتوب دنهضت ارزښت څرګند کړي .

افغانستان دهغې زیاتې مینې له امله چې لهخپلې خپلواکۍ اوملي شتهوالي سره یې لري دنړۍ دولسونواوخلکو دآزاد سر نوشت دټاکلواوآزادۍ دحق‌کلك ملاتړکړی او دهغو خپلواکۍ غوښتوونکو نهضتونو ملاتړکوي چې دخپلې خپلواکۍ اوملي حاکمیت دتامین دپاره مبارزه‌کوي اودپردیودهرډول‌استعمار، استثمار اوتسلط غوښتنې په وړاندې خپل پراخ پسې مخالفت ته دوام ورکوي .

افغانستان دفلسطین مسئله دمنځني ختیځ دلانجې اصلي عامل بولي اودنړۍ پدغه مهمه اوحساسه سیمه‌کې دپایداري سولې دټینګیدو په مقصد غواړي چې داسرائیلوتیري کوونکې اواشغالګرقوتونه دیر ژرله ټیول شویو عربي خاوروڅخه ووځي اودیوه خپلواك فلسطیني دولت دجوړیدوپه ګډون دفلسطین دعربي‌ولس حقه حقوق رښتیاني ښه غوره‌کړي اوپه زړنیو کې دمنځني ختیځ د سولې په راتلونکې جرګه‌ګۍ کې دفلسطین ولس داستازیو دآزاد ګډون لاره آواره شي .

دافغانستان جمهوری‌دولت ددیتانت دعملي دټینګښت اوپراختیا ښه هرکلی کوي اوهیله لري چې دسولې اوهمکاري دغه عملیه په‌ټولو وچواونړۍ دټولو هیوادو ترمینځ دهغوی‌دملي ګټواوحقه هیلوپه نظرکښې نیولو سره دټولې نړیوالې پدیدې په توګه دتطبیق لاره پیدا کړي . پدې ځای‌کې غواړم ووایم چې دديتانت عملیه بایدپه سیاسي ساحې پورې محدوده پاتې نشي بلکه لازمه ده چې په‌پوځی ا و اقتصادي برخه‌کې هم د هغې عملي اغیزې څرګندې شي . داندیښنې اوویرې څخه لرې اودپرمختیایي نړۍ سره پریوې مثبتې‌همکارۍ باندې ولاړې دیوې همیشنۍ سولې رښتیني عوامل مینځ ته راوړي چې پهدې ډول دیتانت له تعصبونو اوتنګ نظریوڅخه لرې دیـوې دوامداري سولې رښتیني ضامن شي. ننني ستونزې چې‌زموږنړۍ په تیره بیادغیرعادلانه اوسني اقتصادي نظام دشته والي له امله له هغوسره مخامخ ده له مینځه یوسي .

دلته به بې ځایه نهوي زیاته‌کړم چې دیو نوي عادلانه اقتصادي نظام مینځ ته راوړل اوپه عملي ډول دهغه تطبیق بهنه یــوازې دنړیوالې سولې ساتوونکې شي بلکه دژوند دیوه ښه چاپیریال اوهیوادو ترمینځ بـــه دهمکاري دمینځ ته راتلوله پاره هم دنړیوال تفاهم لاره اواره کړي .

دافغانستان حکومت دغې موضوع ته خاص اهمیت ورکوي چې دهغه پهوسیله دشتمنـو هیوادواونیستمنو هیوادو ترمینځ اوسني زیاته تشه له مینځه لاړه شي اوپه نړۍ‌کې دکړکیچ دغه دایمي عنصرله مینځه لاړشي .

افغانستان دتسلیحاتي اوپوځي مسابقوکلك مخالف دی ځکه دغه تهدیدآمیزه مسابقـــې نهیوازې دهیوادو ترمینځ دباور دنشتوالـــی دروحیې دټینګښت سبب ګیږي او دملي‌شتابغو

اوانسانی قوتونو زیاته برخه د هیوادو داقتصادی پرمختیا اوټولنیزی هوساینی په عملیه کی له ونډی اخیستوڅخه لری ساتی بلکه دنړیوالی سولی او امنیت په مقابل کی دایمی تهدیدهم مینځ ته راوړی . نونن هیله لروچی دشوروی اتحاد اوامریکا دمتحدوایالاتو ترمینځ دوه اړخیزه خبری په نړیوالو ټولنو کښی خواړخیز تماس اوخبری د تسلیحاتی مسابقاتو دله مینځه وړلواوپه نتیجه کی بهنړی کښی دامنیت دټینګښت په لارکی مثبتی او عملی نتیجی منځ ته راوړی .

افغانستان دملګروملتو دسازمان د یوه وفادار غړی په توګه هیله لری چی دغهستره نړیواله موسسه زیات ټینګښت اوګټورتوب پیداکړی اوپه ټولو برخوکی اودنړی دټولو هیوادوله خوادهغی دمنشور عالی بنسټونه دغه رازددغی نړیوالیموسسی تصمیمونه اوپریکړه تطبیق شی .

دافغانستان جمهوری دولت عقیده لری چی دنړیوالو لانجو دحل ډیره ښه لار، مخامخ خبری اودنورو سوله ایزووسایلو څخه کار اخیستل دی . افغانستان داغواړی چیدآسیایی هیوادو اودسیمی ددولتونو ترمینځ لانجی او اختلافونه که داستعمار دزاړه میراث نه پاتی شوی وی اوکه دنوروعواملو له مخی مینځ ته راغلی وی باید دمخامخ خبرواویا دنوروسوله ایزووسایلو په وسیله دعلاقه لرونکو اړخونو پهدوه اړخیزښه نظراوتفاهم سره حل اوفصل شی .

خوښ یم لهدی املهچی ووایم افغانستان دنړی له ټولوسوله دوستو هیوادونو سره دوستانه اړیکی لری اوهمیشه دهغو دزیاتی پراختیاپه لټهکی دی . مونږدخپلی سیمی له یوه هیوادپاکستان سره، دیوازینیسیاسی اختلاف دشته والی له امله چی داستعمار د شومی دوری محصول دی تراوسه پوریونشو کړای دپورتنی اختلاف له مخی دوستانه عادی مناسبات ولرو.

افغانستان دیوه سوله دوست هیواد په توګه همیشه له پاکستان سره دمخامخ اوسوله ایزوخبروپه اساس دخپل یوازینی سیاسی اختلاف دشرافتمندانه حل طرفداردی.

که وکړای شوهغه فضاچی ددواړوهیوادو دمشرانو ترمینځ دلیدوکتنو له امله مینځ ته راغلی وه وساتوکولی شو هیله ولروچی دغه سیاسی اختلاف بهپه راتلونکی وخت کی داواروالو شرافتمندانه لاره پیدا کړی او په نتیجهکښی افغانستان اوپاکستان وکړای شی ددواړو هیوادو دهیلو اودخلکو دګټو سرهسم په خپلومینځوکښی دوستانه اړیکی ټینګی کړی .

جلالتمآبانو ، ګرانوحاضرینو !

افغانستان هیله لری داسیا اوافریقالهستر وچواوله لاتینی امریکا څخه دتل له پاره دیردیوداستعمار اوسلطی آثارورك شی اوهغو خلکوته چی داوږدوکلونو په موده کښی دخپلواکی له نعمت څخه بیبرخی دی ددی امکان پیداشی چی خپل سرنوشت په خپله وټاکی اودسولی، خپلواکیاوعدالتپهچاپیریال کښی دخپلواقتصادی اوټولنیزو نیمګړتیاو په

لری کولولاس پوری کړی . افغانستان دنامیبیا دخلکو دسرنوشت دټاکلو اوخپلواکی دحق ننګه کوی اوهیله لری چی دنامیبیا هیواد دافریقایی خپلواکو هیوادو په لیکه کی خپل ځای ونیسی .

دافغانستان جمهوری دولت دنژادی توپیر اواپارتایدله سیاستونو سره تل تر تله خپل سخت مخالفت تهدوام ورکوی اوهغه ظالمانه اودبشری کرامت خلاف سلوکونه غندی چی دروډیشیا اوجنوبی افریقادلږو سپین پوستو نژاد پالوونکو له خوادهغوخاورو دتورپوستو اونوروبومی اواصلی کتلوپه ستر اکثریت باندی تحمیل کیږی اوانتظار لری ژر ترژره دغه دتوپیر غوښتنی سیاستونه چی دبشری وجدان اودنړۍ‌لواخلاقی منشورونو خلاف دی پای ته ورسول شی .

دافغانستان خلك پهکلکه زیارباسی چی دخپل ملی ژوندله بیلابیلوبرخوڅخه دوروسته پاتی کیدو ناوړه آثارله مینځه یوسی اوپر هغو ستونزوباندی بریالی شی چی دبهرنیو اوکورنیو نامساعد دعواملوله امله په ډیرو کلونوکښی پری تحمیل شویدی اودافغانی نوی اومترقی ټولنی ودانول چی ددوی دهوسایني اونیکمرغی ضمانت کوی په بیړه بشپړکړی.

په افغانستان کښی دجمهوری نردهی او مترقی رژیم جوړولوچی اصلی هدف یی دافغانستان خلکوپه تیره بیادهیواد اکثریت ته وږی وزلوته خدمت دی دافغانستان ملت دژوندهرابرخیزو برخودودی اوپرمختیاله پاره ښه لاره اواره کړیده .

دافغانستان جمهوری دولت دجمهوری دولت دلومړی لویی جرګی پهجوړولو سره چی په هغی کی دافغانستان دنوی رژیم اساسی قانون تصویب شواو ددغه مترقی قانون په نافذیدوسره چی دهیواددخلکو دهر اړخیزو حقوقو ضامن او داقتصادی ټولنیزی‌او سیاسی چټکی پرمختیا تائید وونکی دی په خپل ملی ژوندکی نوی اوډیر پر مختللی پړاوته ورسید .

دافغانستان دجمهوری نوی اومترقی ټولنی ودانول دافغانستان دحکومت او خلکو دهر اړخیزواوکلکو زیارونو اوکوښښونو متضمن دی. پدی لاره کی به ددوستو دولتونو او هیوادودوستانه اوخالص همکاری او مرستی ګټوره اغیزه ولری .

دافغانستان حکومت اوخلك دهغو مرستواو همکاریوڅخه چی په افغانستان کی دجمهوری رژیم دجوړیدوله سره اوله هغهڅخه دمخه ددوست هیواد شوروی جمهوریتونو داتحادله خوادپرمختیا اواقتصادی لوړتیاپه برخه پهتیره بیادافغانستان دجمهوری دولت دلومړی اووه کلن پلان په برخهکی شوی دزړه لهکومی مننه کوی .

ګرانو دوستانو اوګرانو میلمنو !

یوځل بیاغواړم دشوروی اتحاد دمشرانو، حکومت اوخلکوددوستانه میلمه پالنی اوله‌مینی ډك هرکلیوله امله خپل دزړه لهکومی خوښی څرګنده کړم اوله خپلومحترمو دوستانو څخه

هیله‌کوم چې خپل جامونه له ماسره یوځای پورته کړی دشوروی اتحـاد دعالیقـدرو او ښاغلو مشرانو دمرکزی کمیټې دعمومی منشی لیونید بریژنف دعالی شورا درئیسه هیـأت دصدر نیکولای پودگورنی او صدراعظم الکسی کاسیگین په روغتیااوبری دشوروی اتحـاد ددوست ولس په‌زیاتی‌نیکمرغی اوبریالیتوبونو دافغانستان اوشوروی اتحاد ترمینځ دورځ په ورځ زیاتیدونکی ګټوری دوستی اوهمکاری په پراختیااوپیاوړتیادنړی په سوله اونیکمرغی.

## دښاغلی پودگورنی دویناً متن

په هغه میلمستیاکښی دشوروی اتحـاد دعالی شورارئیسه هیات دصدر ښاغلی‌نیکولای پودگورنی‌دوینامتن‌چه د۱۳۵۶کال‌دوری‌په (۲٤) شپه په مسکوکښی دافغانستان دجمهوررئیس ښاغلی محمدداؤد په ویاړ شوی وه .

لدی امله خوشحاله یم چه دشوروی اتحـاد دمشرتابه په نمایندگی اودخپل خان له خوا دافغانستان دجمهوررئیس ښاغلی محمد داؤد اوددوی ملګرودزړه له‌کومی هرکلی وکړم .

تاسو ښاغلی جمهوررئیس زمونږ په هیواد کی دیوه داسی ستر شخصیت په توګـه پیژندل شوی یاست چه دشوروی اتحـاد او افغانستان ترمینځ دوستی دپرمختیا په لاره کی ستره برخه لرئ .

طبیعی ده چه ددغه دلیل له‌مخی په‌شوروی اتحادکی دیوه‌درانده میلمه په توګه ستاسی هرکلی کیږی په تیروخت کی زمونږ کتنـی اوخبری په‌نه بدلیدونکی ډول دښه نیت په یوه فضاکی شویدی اوددواړوګاونډو هیوادو دخلکو ترمینځ په متقابله اوښه تفاهم کی‌یی مرسته کړیده اودشوروی اتحاد اوافغانستان ترمینځ ددوستانه اړیکو پرمختیایی تحـریك کړیده دزړه په زیات رضائیت سره ویلـی شوهغه خبری هم چه‌ نن پیل شوی دهمدغونو عنعنو په‌روحیی سره تعقیب کیږی .

له‌تاسو سره زمونږله کتنوڅخه چه د۱۹۷٤ کال دجون په میاشت‌کی په مسکوکـی اود ۱۹۷٥ کال په دسامبر کښی په‌کابل‌کی‌وشوی زیاته موده نده تیره سره ددی هم پدغه‌موده کی زمونږددواړوهیوادوپه ژوندانه‌اوبین‌المللی چاروکی مهمی پیښی لیدل شویدی دشوروی اتحاد خلکوته دشوروی اتحاد دکمونست‌ګوند دمرکزی جرګه‌ګی د پنځه ویشتم کـانګرس دتاریخی فیصلو دتطبیق اودهغو وظیفو داجراء په لاره‌کی چه ددغه کانګرس له خوادعامـه تولیداتو دپراختی پرمختیا دهغو دښی اغیزی اودتولیداتو دښه کیفیت په اساس دخلکـو دهوسماینی دسطحی دلوړیدو دپاره‌ټاکل شوی ستر بریالیتو بونه ورته برخه شـوی دی په دوست افغانستان کښی مهمی پرمختیاوی شوی دی .

ستری غونډی لویی جرګـــی روان کال د فبروری په میاشت کی دافغانستان دجمهوریت اساسی قانون تصویب کړیدی دهیواد داقتصادی اوټولنیزی پرمختیا داوه کلن پـلان پر اساس دمترقی ، ملی اقتصاد دمینځ ته راتلو او د افغانستان دخلکو دمادی او کلتوری سطحی دښه والی دپاره اقدامات شویدی .

مونږ دخپلو تجربو له مخی ویریښه پوهیږو چه دټولنیز اواقتصادی اوښتون دپلان اجـرا دټولو مادی منابعو سمبالښت اودټولو خلکـو کلک زیار غواړی دایوه سخته خونجیبه وظیفه ده اومونږ دافغانستان دجمهوریت دپاره پدغـه لاره کښی دزړه داخلاصه ستر بری غــواړو دشوروی اتحادخلك په روان کال کښی داکتوبر دستر سوسیالیستی انقلاب شپیتمه کـــالیزه نمانځی اوپه دووکلونوکی به دافغانستان خلك دخپلی خپلواکی دبیرته اخیستو شپیتمه کالیزه ونمانځی په هغوکلونوکی چه دشوروی اتحاد دهیواددمینځ ته راتلو اودملی آزادی د پاره دافغانستان دمبارزو شاهد ؤ دشوروی اتحاد اوافغانستان ترمینځ دروغی جوړی او دښـه ګاونډی توب داړیکو دپاره ټینګ بنســټ کیښودل شو.

په خولسیزوکی دغو اساساتو په پرله پسی توګه دهمکاری او دوستی په روحیی ســـره ځانګړی پرمختیاوکړه .

لینن لیکلی دی چه «دافغانستان هیواد هغه لوړی هیوادو چه په مسکوکی مونږ دهغـــه داستازو یوډیرښه هرکلی وکړ اوخوشحاله یو وواویوچه ددوستی هغه تړون چه دافغانستان خلکوله روسیی سره لاسلیك کړی لومـــړی تړون دی .»

په ۱۹۲۱ کال کی ددوستی لاسلیك شوی تړون اودغه راز د ۱۹۳۱ کال دبیطرفی او د متقابله نه تیری مربوط تړون اودهغه داوږدیدلو مربوط شوروی تړون اودهغه داوږدیدو مربـــوط پروتوکول چه مونږ اوښاغلی جمهـــور رئیس یونیم کال پخوا په کابل کښی لاسلیك کـــړ دشوروی اتحاد اوافغانستان ددوستانه اړیکو دپاره ټینګ بنیادا یښی دی اوددواړو هیوادو دخلکوله ګټو اودسولی اوامنیت له ګټوسره سم دی .

په افغانستان کی دجمهوریت په اعـــلام سره دشوروی اتحاد اوافغانستان اړیکی نوی پړاوته ورسیدی اوتل یی خپل پرمختګ ته دوام ورکړی دی .

هغه موافقی چه زمونږ دمخکنیو کتنو پـــه جریان کښی شویدی په بریالی توګه دعملی کیدو په حال کی دی اودخپل مینځی اقتصادی اوتجارتی همکاریو په باب نوی مهمی موافقی لاسلیك شویدی .

دهیأتونو منظم لیږل رالیږل روان دی او کلتوری اړیکی دپرمختیا په حال کی دی .

زمونږ اوسنی خبری تائیدوی چه په سیاسی اقتصادی، کلتوری برخوکی اوپه نورو برخو کی زمونږ دهمکاریو دزیاتی پرمختیااوښه والی اوپه نوی ټینګ ماهیت سره ددغو همکاریو دپه کارلویدو دپاره وختونه شته .

دنړۍ دسولی‌اوامنیت دپاره په مجادله کی دشوروی اتحاد اوافغانستان داړیکو پیاوړتیا زیات اهمیت لری .

ددایمی سولی دداعیی دبری دپاره زیار او هلی ځلی دشوروی اتحاداودسوسیالستی‌ټولنی دنورو هیوادو دبهرنی سیاست مهم هدف‌دی.

ددغه سلوك دپرله پسی تطبیق له امله اودهغه گټوزیارپه نتیجه کی چه ټولوسولــه غوښتونکو هیوادوویستلی دی په خووروستیو کلونوکی داټومی جگړی دخطرپه کموالی کـی ډیرزیات پرمختگ شویدی .

دخوښی ځای دی چه دهغوهیوادو ترمینځ چی بیلابیل ټولنیزسیستمونه لری په روغــه جوړه‌کی دگډژوند مینځ ته‌راتگ، په‌بین‌المللی ژوندانه کی دیوه نورم حیثیت غـوره کړیدی اودیتانت په اوسنۍ پیړۍ باندی مسلــط تمایل گرځیدلی دی .

ددایمی سولی اوبین المللی امنیـت لاره طبعایوه آسانه لاره نده پدغه لاره‌کی هرگـام اوهربری دنړۍ دسیاسی فضا دښه والــی دمخالفینوپه لجوجانه مقاومت باندی دبــری په‌کارکی له بریالیتوب څخه زیږیږی .

مخالفو عناصرو وسله پرځمکه باندی نده ایښی اودهیوادوترمیڅ اړیکوکی دتعصبونــواو بی باورۍ څخه ډه‌کوی دهغوی دغه‌چال چلند دسړی‌جگړی په‌وختونوکی روزل‌شویدی خولکه چه‌په افغانستان کی وایی غرچه هرڅومــره لوړهم وی هغه‌ته دختلوله پاره لاره شته .

ښاغلی رئیس جمهورا مونږکلکه عقیده لرو چی ددیتانت دلاری په‌تعقیبولوسره به وکړای شونوی زیات پرمختگونه وکړو اودنړیوالـی سولی اوهمکاری دولسونوداآزادۍ او خپلواکۍ له پاره به‌په شریفانه کوښښ کـی نـوی بریالیتوبونه وگټو . پرته له‌شکه دلانجــو دکمښت تگ لوری دټولوهیوادو دولسونــو دژوندانه له‌گټوسره سمون خوری اودکړکیــچ دکمښت پرپالیسی باندی هیڅ ډول انتقـاد اودهغی دهدفونو اوغایی دله مینځه وړلو له پاره هیڅ ډول کوښښ دغه ښکاره حقیقـت تراغیزی لاندی نشی راوستلی .

لکه چی دشوروی اتحاد دکمونست گـوند عمومی منشی لئونیدبریژنف ویلی دیتانــت له ټولوزیات اوله ټولونه مخکی پرسړی‌جگړی باندی وروستی بری اودهیوادو ترمینځ ټینگو عادی اړیکوته دهغه لیږدول دی .

کمښت دځبروپرمیزپه سوله ایزووسایلــو سره داختلافونو اولانجو دحل له پاره چمتوالی دی نه دزورتهدید اویاوسلی ته دلاس اچولو له لاری .

دیتانت په حقیقت‌کی ددوه اړخیزباور لرل اودیوبل دقانونی گټودپیژندلو تــوان دی . دسولی له پاره دتضمینونو دتامین کار طبعا دینه اړدی چی لانجی یوازی په‌یوه وچه کی کمی نشی بلکه ددیتانت لمن دځمکی دکری ټولووچوته خوره شی ترڅوله‌دی امله داسیا په‌گډون دټولی نړۍ ولسونه وکولی شی چی دهغه له‌گټوڅخه فایده واخلی .

په ټوله نړۍ کی په بری سره دسولـی

اوامنیت دټینګښت دمسئلي حل یوزیاتهاندازه پرداسي ایخ ولاړدی چي په هغهکي داسیا حالات پرمخ ځی .

مونږغواړو داسیایي هیوادو ترمینځ سوله اوهمکاری ټینګه شي‌چي دهغوکار کوښښ‌داسیا په وچه‌کي امنیت ټینګ کړی .

داسیاپه بیلابیلو برخوکښي ستراو ګټور بدلونونه دمینځ ته راتلو په حال کـــي دی دویتنام، لاوس اوکمبودیاولسونو د خپلـــو آزادی اوخپلواکۍ دګټلوپه مقصد دامپریالیزم په‌خلاف په‌خپله مجادله‌کي تاریخی بریالیتوبونه ترلاسه کړیدی. دغه کاردځمکي پرمخ دجګړي دیری خطرناکي برخی له مینځه وړی اودایې ثابته کړه چي زمونږپه وخت کي پرولسونو باندی دپردیودارادی اوخارجي تسلط دتحمیل له پاره هرډول زیارپه اجتناب ناپذیر ډول په ناکامۍ محکوم دی .

مونږحتی په ځرګندډول ورځ په ورځ ډیر وینوچي داسیادجنوب دهیوادو داړیکو دعادی کیدوتمایل شته .

دهند اوپاکستان په اړیکوکي ډیر کارونه شوی [illegible] اوپاکستان دسوله ایزو خبرو له لاری په خپلواړیکوکي دستونزو دلری‌کولو په لاره‌کي سترګامونه پورته کړیدی .

دغه څیر مثبتو اقدامونو هرکلی کـــوو غوښتونکي سترګي [illegible] چي دسری جګړي پلویان په اسیاکي [illegible] په ځایګی [illegible] په [illegible] هرډول زیارباسی چي داسیایی هیوادو [illegible]

وساتي .

دوګړو ترمینځ دبی باوری تخم‌کری چـــی هیوادو نه یودبل پرخلاف راپور ته کړی او ددوی ترمینځ لانجي ولمسوی دپوځی پالیسی غوښتو نکی‌قدرتونه په‌ډلوټپلواو هڅو جنګی اډولاس پوری‌کوی چي په‌خپله یې‌په آسیاکي جوړي‌کړیدی په منځنی ختیځ کي دامپریالستي ارتجاع زیارهم روان دی .

دسوله غوښتوونکو هیوادو دارادی ،وزیار قدرت بایددغه دسیسی بی اغیـــزه کـــړی دافغانستان جمهوریت اغیزه چي دآسیاپه زړه کي پورت‌دی اودآسیادوچي دستونزوپه‌آرارولو کي دهغه ښه ونډه ډیره مهمه ده .

شوروی اتحاداوافغانستان په‌آسیا اوپه‌نوره نړۍ‌کي درواټوحالاتوپه مربوطوډیروسملاسی مسئالوکي ګډنژدیوالی لری . زمونږ هیو دونو دنړیوالوسملاسی مسئالو څخه دیو زیـــات شمیرپه اوارولوکي ګټوره همکاری کړیـــده مونږباورلروچي زمونږهمکاری به دبین الملی سولي اوامنیت له‌پاره لاپسی پراخه شـــی . اودغه همکاری به دشوروی اتحاد اوافغانستان دخلکوترمینځ دوستي اومتقابله باور لاپســـی زیات اوټینګ‌کړی . له حاضرینوڅخه هیلـــه کوم څپل جام دافغانستان دجمهوریت درئیس ښاغلی محمد داؤد اوافغاني میلمنوپه سلامتی دشوروی اتحاد او دافغانستان دجمهوریت دخلکوترمینځ ددوستي اوهمکاری دیرله پــی پرمختیااوټینګښت اودغه رازدنړۍ په سوله له ناسره پوځای پورته کړی .

ښاغلی محمد داؤد دوری په ۲۵ ترغرمې دمخه پداسې حال کښې چې د شوروی سوسیالیستی د اتحاد د عالي شورا د رئیسه هیات دصدر مرستیال له دوی سره ملګری ؤ دمسکوپه ښارکښې دزیل موټر جوړلو فابریکه ولیدله .

کله چې ښاغلی جمهور رئیس دفابریکې دروازې ته ورسید د دغې فابریکې د رئیس ښاغلی پولا کوف اویو شمیر نورو کارکوونکو له خوایې تود هرکلی وشو

مخکې تردې چه زمونږ ملی مشر دغې فابریکې څانګې ووینې د فابریکې رئیس ددغې فابریکې دکار دځرنګوالی اوتولیداتوپه باب توضیحات عرض کړل .

وروسته بیا ښاغلی محمد داؤد ددغې فابریکې بیلابیلې څانګې په تفصیل سره ولیدلې .

کله چې ښاغلی محمد داؤد دفابریکې څانګې لیدلې کار کوونکو او کارګرو په چکچکو او د جمهوریت موسس ته دګلانو دګیډیو په ورکولو سره ددوی هرکلی وکړ .

ښاغلی جمهور رئیس د خپلی کتنې په پای کښې دفابریکې دتولیداتو دپرمختګ له امله دخپلې خوښې مراتب څرګند کړل . د فابریکې په کتنه کې له ښاغلی جمهور رئیس سره دتجارت او اوبو او برښنا وزیرانو د بهرنیو چارو دوزارت د تشریفاتو رئیس د افغانستان او شوروی اتحاد دلوی سفیرانو او یو شمیر نورو افغاني او شوروی مقامات ملګری وو .

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد دمسکو په وخت د ورځې په ۲۵ ترغرمې وروسته په بوه بجه د شوروی سوسیالستی جماهیرو اتحاد دمشرانو په ویاړ دمسکو د دولتی میلمستون دهر کلیو په تالار کې غرمنی میلمستیا کړې وه چې په هغې کې د شوروی

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤدپه هغه میلمستیاکی د شوروی اتحاد دمشرانو سره دخبرو په حال کی چې د ... په دولتی میلمستون کی شوی وه .



اتحاد دعالي شورا د رئیسه هیات صدر ښاغلي نیکولای پود گورني، صدر اعظم ښاغلي الکسي کاسگین، دبهرنیو چارو وزیر ښاغلي اندري گرومیکو له بهرنیو هیوادوسره دوزیرانو دشورا داقتصادي روابطو د دولتي جرگه‌گی رئیس ښاغلي سکا چکوف او د شوروی سوسیالستي جماهیرو اتحاد یوشمیر نورو مشرو کسانو او شخصیتونو له ښاغلي جمهور رئیس سره ملگری هیات په مسکو اوکابل کې د افغانستان او شوروی اتحاد لویو سفیرانو او د افغاني لوی سفارت یوشمیر غړیو برخه اخیستی وه.

د افغانستان د جمهوري دولت او شوروی اتحاد ترمنځ د اقتصادي همکاری موافقه لیک پداسي حال کې چې جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد او شوروی اتحاد دعالي شورا د رئیسه هیات صدر ښاغلي نیکولای پودگورني حاضر و د ۱۳۵٦ کال دوري په (۲۵) نیټه په مسکو کې لاس لیک شوه، موافقه د محلي وخت په دولس نیمو بجو د افغانستان له خوا د پلان وزیر ښاغلي علي احمد خرم او د شوروی اتحاد د پلوه له بهرنیو هیوادو سره د شوروی اتحاد د وزیرانو دشورا داقتصادي روابطو د جرگه گی رئیس سکاچکوف په دولتي میلمستون کې لاسلیک کړه.

پدغه مرستوکی د تجارت وزیر ښاغلي محمد خان جلالر، د اوبو او برښنا وزیر انجنیر محمدی، د بهرنیو چارو د وزارت مرستیال ښاغلي وحید عبدالله، د بهرنیو چارو وزارت سیاسي لوی مدیر ښاغلي عبد الصمد غوث او نوره راز دشوروی اتحاد صدر اعظم ښاغلي الکسي کاسیگین د بهرنیو چارو وزیر ښاغلي اندري گرومیکو او یو شمیر نورو دولتي کسانو په مسکو کې افغاني لوی سفیر ډاکټر علي احمد او په کابل کې د شوروی اتحاد لوی سفیر ښاغلي پوزانوف هم برخه در لوده.

جمهوررئیس د مسکو په هوایي ډگرکی کابل ته د روانیدو څخه دمخه له ښاغلي پودگورني سره لیدل کیږي.



ښاغلی محمد داؤد د اوورسره هیات یی د افغانستان په وخت دوری په ۲۶ نیټه له غرمی مخکی پهیو ولس نیمویجو د هیواد په نیت له مسکوڅخه را روان شو.دشوروی اتحاد دعالی شورا د رئیسههیات صدرښاغلی پود گورنی ،صدراعظم ښاغلی الکسی کاسگین ، دعالیشورا د رئیسه هیات دصدر مرستیال ښاغلی کلیش ویلی ، دصدراعظم مرستیال ښاغلی ار خیپوف دبهرنیو اچارو وزیر ښاغلی اندری گرومیکو او د شوروی اتحاد یوشمیر نور مشران او عسکری اوملکی ستر شخصیتو نه اوپه مسکو اوکابل کی د افغانستان د جمهوریت او شوروی اتحاد لوی سفیران د افغانی سفارت غړی اودمسکو یوزیات شمیر ښاریان د جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد سره د مخه ښیله پاره دونوکوا هوایی ډگرته ورغلی ؤ .

ښاغلی محمد داؤد دمسکو هوایی ډگرته درسیدو په وخت کی د ښاغلی پود گورنی پهملگرتیا وروسته له هغی چی ،وزیک د افغانستان د جمهوریت ملی سرود او د شوروی اتحاد ملی سرود وغږاوه دتشریفاتی گارد د احترام مراتب و منل ا وهغه یی وکوت .

وروسته د جمهوریت موسس د شوروی اتحادله شخصیتونو ، په مسکوکی دافغانی لوی سفارت لهغړیو سرهچی مخه ښیلپاره هوایی ډگرته حاضر شوی ؤ خدای په اماني وکړه .

د شوروی اتحاد مشرانو ښاغلیپودگورنی ښاغلی کاسیگین او ښاغلی گرومیکو زمونږ دملی مشر سره د الوتکی تر اړدی پوری ملگری ؤ او دده لهپاره یی دباعافیت سفر هیله وکړه .

پدی وخت کی ښاغلی محمد داؤد دشوروی اتحاد د حکومت اوخلکو دښی میلمه پالنی څخه مننه وکړ اووپی ویل :

خوښیږم داچی وخت پیداشو یوځل بیا دوست هیواد شوروی اتحادته سفر وکړم او دواړو هیوادو دعلاقی وړ مسئلو پهباب دشوروی اتحاد له مشرانو سره ووینم اوخبری ورسره وکړم .

په مقابل کی ښاغلی پود گورنی وویل: هغه خبری چی د ښاغلی جمهور رئیسسره وشوی ډیریپهزړه پوری اوبی له شکهد دواړو هیوادو ترمینځ دلرغونی دوستی په پرمختیا کی یو بل گام گڼل کیږی .

ستاسو جلالتماب سفر د دواړو هیوادو دخلکو لپاره ډیر زیات گټور دی . ښاغلی جمهور رئیس دسلامتیا او د دوست هیواد افغانستان دخلکو دهوسایني هیله کوم .

ښاغلی محمد داؤد دسپرلی موټر د دوی له ا ستوگنځی څخه دونوکواتر هوایی ډگر پوری د یوی ډلی موټر سایکل سپرو لخوا بدرگه شو .

دواړو هیوادو دمشرانو دسپرلی د موټر دلیږلو لاره او هوایی ډگر د دواړو هیوادو په ملیبیرغونو ښکلی گړی شوی وو .

کله چی دښاغلی جمهور رئیس دسپرلی الوتکی دشوروی اتحادله فضا څخه وتلـه

## د افغانستان او شوروی اتحاد گډه اعلامیه

د هغی گډی اعلامیی متن چی په شوروی اتحادکی دافغانستان دجمهوری دولت دجمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد درسمی اودوستانه سفرپه پای‌کی د۱۳۵٦ کال دوری په شپږ ویشتمه نیټه دجمعی په ورځ د۱۹۷۷ کـال داپریل په پنځلسمه نیټه په‌کابل او مسکو کی خپره شوه .

دشوروی سوسیالیستی جماهیرو داتحـاد دعالی شورا درئیسه هیأت اوشوروی اتحاد دحکومت په بلنه دافغانستان دجمهوری دولت جمهوررئیس ښاغلی محمدداؤد د۱۳۵٦ کال دوری له دروېشتمی نیټی نه ترشپږ ویشتمی پوری شوروی اتحادته رسمی او دوستانـه سفروکړ .

پدغه سفرکی دافغانستان له خوا جمهـور رئیس ښاغلی محمد داؤد، دتجارت وزیـر ښاغلی محمدخان جلالر، دپلان وزیر ښاغلی علی احمدخرم، داوبواوبرښنا وزیر ښا غلی جمعه‌محمدمحمدی دبهرنیوچارودوزارت‌مرستیال ښاغلی وحیدعبدالله اوپه شوروی اتحادکښی دافغانستان دجمهوریت اوی سفیر ښـاغلـی علی احمد اوشوروی له پلوه دشوروی اتحاد کمونست گوند دمرکزی جرگه‌گی عمومی‌منشی ښاغلی لئونډبریژنف، دشوروی اتحادکمونست گوند دمرکزی جرگه‌گی دسیاسی دفتر غـړی اودشوروی سوسیالیستی جماهیرو اتحاددعالی شورا درئیسه هیأت صدر ښـاغلی نیکولای پودگورنی، دشوروی اتحاد د کمونست گوند دمرکزی جرگه‌گی دسیاسی دفتر غړی او د شوروی سوسیالیستی جماهیروداتحادد وزیرانو دشورا رئیس ښاغلی الکسی کـا سیگین، دشوروی اتحاد دکمونست گوند د مرکـزی جرگه‌گی دسیاسی دفترغـــړی او دشوروی سوسیالیستی جماهیرو داتحاد دبهرنیو چارو وزیرښاغلی اندری گرومیکو ، د اقتصـادی همکاریو دپاره دولتی جرگه‌گی رئیس ښاغلی سیمون اسکاچکوف او په افغـانستان کـی دشوروی سوسیالیستی جماهیرو داتحاد اوی سفیرښاغلی الکساندر پوزانوف خبری وکړی.

دخبرواترو په وخت‌کی چی ددوستی ، باور اوښه تفاهم په فضاکی وشوی دپرمختیایی مسئلو اوددوه اړخیزوروابطو دلاپینگتیا په‌باب ژورغورروشو اوددواړو هیوادو دعـلاقی وړ بین المللی مهمو موضوع گانوپه باره کـی مفصلی خبری اتری وشوی . دافغانستان دملی خپلواکی دبیرته اخیستلو داته پنځوسم‌کال اوداکتوبر دسوسیالیستی سترانقلاب دشپیتمی کالیزی په درشل کی دواړو خواو مشرانوپه ابتکاردمتقابله په رسمیت پیژنـدلی او د

## د جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد مسافرتونه

دجمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد لخوا دشوروی اتحاد دمشرانو په نامه د دوستی ټیلگرام مسکوته مخابره شوی اوپه هغه کی په مسکو کی دخپلی استوگنی په وخت کی دشوروی اتحاد د حکومت اوخلکو دښی میلمه پالنی اوتود هرکلی څخه مننه څرگنده شوېده.

جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد اودهغو ملگری هیات د شوروی سوسیالستی جمهوریتونو اتحاد ته ددری ورځنی رسمی اودوستانه سفرله پای ته رسولو وروسته دوری په ۲۶ نیټه مازدیگر کابل ته راغی.

زمونږ ملی مشر ښاغلی محمد داود دسپرلی الوتکه ترغرمی وروسته په څلورو بجو دکابل بین المللی هوایی ډگرته راورسیدله اوهغه وخت چی د جمهوریت موسس له الوتکی څخه راکوز شو ښاغلی محمد نعیم، دملی دفاع وزیر ډگر جنرال غلام حیدر رسولی دمالیی وزیر ښاغلی سید عبدالاله ،د دولت وزیر ډاکتر عبدالمجید ،دکورنیو چارو وزیر ښاغلی عبدالقدیر ،د جمهوری دفتر رئیس ښاغلی محمداکبر ،کابل ښاروال ډاکتر غلام سخی نورزاد، اوپه کابل کی دشوروی دلوی سفارت شارژ دافیر د انقلاب دمشر هرکلی وکړ.

ور پسی زمونږ ملی مشر وروسته له هغه چی موزیك جمهوری ملی سرود وغږاوه د تشریفاتی گارد سلام او احترام مراتب ومنل اوهغه یی وکوت.

وروسته جمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد دکابینی له غړیو، لوی درستیز ،جنرالانو او دجمهوری دولت وسله والو قواوو له منصبدارانو ،ملی ستړو مامورینو سره چی زمونږ دملی مشر دهرکلی له پاره په هوایی ډگر کی حاضر شوی وو داحوال پوښتنه وکړه.

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد کابل ته درارسیدلو په وخت کی جمهوری تشریفاتی گارد معاینه کوی



افغانستان اوشوروی دولت ترمنځ ددوستی دروابطو دټینګیدو تاریخی اهمیت دخپل‌هیواد دخپلواکی په خاطرافغانستان دولس دمبارزو مشرانو اوولادیمیرایلیچ لینین یادونه وکړه .

دواړو خواو څرګنده کړه چی د۱۹۲۱ کال ددوستی تړون ددواړو هیوادو ترمنځ د۱۹۲۱ کال دبیطرفی اومتقابله نه‌تیری تړون نن هم دافغانستان اوشوروی اتحاد داړیکو بنسټ بلل کیږی اودغه رازپه پوره ډاډ سره دافغانستان دجمهوریت اوشوروی اتحاد په ګټوخدمت کوی .

دافغانستان دجمهوری دولت جمهور رئیس اوشوروی مشرانو ددوستانه اړیکواو د افغانستان اوشوروی اتحاد تر مینځ دبرابرو حقوقو حاکمیت اودخپلواکی حق ته دمتقابله احترام اویودبل په‌کورنیو چاروکی دلاس نه وهلوپه بنیاددښه ګاونډی توب د بریالی پرمختیاله امله خپل زیات‌رضایت څرګندکړ.

افغانستان اوشوروی اتحاد کلك عزم لری چی په راتلونکی وخت‌کی هم ددواړو خواو ترمنځ ددوستی‌اړیکی همکاری‌اوښه‌ګاونډیتوب له پخوانه زیات ټینګ کړی اودغه کار دافغانستان اوشوروی اتحاد دخلکوله ګټو سره پوره سمون خوری .

دبین المللی سولی اوامنیت دټینګښت دپاره خدمت کوی . دواړو خواوهغه سلا مشوری چی ددواړوهیوادو ترمینځ دافغانستان اوشوروی اتحاددخپل مینځی‌مسالواوبین‌المللی مسالو په باب کیږی ډیری ګټوری بللی او عقیده یی څرګنده کړه دغه سلامشوری چی عنعنوی بڼه یی غوره‌کړی باید په‌راتلونکی وخت‌کی هم دوام وکړی .

دواړو خواو درضایت په څرګندولو سره وویل :

چی ددواړو هیوادو تر مینځ اقتصادی همکاری چی دبرابرو حقوقو له مخی اومتقابله ګټه‌وده اوپراختیامومی له پخوانه زیات‌داوړدی مودی بڼه غوره کوی .

دغه‌کار پدغه برخه‌کی داقتصادی علایقو دزیاتی پرمختیااودعملی مسئلو دحل دپاره‌هم شرایط برابروی .

ددواړو خواوپه عقیده داقتصادی همکاریو دپاره دافغانستان اوشوروی اتحاد دګډی جرګه‌ګی دکارپیل پدغه لاره‌کی مهم ګام بلل کیږی .

په اقتصادی برخه‌کی ددواړوهیوادوترمینځ دعلایقو دلاټینګتیا دپاره دهیلی په پیسروی دواړوخواو د۱۳۵٦کال دوری په پنځمویشتمه نیټه دافغانستان دجمهوری دولت دحکومت اودشوروی سوسیالیستی جماهیرو د اتحاد دحکومت ترمینځ په مسکو کښی داقتصادی همکاری په باب یوه موافقه لاسلیك کړه .

دواړو خواودافغانستان دجمهوری دولت او د شوروی سوسیالیستی جماهیرو د اتحاد ترمینځ دتجارتی اړیکو پرمختیایی د۱۹۷٦کال دجون په میاشت‌کی د۱۹۷٦-۱۹۸۰ کلیو نو دپاره دشیانو دراکړی ورکړی دموافقی له مخی مینځ ته راغی بریالی بللی نوواو یی

څرګند کړچې دشیانو متقابله سپارنې اندازه به زیاته اوداقلامو فهرست به پراخه شي .

دواړو خواودغه رازپه فرهنګي او صحي برخوکې دهمکارۍ مثبته پرمختیا یاده کړې دغو همکاریو دپراختیا دپاره یې خپل عزم اعلام کړ .

دواړوخواو بیاټینګار وکړچې دوی دخپل مینځې علایقو سویه چې په بیلابیلو برخوکې حاصله شوې ده ددواړو هیوادو خلکو داروښتناکې پاڅګې اودهغو دولتونو تر مینځ چې بیلابیل ټولنیزنظامونه لرې، په روغه‌جوړه کې دګډژوند ستر ښکارندوی بولي .

دواړو خواو دبین المللي روانو مهمومسألو په باب دخبروپه وخت په مسکوکې د۱۳۵٤ کال دغبرګولي داتلسمې نیټې دافغانستان او شوروي اتحادپه ګډه ویناوپه کابل کې د۱۳۵٤ کال دلیندۍ د(۱۹) نیټې دافغانستان اوشوروي اتحادپه ګډه اعلامیه‌کې اصلي مندرجاتو تائیداودهغو ټینګار وکړ .

دواړو خواوهغه مثبتې پرمختیاوې چې په اروپاکې دامنیت اوهمکارۍ دعمومي جرګې له جوړېدووروسته په بین المللي حالاتو کې مینځ ته راغلي څرګندې کړې اوپه بین المللي اړیکوکې دیوې داوامداري‌عملي‌اونه اوښتونکې عملیې په توګه دډیتانت دبدلیدو دضرورت اوډېرې ټولو سیمو‌ته ددغې عملیې دلمنې دزسیدوپه باب دخپلې ګلکې عقیدې یادونه وکړه .

ددواړوخواوپه عقیده دهغواضافي تدبیرونو نیول چې دملګروملتو دموسسې له منشور سره سم دبین المللي اړیکودنه بدلیدونکې قانون په نامه له زورڅخه داستفادې په برخه کې له زوراویاګواښ څخه دکار داخیستوڅخه دډډه‌کولو داصل له تثبیت سره مرسته کوي ضروري دي پدې مناسبت په بین المللي اړیکوکې دزورڅخه دکارنه اخیستو دنړیوال تړون دډیرژرلاسلیك کیدو اهمیت څرګندکړې شواودنظر اتفاق وښودل شو چې دغه شان تړون په نړیوالوحالاتو باندې په زړه پورې اغیزه لرې اودټولوهیوادوله پاره به دامنیت دزیات تامین سبب شي .

دواړه خواوې عقیده لرې چې ددغه تړون مسوده چې اوس اوس دملګرو ملتو دموسسې ترغورلاوخیړنې لاندې ده دنړۍ دټولو ذیعلاقه هیوادو ترمینځ موافقې ته درسیدو دپاره ډیر ښه بنسټ بلل کیږي .

دواړوخواو دبین المللي او سنیو روابطو دډیرې مهمې مسالې یعنې دتسلیحاتي مسابقو دبندیدو دمسالې پوره اوعمومي بې وسلې‌کولو ته درسیدواو دجګړې له خطرڅخه دبشریت دژغورنې اوترټولودمخه له اټومي جګړې څخه دژغورنې دمسالې د حل اوفصل له پاره دلاغیزمنو تدبیرونو دنیول کیدوپه باب خپل نظرڅرګند کړ .

داټومي وسلې دنه خپریدو دتړون دټولو مقرراتو اوله دغه تړون سره دټولوهیوادودډیرو ځای‌کیدوداټومي وسلې دټولوازمویښو دمنع‌کیدو دبین المللي تړون دلاسلیك اود کیمیاوي

وسلی دمنع کیدو اوله مینځه وړلودمقابلی ژور اجراله پورتنیومقصدونو سره به سمون ولری په اوسنیوشرایطو کنبی دولیزه له مینځه وړلو دوول دول نویو وسلو او سیستمونو برابرولو اوتولیدد منع کیدو دموافقی دلاسلیك ضرورت ډیرمهم اړخ لری .

ددی ټکی په نظرکی نیولوسره چی په اروپا کی دامنیت اوهمکاری مسالی بریالی حل او فصل نه یوازی داروپا دپاره بلکی دټولـــی نړۍ دپاره ستر اهمیت لری .

دواړو خواو پدغه باره کی داروپا دعمومـــی جرگی دوروستی سند دلاسلیکوونکو هیـوادو له خوادیوه تړون دلاس لیك کیدو دمفکـوری ملاتړوکړچی هیڅ یولوړی هیواد دی دبـل هیواد په خلاف له اتومی وسلی څخه کار وانه اخلی .

دافغانستان جمهوری دولت او شـــوروی اتحاد دبی وسلی کولو دپاره دملگرو ملتـــو دموسسی دعمومی ټولنی دځانگړی غونـــډی دجوړیدو په گټه نظرڅرگندکړدغه شان غونډه دبی وسلی کولو دنړیوالی جرگی دجوړیدو په لاره کی دمهم گام په توگه بولی .

دواړوخواوپه منځنی ختیځ کی دلانجو ددوام له امله خپله ژورهاندیښنه څرگنده کړه دوی یوشان عقیده لری چی په منځنی ختیځ کـــی دعادلانه اودوامداری سولی ټینگیدل له ټولو هغوعربی ځمکو څخه چی په ۱۹٦۷ کال کی نیول شوی ډیرژراوپه بشپړه توگه داسرائیلی پوځ وتل غواړی اودیوه ملی دولت دجوړیدو له پاره دفلسطین دخلکـــو دحق په کړون دفلسطین دعربو خلکو درواحقوقو تأمین دی.

دواړه خواوی دفلسطین دآزادی د موسسی په کړون دټولو علاقه لرونکو اړخونوپه گډون دمنځنی ختیزپه باب دژنیودجرگی دسمـلاسی بیاجوړیدو ملاتړ کوی . داسیادوچی په مسالو باندی دغوراوڅیړنی په ترڅ کی یوځل بیایی ددغی وچی دټولو هیوادوپه گټزیار سره داسما دسولی اوثبات دټینگښت دپاره خپله زیاتـه علاقه څرگنده کړه او د افغانستان او شوروی اتحادپه گډوسندونو کی یی پدغی مسالـــی پوری مربوط مندرجات تائید اودهغو ټینگـار وکړ .

دافغانستان جمهوریت اوشوروی اتحـاد د هندونیمی وچی دهیوادوترمینځ دښه گاونډیتوب دروابطو او همکاریو دټینگیدو طرفداردی او عقیده لری چی داختلاف وړهغه مسالی چه په دغه سیمه کی شته بایددخبرودلاری اودبهرنیو قواودهیڅ دول لاس وهنی پرته حل وفصل شی .

دواړوخواوی امیدڅرگندوی چی دافغانستان اوپاکستان ترمینځ سیاسی اختلاف دروغـــی جوړی اودخبرو دلاری حل کیدای شی اوهمغه تماسونه چی ددواړو هیوادو دمشرانو ترمینځ پیل شوی، له دغه کارسره به مرسته وکړی .

دواړوخواو دناپیلتوب دنهضت داستعمار ضد اوامپریالیستی ضد خصوصیت په مثبته توگه څیړلی اودغه نهضت یی په بین المللی سیاست کی دمهم عامل په توگه بللی دواړی

څرګندکړچي ناپېیلي هیوادونه په راتلونکي وختکې هم دبین المللي سولې او امنیت دتقویې دپاره داستعمار اوامپریالیزم دتیری دسیاست په خلاف دخلکواوولسونو په عمومي مجادله کې زیاته ونډه سرته رسولې شي .

دافغانستان جمهوریت او شوروي اتحاد داستعمار دله مینځه وړلواودهغه دوروستیو بقایاودله مینځه وړلواودنژادي توپیردلرې کولو دعملي چټکتیا غوښتونکي دوی دخپلې آزادۍ او خپلواکۍ دپاره دزمبابوې او نامیبیا دخلکو دعادلانه مبارزوله امله خپل ملاتړ څرګندوي .

دواړو خواو داپارتاید سیاست چې دجنوبي افریقا دنژادپال رژیم له خواتعقیبیږي سخت غندلې اودجنوبي افریقا دخلکو دهغو حقوقو دترلاسه کیدوله پاره چې انکارتری نشي کیدای ددغه ځای دخلکوداکثریت دمبارزو له امله یې خپل ملاتړ څرګند کړ .

دواړو خواو هغه اهمیت چې ددوی هیوادونه یې دبین المللي سولې اوامنیت په ټینګتیاکې دملګرو ملتو دموسسې درول له پاره ورکوي څرګند کړاوویې ویل :

دی ته چمتودي دملګرو ملتو دموسسې دمنشور ژورتطبیق په اساس ددغې موسسې داغیزمنتوب دسویې دلوړیدوپه مقصد خپلې همکارۍ ته دوام ورکړي .

دواړوخواو داڅرګند کړچې دشوروي سوسیالستي جماهیرو اتحادته به دافغانستان دجمهوري دولت دجمهور رئیس سفر اوهغه خبرې چې ددواړوخواو تر مینځ وشوې دافغانستان دجمهوري دولت اودشوروي اتحاد ترمینځ ددوستي دعلایقواودهراړخیزې همکارۍ دلاپراختیا دپیاوړتیاپه کال کې نوی او مهم سهم وبلل شي .

دافغانستان جمهوررئیس ښاغلی محمدداؤد دشوروي اتحاد دکمونست ګوند د مرکزي جرګې عمومي منشي ښاغلي لئونیدبریژنف دشوروي سوسیالیستي جماهیرو داتحاد دعالي شورا درئیسه هیأت صدر ښاغلي نیکولای پودګورني اودشوروي سوسیالیستي جماهیرو داتحاد دوزیرانو دشورا رئیس ښاغلي الکسي کاسیګین ته بلنه ورکړه چې افغانستان ته رسمي اودوستانه سفرونه وکړي چې په تشکر سره ومنل شوه .

## دافغانستا ن او شوروی اتحا دداقتصا دی همکار ی دموافقی متن

په هغه کړه اعلامیه کې چه د شـوروی سوسیا لستی جماهیرو اتحاد دوست هیواد ته جمهور رئیس ښاغلی محمد داود له رسمی سفر څخه وروسته خپره شوه په هغې کې د افغانستان اوشوروی اتحاد ترمینځ داقتصادی همکاری دیوی موافقی دلاسلیک یادونه هم شوی وه داده د دغې موافقې بشپړ متن چـه د افغانستان دپلان وزیر ښاغلی علی احمـد خرم اوشوروی اتحاد د پلوه د شوروی اتحاد د اقتصادی همکاریو دپاره د دولتی جرګـه ګی رئیس ښاغلی سکاچکوف د ۱۳۵٦ کال دوری پر ۲۵ نیټه دمسکو په ښارکـی لاسلیک کړه یدی ډول وړاندی کیږی :

د افغانستان د جمهوری دولت د حکومت او شوروی سوسیالستی جمهوریتونو د اتحاد حکومت ترمینځ داقتصادی همکاری په باب موافقه .

د افغانستان د جمهوری دولت د حکومت او شوروی سوسیا لستی جمهوریتو نیو د اتحاد د حکومت د دوستانه اړیکو اوښـیـه ګاونډیتوب په مخې اود ۱۹۲۱ کال دفبروری دمیاشتې د ۲۸ نیټې د دوستی دترون اود ۱۹۳۱ کال دجون دمیاشتې ۲٤ نیټی دبیطرفۍ او دوه اړخیزنه تیری کولو دترون داصولو په اتکا اود ملګرو ملتو د موسسی دمنشـور دمقرراتو په اساس اود برابرو حقوقودیوبل په کورنیوچاروکی لاس نه وهلو اوپه راتلونکی وخت کی د اقتصادی تجارتي اوتخنیکی اړیکو دپرمختیا لپاره له تمایل څخه په الهام اخیستو سره حاکمیت ملی خپلواکی اودخـاوری د تمامیت ته ددوه اړخیز احترام دپـرنسیپونو

دافغانستان اوشوروی اتحاد ترمنځ داقتصادی همکاری دموافقت نامه په داسی حال کی چـی جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد اوشوروی اتحاد دعالی شورا درئیسه هیأت صدر ښاغلی نیکولای پودګورنی حاضر دی دپلان وزیر ښاغلی علی احمدخرم اوښاغلی سکاچکوف له خوا لاسلیک کیږی .



لەمخی ویتیبله دلاندنیو مراتبوپه باره کـــی دغه موافقه لاسس لیك کړی .

لومړی ماده :

دواړه ذمه واری خواوی په بیلا بیلـــو اقتصادی او تخنیکی برخوکی د دوه اړخیزو او داوږدی مودی دګټوله مخی د اقتصـا دی تخنیکی اوتجارتی دزیاتی همکاری د پراختیا اولاتینګښت په مقصد خپله هیله څرګندوی.

دویمه ماده :ـ

ددواړو هیوادو ترمینځ اقتصادی او تخنیکی همکاری بەپه لاندی برخوکی د دواړو خـواؤ موافقی وړبەمشخصو پروژو پوری‌دمربوطو موافقو او تړونونو لەمخی انکشاف اوپرا ختیا وکړی لکه دګاز، تیلو، پتروشیمی دصنایعو پراختیا اوکیمیا وی صنایع کرنه او اوبـــه لګول اونوری اقتصادی روغتیایی او دبیطاری څانګی دتیلوګاز اونورو وچوکانی موادودمیند لوپه مقصد دجیولوجی دپلټنو دکاروتو اجـرا کول او دهغو صنعتی ویستل .

دبرېښنا د انرژی پروژه جـوړول او د تاسیساتو ساختمان د ترانسپورت‌او مخابراتو پراختیا حرفه‌وی ښوونه او تخنیکی پرسونل دژوندانه دماحول اوچاپیریال اونوروساتنه .

دریمه ماده :ـ

دواړه ذمه واری خواوی‌په ټولو مسایلـو سره دافغانستان د جمهوری دولت اوشوروی اتحاد د ډیلاقه موسسو ترمینځ د اقتصادی تجارتی ،تخنیکی اړیکو په برخوکی دهمکاری دپرمختیا اوډله پلا دغی موافقی او ددواړو هیوادو درواتو قوانینو په اساس د موافقـو اوتړونونو دلاسلیك پەبرخه کی‌مرسته وکړی.

څلور مه ماده :ـ

ددوی اړخیزی اقتصادی، تخنیکی اوتجارتی همکاری دعملی اجرا پـه مسئلـو بانـــدی د اقتصادی همکاری په باب د افغانستان او شوروی اتحاد د حکـومتونو ترمینځ دایمـــی جرګه‌ګی کی‌غور اوخبری کیږی .

اومربوط پیشنهادونه به ددواړو هیـــوادو دحکو متونو دخیرنی د پاره وړانده شی.

پنځمه ماده :ـ

دغه موافقه په هرڅل دپنځو راتلو نکـو وړده اود دولسو کلونو دپاره اعتبار لری.

دغه موافقه په هرڅل دپنځو راتلونکـــه کلونودپاره بەپه اتوماتیك ډول اوږدەشی‌پدی شرط چه دموافقی د اعتبار او دمربوطی‌مودی دتیریدو څخه یوکال مخکی له دواړو خـواوه څخه هیڅ یوبل ذمه واروری دهغی داعتبار دفسخی په نسبت دخپل تمایل پەباب دلیك پەوسیله خبر نکړی .

دغه موافقه دمسکوپه ښارکی د ۱۳۵۶کال دوری په ۲۵ نیټه چه د ۱۹۷۷ عیسوی کال داپریل خوارلسمه نیټه کیږی په دوو اصلی نسخوکی هر یوەپەدری او روسی ژبوچـــه دواړه متنونه یوبرابر اعتبار لری لاسلیـــك شویده .

علی احمد خرم د افغانستان د جمهور ی دولت دحکومت له خوا .

سکا چکوف د شوروی سو سیالستـــــی جماهیرو داتحاد دحکومت له خوا .

# دافغانستان دجمهوري دولت لومړۍ

# لويه جرگه

دافغانستان دجمهوري دولت لومړۍ لويه جرگه، لومړی دقرآن عظيم الشان دځومبارکو آيتونو په لوستلو کيدو اودملي سرود له خپريدو، وروسته زمونږ دملي مشرددولت درئيس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد په وينا د ۱۳۵۵ کال دسلواغې دمياشتې په لسمه نيټه دکابل په انصاري واټ کې دلويې جرگې په تالار کې پرانستله شوه .

«محترم لوستونکي به دملي لار ښود هغه وينا چې دلويې جرگې دپرانستلو په مناسبت يې کړې دملي مشر دويناگانو په برخه کې ولولي » .

ددولت ښاغلي رئيس اوصدراعظم دخپلې وينا په پای کې ، استاد عبدالکريم (حقاني) دلويې جرگې درئيس ټاکلو په مقصد دغونډې دموقت رئيس په توگه معرفي کړ .

استاد حقاني دلويې جرگې درياست دځوکۍ دمؤقتي نيولو نه وروسته په آزاده اوديموکراتيکه فضاکې دلويې جرگې درئيس ټاکلو لپاره رايې گيرې وکړه، چه درايې له اخستلو وروسته ښاغلي عزيزالله واصفي درايو په اکثريت دلويې جرگې دغړوځخه درئيس په توگه وټاکل شواودرياست ځوکۍ يې ونيوله .

وروسته بيا ښاغلي واصفي ، ښاغلي محمد علي فيض اوميرحبيب سهيلي دلويې جرگې له غړوځخه دمنشيانو په توگه پيشنهادکړل، چې درايو اخيستوپه نتيجه کې ، درايو په اکثريت ښاغلي محمدعلي فيض اومير حبيب سهيلي دغونډې دمنشيانوپه توگه وټاکل شول.

دجمهوري دولت دلومړۍ لويې جرگې غونډې چې دلويې جرگې درئيس ښاغلي واصفي په مشرۍ دمعمول سره سم هره ورځ دسهارله خواشروع او ترمازديگره يې دوام درلود، په ډيره ديموکراتيکه اوآزاده فضاکې دملي وثيقې په موادوباندې يې غوراوخبرې کولې .

دجمهوري دولت دلومړۍ لويې جرگې دغونډې گذارشات په لاندې ډول وړاندې کيږي .

دسلواغې ۱۰ر۵۵ :

دافغانستان دجمهوري دولت دلمړۍ لويې جرگې په ماسپښيني غونډه کې چه دلويې جرگې درئيس ښاغلي عزيزالله واصفي په مشرۍ وشوه، دسترملي غونډې دغونډو دطرزالعمل په باب خبرې وشوې .

پدغه غونډه‌کې چې دمازديگر تر پنځه‌نيمو بجو پورې روانه وه دلويې جرگې دغونډو دطرزالعمل مسوده چه‌په ديارلسو مادو کښې تدوين شوې ؤ دلويې جرگې داستازو اوغړيو

داوړدو خبرو اترووروسته دځینو تعدیلاتو سره تصویب شوه .

دلویې جرګې راتلونکی عادی غونډه دستر ملی غونډې دطرزالعمل دلسمې مادی سره سم هره ورځ دسهارله نهو بجو څخه دغرمې تر دوولسو بجوپورې اوله دوه بجوڅخه دمازدیګر ترځلورو نیموبجو پورې جوړیږي .

دسلواغې ۱۱ره ۵۵ :

دجمهوری دولت په لومړی لویه جرګه‌کی دملت استازو په خپلو غونډوکی دهیواد داساسی قانون دمسودی په لومړی فصل څخه شپږمادی درایو په اکثریت تصویب کړی .

دسهار په غونډه‌کی داساسی قانوندمسودی دموادو په مندرجه فهرست باندی اوږدی‌خبری وشوی اوله ځینوتعدیلاتو وروسته تصویب شو .

دلویې جرګې ترغرمی دمخه او وروسته غونډوکی دمندرجه موادو فهرست او دمسودی له لومړی فصل څخه شپږتصویب شوی مادی دلویې جرګې دمنشیانو له خوا ولوستل شوی اوله دغومادو څخه په هریوی باندی په‌آزاده اودیموکراتیکه توګه بحث اوخبری وشوی .

دلویې جرګې دیوشمیر استازو په پیشنهاد درایو په اکثریت فیصله وشوه چی داساسی قانون په مسوده باندی دغور او څیړنې دجرګه‌ګی له خوا دی دهیواد داساسی قانون دپاره یوه مقدمه جوړه شی اودلویې جرګې دوروستنی تصویب دپاره دی دارالانشاء ته وسپارله شی .

دسلواغې ۱۲ره ۵۵ :

دجمهوری دولت داساسی قانون دمسودی دلومړی فصل، لس‌مادی په‌لویه‌جرګه‌کی‌دملت استازوپه دوه ورځنیو خبرواترو کی دځینو سمونو سره تصویب شوی .

دلویې جرګې دسهارپه غونډه‌کی دملی وثیقی دمسودی دلومړی فصل په اوومی،اتمی اونهمی مادی باندی دملت داستازو اودلویې جرګې دغړیو له خوااوږدی خبری اتری‌وشوی اودځینو سمونو سره تصویب شوی .

دغه راز ترغرمی وروسته غونډه کی ددغی مسودی په لسمی اویوولسمی مادی باندی خبری وشوی . چه په نتیجه‌کی دلسمی‌مادی متن تعدیل اودزوی متن په تنظیم سره‌درایو په اکثریت تصویب اویوولسمه ماده چه دغونډې دطرزالعمل سره سم یی زیاتی خبری غوښتی دسباورځی غونډې ته‌پاتی شوه .

دلویې جرګې غونډې په ډیره دیموکراتیکه اوآزاده فضاکی وشوی اواستازو خپلی‌نظریی په غورسره څرګندی کړی .

دغونډوپه جریان کی دکابینی او داساسی قانون په‌مسوده باندی‌دغوراوڅیړنې دجرګه‌ګی یوشمیر غړیودمربوطو موادو دموضوعاتو په باره‌کښی د استازو پوښتنوته توضیحات ورکړل .

دسلواغې ۱۳ره ۵۵ :

دجمهوری دولت داساسی قانون دمسودی ددوهم فصل شلمه ماده دلویې جرګې دغړیو

دمفصلو خبرواو بحثونو نه وروسته دغه‌فصل پەدیارلسمه مادەکی مدغم اودرایو په اکثریت تصویب شوه .

لویی جرگی دورځی له غرمی نه پەمخکی اووروسته غونډوکی دملی وثیقی ددوهم او دریم فصل له یولسمی نه ترخلیرویشتمی مادی پوری خبری اتری وشوی اودغه مواد دځینوسمونو سره دلویی جرگی دغړیو لەخوا تایید اوتصویب شول .

دسلواغی ۱٤ر٥٥ :

دافغانستان دجمهوری دولت داساسی قانون دمسودی ددریم اوخلورم فصل پرشپږو مادو باندی دلویی جرگی دورځی ترغرمی دمخه غونډەکی خبری وشوی اودځینوسمونووروسته درایوپه اکثریت تصویب شوی .

تراوسه پوری چه دلویی جرگی غونډی خپل پنځمی ورځی ته ورسیدی ، دجمهوری دولت داساسی قانون مسودی ټولی دیرش مادی دلویی جرگی دغړیوله خواتاییدی ا و تصویب شویدی .

دسلواغی ۱٥ر٥٥ :

دافغانستان دجمهوری دولت لویی جرگی دهیواد داساسی قانون دمسودی دخلورم فصل په دیارلسومادو باندی چه دخلکو دحقوقو او وجیبوپه باره کښی دی غوروکړ. دجمهوری دولت لویی‌جرگی‌غړیودورځی ترغرمی دمخه او وروسته غونډەکی دهری مادی په باره کی چه دمنشیانو له خوا دغوراوځیړنی د پاره لوستل کیدی په پوره آزاده او دیموکراتیکه فضاکی خپلی نظریی اوعقیدی څرگندی کړی.

دلویی جرگی غړیوداساسی قانون دمسودی دیودیرشمی مادی نه تردری خلویشتمی مادی پوری دهغه په بیلوبیلو اړخونو باندی دخبرو وروسته درایو په مطلق اکثریت دغه مادی له ځینوسمونو سره تصویب کړی .

دغونډو په جریان‌کی داساسی قانون په مسوده باندی دغوراوځیړنی دجرگەگی غړیو پەلازموبرخوکی دلویی جرگی دغړیوپوښتنوته توضیحات ورکړل .

دسلواغی ۱۷ر٥٥ :

دجمهوری دولت داساسی قانون دمسودی یوویشت نوری مادی دخلورپنځوسمی مادی په پای‌کښی دیوه پراگراف اوپه پنځم‌فصل کی دیوی جلامادی په زیاتوالی له ځینو سمونو سره دلویی جرگی په غونډو کی تایید اوتصویب شوی .

ترغرمی مخکی اووروسته غونډوکی دهیواد دملی وثیقی دخلورم اوپنځم فصل له څلور څلو یښتمی مادی څخه ترخلورشپیتمی مادی پوری دلویی جرگی دغړیوله خوا مفصل‌خبری وشوی اوله ځینو سمونوسره دغه مادی تصویب شوی .

داساسی قانون دمسودی پرمادو باندی دزیات غورپه مقصد دجمهوری دولت دلویی جرگی غړیودرایوپه اتفاق فیصله وکړه چی دمجلس سهارنی غونډی دی چه دطرزالعمل سره سم دسهارپه نهوبجوپیل‌کیږی دسلواغی په اتلسمه په اتوبجوجوړی شی .

لویی جرگی ترغرمی دمخه اووروسته غونډو کی دلویی جرگی غړیوداساسی قانون‌دمسودی

دهری یوی هغی مادی په باب چه غورېږی وشوخپل نظریات اوپیشنهاد ونه په ډیــره آزاده اودیموکراتیکه فضاکی څرګند کړل .

ترغرمی دمخه‌غونډی په جریان کی دجمهوری دولت دلومړی‌لویی‌جرګی دپرانستلوپه‌مراسمو کی دجمهوریت دمؤسس ښاغلی محمد داؤد دوینامتن چه دعامه اطلاعاتو دخپرونو په لړ کی په مصوره توګه داطلاعات اوکلتوردوزارت له خواچاپ شویدی دلویی جرګی په غړیو او حاضرینوباندی وویشل شو .

دسلواغی ۱۸ر۵۵ :

دهیواد داساسی قانون دمسودی پنځه‌اتیا مادی دجمهوری دولت دلویی جرګی له خــوا تصویب شویدی . دملی وثیقی د مســودی دشپږم فصل اواووم فصل یوویشت مــادی چه دلویی جرګی دمنشیانوله خواغونډی تــه ولوستل شوی په پوره دیموکراتیکه فضاکی له اوږدوخبرو وروسته له ځینو سمونو سره تصویب شوی .

په غونډو کښی داساسی قانون په‌مسودی باندی دغوراوخیړنی دجرګه‌ګی یوشمیر غړیو دخبرو وړموادو په ارتباط په لازموبرخو رڼا واچوله اوغونډی ته یی توضیحات ورکړل .

دسلواغی ۱۹ر۵۵ :

دجمهوری دولت لویی جرګی دهیواداداساسی قانون دمسودی له اووم ـاتم ـاونهم فصــل څخه پنځلس مادی داتم فصل په یونوی یمه ماده‌کی دیوه پاراګراف په زیاتولو او ځینو نورسمونو سره درایوپه اکثریت تصویــب کړی .

دلویی جرګی ترغرمی دمخه اووروسته‌غونډو کښی داساسی قانون دمسودی له شپږاتیایمی مادی نه ترسلمی مادی پوری په وار ســره دلویی جرګی دمنشیانو له خواولوستل شوی. چه له اوږدو خبرواتراو پدغه برخه کښــی دغونډی دغړیودپیشنهادو اونظریوله وړاندی کیدووروسته چه‌په آزاده اودیموکراتیکه فضا کښی وشول دغه مادی تصویب شوی .

ترغرمی دمخه غونډه‌کښی داساسی قانون په مسوده باندی دغوراوخیړنی دجرګه ګــی ځینوغړیوپه مربوطو برخوکی دلویی جرګــی دیوشمیرغړیو پوښتنوته توضیحات ورکړل .

دجمهوری دولت دلویی جرګی غــونــډی دملی وثیقی سل مادی دلویی جرګی دغړیوله خواپه آزاده فضاکښی له ځینو سمونو سره تایید اوتصویب شوی . دلویی جرګی دخبرو دجریان داوریدودپاره یو شمیر داخلــی او بهرنی رابلل شوی‌کسان هم ورغلی وو .

دسلواغی ۲۰ر۵۵ :

دجمهوری دولت دلویی جرګی غړیوپه خپلو غونډوکی دملی وثیقی دمسودی په شپږو نورو مادوباندی غوراوخیړنه وکړه اودیو سلویوی اویوسلودوهمی مادی دمتن په بیاتنظیمولواو ځینو نورو سمونو سره یی دغه مادی تایید اوتصویب کړی .

ترغرمی دمخه اووروسته غونډوکی داساسی قانون دمسودی دنهم فصل له یوسلو یو ی مادی څخه تریوسلو شپږمی مادی پــوری دغونډی دمنشیانو له خوا ولوستل شوی اوپه هری یوی مادی باندی په آزاده او پــوره

دیموکراتیکه توگه اوږدی خبری اتری وشوی.

دهیواددملی وثیقی یوسلوشپږمادی دلویی جرگی په غونډوکی له ځینوسمونو، زیاتوالی اوکموالی سره تصویب شوی. دغوغونډودجریان داوریدو دپاره هم یوشمیر داخلـــی کسان ورغلی وو .

دسلواغی ۲۰ر۵۵ :

ددولت رئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد دجمهوری دولت لومړی لویی جرگی دغونډی جریان چه پهزړه پوری آزاده اودیموکراتیکه فضاکی وشوه ولیداو واورید .

کله چهدجمهوریت مؤسس ښاغلی محمدداؤد دلویی جرگی تالارته ورسید دلویی جرگـــی غړی اوحاضرین ودریدل په اوږدوچکچکو او تودواوله خوښی اوخوشحالۍ دکو احساساتو په ښرگندولو سره یی دانقلاب دمشر هرکلی وکــړ .

ترغرمی دمخهپه غونډهکی دهیوادداساســی قانون پهمسوده باندیدغوراوخیړنی دجرگهگۍ په پیشنهاد دقضاپه نهم فصل کی دوه نوی مادی شامل کړی شوی چه دمنشیانوله خــوا دلوستل کیدو آوازدوخبرو اترووروسته دلویی جرگی غړیو تائید کړی .

په غونډهکی دملی وثیقی نوری څوارلس مادی دقضا په نهم فصل کښی ددوونورمادو په زیاتوالی له ځینوسمونو سره درایو پـــه اکثریت تصویب شوی .

دمعمول سره سم یوشمیر داخلی اوخارجی کسان دلویی‌جرگی تالارته ورغلی اودغونډی جریان یی واورید .

دغه راز داساسی قانون په مسودی باندی دغور اوخیړنی دجرگی غړیو مطروحه موادوپه باب دلویی جرگی دغړیو پوښتنوته ځـــواب ووایه اوپه بیلابیلوبرخو باندی‌یی رڼاواچوله.

غونډی ترغرمی وروسته تردولس نیموبجو پوری دوام وکړ .

زموږ ملی مشرښاغلی محمد داؤدسهار له نهوبجو اوخلویښتو دقیقو څخه ترپایه پوری دغونډو جریان ولیداو واوریداوکله چه دتالار څخه ووت په خوښی اوخوشحالــــی اواوږدو چکچکو شعارونو سره بدرگه شو .

دسلواغی ۲۳ر۵۵ :

دجمهوری دولت لویی جرگی په څلوغونډو کی دهیوادو دملی وثیقی دمسودی دانتقالـی احکامو اوعمومی احکامو له فصلونو څخهلس مادی تصویب کړی.

دجمهوری دولت دلویی جرگی غړیوترغرمی دمخه غونډی په پیل‌کی دهند دفقید جمهور رئیس‌اروانښاد فخرالدین علی احمد دمړینـــی له امله یوه دقیقه سکوت وکړ .

دلویی جرگی ترغرمی دمخه او وروستـــه غونډوکی چی ښرگندی وشوی داساسی قانون دمسودی له وروستیوفصلونو څخه لس مادی دمجلس دمنشیانو له خواولوستل شوی چـی په دیموکراتیکه فضاکی له اوږدو خبرو اواترو وروسته دغهمادی له ځینوسمونو سره تصویب شوی .

دغه رازپه غونډوکی یوه نوی ماده اویوه سریزه چی دمجلس دتصویب له مخی داساسی قانون پهمسودهباندی دغوراوخیړنی دجرگهگۍ

له خوابرابره شوی پدغه برخه‌کی له خبرواو دلویی جرگی دغړیوله خوا دنظرله څرگندیدو وروسته دراپوپه اکثریت تائید شوه .

دسلواغی ۲۴ـ۵۵

دهیواد داساسی قانون مسوده دکل په توگه درایو په اتفاق‌تصویب شوه ـ

دافغانستان دجمهوری دولت داساسی قانون مسوده‌دپنځونویومادویوی سریزی‌په زیاتوالی اوپه څینو نورو موادوکی له یوځه سمونوسره دجمهوری‌مو دولت دلوړی لویی جرگی له‌خوا تصویب شوه .

دجمهوری دولت‌لوړی‌لویی جرگی وروسته له‌هغه چه دسلواغی په لسمه نیټه دجمهوریت دموسس ښاغلی محمد داود په ویناپرانستل شوه په خلیرویشتو غونډو وکی چه‌په پنځلسو ورځوکی وشوی دلویی‌جرگی‌غړیودهیوادپه‌ملی وثیقه کی په‌مندرج شویو موادو باندی په آزاده دیموکراتیکه فضاکی اوپه دقیقه توگه او دهمکاری په روحیی سره غوروکړ او له اوږدوخبرو اترو وروسته یی هغه تصویب کړل .

ترغرمی دمخه اووروسته غونډوکی چه د معمول سره سم دلویی جرگی درئیس ښاغلی عزیزالله واصفی په مشری څرگندی وشوی دهیواد داساسی قانون مسوده دنویو مادوپه زیاتوالی چه یوه سریزه فهرست اودیارلس فصلونه پکی شامل دی دکل په توگه مجلس ته ولوستل شواودرایو په اتفاق یوځل بیا تایید اوتصویب شو .

پدغه وخت‌کی دهیواد داساسی قانون دمسودی، وروستی تصویب دجمهوری دولت دلویی جرگی دغړیوداحساساتو په څرگندیدو اواوږدوچکچکوسره بدرگه شو .

دمعمول سره سم یوشمیر داخلی اوخارجی کسان هم دغونډو دجریان داوریدو دپاره ورغلی ؤ.

دسلواغی ۲۵ر۵۵

دافغانستان دجمهوریت مؤسس ښاغلی محمد داؤد درایو په اتفاق دملت د استازو له خوا دافغانستان دلومړی جمهور رئیس په توگه وټاکل شو .

لکه چه دسلواغی د۲۴ نیټی په دوهمه غونډه کښی فیصله شوی وه د افغانستان دجمهوری دولت لویی جرگی ترغرمی دمخه په لسوبجودښاغلی‌عزیزالله واصفی په‌مشری دافغانستان دلومړی جمهور رئیس دټاکلو په مقصد غونډه وکړه .

ښاغلی واصفی دغونډی په پیل‌کی دملی ستری غونډی غړیوته بلنه ورکړه چی پخپله اویاخپل کاندید دمجلس غړی وی اوگه له مجلس څخه بهردجمهوری ریاست دمقام دنیولو دپاره معرفی کړی .

پداسی حال‌کښی دلویی جرگی زیاتروغړیو دوینا کولو هیله درلوده له هغوی څخه څو تنوله احساساتو اودوطن دوستی څخه ډکی ویناوی وکړی اوټولو غړیوپه یوه غږدغونډی له رئیس څخه وغوښتل دانقلاب له مشرڅخه هیله وکړی چی په خپله دهیواد دلومړی جمهوررئیس په توگه خپل ځان کاندید کړی اوبیاهم دغه سترملی مسئولیت په غاړه

واخلي .

دلویي جرگې رئیس دغونډې دغړیو دبیا تینگار له امله له‌ښاغلي محمد داؤد څخه هیله وکړه چې دافغانستان دملت داستازو دغـــي غوښتنې ته ځواب ورکړي .

## دانقلاب مشر ښاغلي محمدداؤد دملت استازوته‌په خطاب کې وویل:

دلویي جرگې دجناب رئیس په اجازه ځما ډیرودرندو اوگرانو خویندو اووروڼو ستاسې دزړه له‌کومې احساساتو او قدر پیژندنې څخه ډیرزیات خوښ یم اوخپل دزړه له کومـــې تشکرات تاسې ته وړاندې کوم .

هیله لرم ددغې لویې جرگې دیوه غـــړي په توگه په خپل وارخپل نظرپه خولکیوکې ستاسې په خدمت کې څرگندکړم. باور لرم په یادبه مووي چې ما په لومړي جمهــوري اعلامیه‌کې داسې‌ویلي وُدخپل وطن په خدمت کې دبیلابیلو مسئولیتونو د مودې په اوږدو کښې دیوه داسې هدف په لټه‌کښې وم چې دافغانستان دخلکوپه تیره بیادهیواد دمحرومو طبقو اوځوان نسل دپاره دمادي او معنـوي روزنې اوودې یومثبت اوربنتیاني چاپیریال پیداشي اوپه هغه‌کې دوطن ټول وگړي لـــه توپیراوامتیازه څخه پرته دخپل وطن دآبادۍ اولوړتیا په لارکې برخه واخلي اودمسئولیت احساس وکړي.

داهغه‌خبره وه چې ما‌دافغانستان دجمهوریت په لومړي اعلامیه‌کې گرانو وطنوالوته کـړې وه، اُن یوځل بیا تاسې ته عرض‌کوم چې په خپلې همغې خبرې باندې ایمان لرم اوهغه مې دزړه له‌کومې کړیده .

هغه ملي حرکت چې وشوددې دپاره نهٔ چې زه نن یوه څوکۍ اویایومقام ولرم.

ډیروگرانو وطنوالو! خپل وطن ته دخدمت کـولودمودې په اوږدوکښې ځمادپاره ټـول امکانات میسرؤ اوخپلو اجراآتو په لاره‌کښې مې هیڅ خنډنه لیده زماحقیقي هیله هغه‌ټکیؤ چې دجمهوریت په لومړنې اعلامیه‌کې مـــې څرگند کړې ؤ اونن مې هغه ستاسې په‌خدمت کښې عرض کړ.

ددریو کلو اواتومیاشتو په موده‌کې چـې دجمهوري نظام له دورې څخه تیریږي ځماد ملي وظیفې دلومړي پړاو یوه برخه ځما په عقیده اجراشویده خوباید له یاده ونه باسو چې ملي وظیفه دومره مهمه اوستره ده چې ددې هیواد له‌افرادوڅخه هیڅ یووگړي حـق نلري ووایي چې خپله ملي وظیفه مې ترسره کړیده . ملي وظیفه له دغوټولوځیزونونه‌ډیره ستراودرنده ده چې نن مونږسرته رسولې ده اویایې په راتلونکي وخت‌کې سرته رسوو .

دغه وطن زمونږوطن دی، دغه خاوره زمونږ خاوره ده، دغه وطن پرمونږباندې حق لـري اودوطن دهروگړي اوبچې ملي وظیفه ده چې دهغه دنیکمرغۍ ، دهغه دلوړتیااوسر لوړې دپاره هرهغه څه چې په‌وس یې پوره وي. دخدمت کولوپه لاره‌کښې ونه سپموي .

دافغانستان دجمهوریت لومړي پړاوتر نن پورې دوام وکړهغه څه چې مې وکړې شول اویامې ونشوکړې ښه وه اوکه خراب داالبته دملت اودافغانستان دتاریخ‌قضاوت ته‌پریږدم.

اوس دافغانستان دجمهوری نظام نــوی پراوپیل کیږی هغه پراوچی په ربنتیا ډیر جدی پرله پسی اونه ستړی کیدونکی زیار غواړی .

زه ستاسی دوروریه توګه ستاسی د یوه خیرغوښتونکی په توګه اودخپل وطن دیــوه خیرغوښتونکی په توګه فکرکوم او مشــوره ورکوم چه ددغه سخت پړاو دپاره نور هغه کسان که چیری پهخپل ځانکی خپل وطن ته دخدمت کولوپه لارهکی زیات وس او طاقت ویني دافغانستان دجمهوری دریاست دپــاره خپل ځان کاندید کړی .

هرهغه خوك چه ددغه مقام په سر کــی ځای ونیسی اوترهغی ورځی پوری چهداساسی قانون پیرواود افغانستان د ملــی انقــلاب دهدفونو پیرووی باوردی ولری چه دیــوه سرښندونکی په توګــه ددغه وطن د یــوه فداکاروګړی په توګه اوپه پوره ویاړ سره له هغه سره مرسته کوم .

داوه ځما عقیده چه داوبی جرګی دیــوه غړی په توګه می څرګنده کړه هر څنګه چه دافغانستان ملت تصمیم ولری کهٔ څــه هــم ځمادځان اوبچیانو په قربانۍ تمام شی په باورسره وپوهیږی چه دهغه پیروی بهوکړم .

ښاغلی محمد داؤد دافغانستان دلومــړی جمهوررئیس په توګه دخپلی کاندیدی دمنلوپه باب دملت داستازو دبیابیا اوله احساساتو ډکه دډکی غوښتنی په اثردځواب په تــرخ کښی وویل :

ستاسی درندو وکیلانو له احساساتــو او قدردانۍ څخه خوښی یم زه خپل وطن تــه دخدمت کولوپه لارهکــی حاضریم ستاســو محترمو وکیلانو غوښتنه ومنم خو زیاتــوم چی دغه ملی درنده وظیفه به ترهغه وختـه پوری په غاړه واخلم چی روحاًاوجسماً، دهغی دسرته رسولووس ولرم اوترهغه وخته پوری چی وپوهیږم دافغانستانملت دخپلیتګلاری، ددولت دتګ لاری اودهغه څه چیپه خپلهیی تصویب کړی، پیروی کوی اوترهغه وختــه پوریچی دافغانستان دنجیبو خلکو همکــاری میسره وی دوروستنی توان اوقدرت سره به ددغی ملی وظیفی له سرته رسولو څخهغاړه ونهغړوم خوکله چی وپوهیږم چی جسماً او فکراً ددغی ستری ملی وظیفی دسرته رسولو توان نلرم نوخپل معذرت به دافغانستانملت ته وړاندی کړم .

لهلوی خدای (ج) څخه دخپل ځان اوټولو هغو کسانو دپاره چی دافغانستان دسرلوړۍ پهلارهکښی دخدمت کولوهیله لری دپورهبری هیله کوم .

پدغه وختکی ټولو حاضرینو دجمهوریــت دموسس لهدغه مثبت ځواب څخه داحساساتو په څرګندولو چکچکو اوشعارونو سره دخپلی پرله پسی خوشحالۍ مراتــب څرګند کــړل اودګلانوپه شیندلو سره یی ددوی هرکلــی وکړ .

بیاوروسته دملت دوشمیر استازو دوددغی برمه دکی غونډی اوجمهوری نیکمرغه نظـام

په ارتباط چې دانقلاب دلاربښودپه مشر تابه دافغانستان دلرغوني هيواد په برخه شوي وېناوي اوشعرونه يې ولوستل وروسته بيا دلويې جرگې رئيس غونډې ته دهيواددلومړي جمهور رئيس په توگه دښاغلي محمد داؤد دټاکلوپه باب چې دده کانديديدل دلويې ملي جرگې له خواپرله پسې وغوښتل شول ورايو دخرگندواو بلنه ورکړه . دپرله پسې هلهلو، خوښۍ اوچکچکو اودژوندي دې وي محمدداؤد تل دې دې جمهوريت شعارونه په منځ کې دلويې جرگې غړيودرايوپه اتفاق دشپږکلونو له پاره دانقلاب مشر دهيواد دلومړي جمهور رئيس په توگه وټاکه .

هغه وخت چې دلويې جرگې رئيس درايو په اتفاق دافغانستان دجمهوري دولت دلومړي جمهور رئيس په توگه دښاغلي محمد داؤد ټاکل کيدل اعلان کړل يوځل بيادلويې جرگې غړي اوحاضرين ودريدل اوپدغه برخه کې يې خپل زيات احساسات اوخوښي خرگنده اودهيواد دلومړي جمهور رئيس په توگه يې دده دټاکل کيدو هرکلي وکړ .

دغه راز دملت استازواو دلويې جرگې غړيو دلوی خدای (ج)څخه دخلکوپه لاربښوونه اودهيوادپه زيات پر مختگ کې دښاغلي محمدداؤد دزياتو بريالیتوبو غوښتنه وکړه .

دلويې جرگې رئيس ښاغلي عزيزالله واصفي هم دجمهوري دولت دلويې جرگې په نمايندگی دستري ملي وظيفي اود جمهوري انقلاب دهدفونوپه پرمخ بيولوکی دملي مشر ښاغلي محمد داؤد دروغتياوبرى هيله وکړه اوله دې امله چې دملت داستازيو دغوښتنې له مخې يې بياهم دافغانستان دنجيب ملت داحساساتو اونجيب هيواد مشر توب په غاړه اخيستې دې مننه اوخوښي خرگنده کړه .

دافغانستان منتخب جمهور رئيس ښاغلي محمد داؤد په پای کښې وويل : تاسې دافغانستان نجيب ملت داحساساتو اوقدرداني څخه خوښي اومننه کوم اووعده درکوم هغه څه چې زماپه قدرت اوتوان کې وي خپل هيواد اوهيوادوالوته يې دخدمت په لار کې ونه سپموم .

وروسته بيادافغانستان منتخب جمهوررئيس ښاغلي محمد داؤد له خوښي او خوشحالي څخه دډکو احساساتو په مينځ کې دلويې جرگې له تالارڅخه ووت اوترغرمې مخکې غونډه د(۱۲) بجوپه شاوخواکي پای ته ووسيده.

دلويې جرگې دغونډې دجريان داوريدو او کتلو لپاره چې په هغې کښې دجمهوري دولت لومړي جمهور رئيس وټاکل شو د ښاغلي منتخب جمهور رئيس مانديني محترمې ميرمن زينب داؤد دکابينې دغړونوغړيو ميرمنې، ځينې عاليرتبه مامورين اوپه کابل کې اوسيدونکو کورديپلوماتيك رئيسان ورغلي ؤ .

همدارنگه يوزيات شمير کورنيو اوبهرنيو خبريا لانو د غونډې جر يان چې له داديو افغانستان څخه په مستقيمه توگه خپور شوو واوريد اوويې کاته .

هغه وخت چې دانقلاب لاربښود دافغانستان

دجمهوری دولت دلومړۍ لویې جرگې دغړیو دپرله پسې هغې غوښتنې له مخې چې دافغانستان ملت مشرتوب دی بیاهم په‌غاړه واخلې دملت استازوته ځواب ورکړاوه . زیات شمیروطن پرستو اوجمهوری غوښتونکو خلکو دلویې جرگې دتالار څنگ ته ټولنه کړې وه اوپه‌چکچکواوژوندی‌دی‌وی محمدداؤد تل دی وی جمهوریت په شعارونو سره خپل‌احساسات څرگندول اودملی مشردانتخاب اوڅرگندونوپه نسبت یې زیاته خوښې او خوشحالي څرگندوله .

دافغانستان اومړی منتخب جمهور رئیس هغه وخت چې دلویې جرگې له تالارڅخه‌ووت دزرگونو خلکو په منځ کې چې دلویې جرگې دودانۍ ترشاییي ټولنه‌کړې وه ، په چکچکو شعارونو اواحساساتو په څرگندواو سره بدرگه شو .

دهیواد ولایاتو چې زمونږوطن پرستو او جمهور یت غوښتونکو خلکو د افغانستان دلومړی جمهوررئیس په‌توگه دښاغلی‌محمدداؤد انتخاب چې دلویې جرگې له خواغوره کړی شوی په خوشحالۍ سره هرکلی کړیدی .

په زرگونوخلکوکه ښځې وی اوکه نران، ځوا نان وُ او که زاړه د غرمې دمځه دلویې جرگې جریان چې دراډیودڅپوله لاری خپور شود لوډسپیکرونو اوراډیوگانوپه څنگ کې په ډیره مینه سره واوریده .

وروسته له هغه‌چې اویې جرگې دجمهور رئیس په توگه درایوپه اتفاق زمونږ دملي لاربښود ښاغلی محمد داؤد ټاکل اعلام کړل، خلکوپه چکچکو اودژوندی دی وی محمد داؤد تل دی وی جمهوریت او لوړ دی وی دافغانستان بیرغ په شعارونو سره دهغې هرکلی وکړاود هیواد دغه رښتین بچې دټاکلو مبارکی یې یوبل ته په خوښۍ سره ورکولی.

دسلواغې ۲٦ر۵۵

## دافغا نستان دجمهوری دو لت دلومړی لویې جر گې اعلا میه

زمونږ دملت نمایندگانو چه‌په لومړنۍ لویه جرگه‌کی ددولت د ریاست دمقام په فرمان د۱۳۵۵ هجری لمریزکال دسلواغې دلسمې نیټې څخه تر۲٦ نیټې پوری دافغانستان په مرکز دکابل ښارکی دافغانستان دجمهوری دولت داساسی قانون پرمسوده باندی د غور اودهغې په برخه کې دتصمیم نیولو د پاره راغونډ شوی وو ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداؤد هغه افتتاحیه ویناواوریدله چه په هغه‌کی د۱۳۵۲ کال دچنگاښ د ۲٦ نیټې دانقلاب علتونه اودجمهوریت ددروکالو اواوومیاشتو دوری عمده اجراآت اوپه کورنیو چاروپوری مربوط مسایل او دافغانستان اقتصادی سیاست اوخارجی سیاست او د هیواد دراتلونکی‌اقتصادی اواجتماعی‌پرمختیایی پلان داساسی کرښو راتلونکی بڼه پکښې څرگنده شوی وه .

څرنگه چه دغه پالیسی په بشپړه توگه دافغانستان دملت له هیلوسره سمه ده نوهغه

تاييدوواوملاتړ يي کوو .

دپښتونستان دموضوع پهارتباط لهپاکستان سره د افغانستان دمناسباتو په هکله داسې څرگندونه کووچه : افغانستان ديوه سوله خوښونکي هيواد په توگه تل زيار ايستلی دی چه له پاکستان سره خپل سياسی اختلاف په شرافتمندانه ډول حل کړی . څرنگه چه دداړو خواو مشرانو ترمينځ دصميميت او تفاهم په فضاکښې دافکاروتبادله او مخامخ کتني شويدی او ديوازينی سياسی اختلاف دلری کيدودهيلی ښکارندوی گڼل کيږی مونږ دهغوتودو هرکلی کوو .

مونږ دټولو ذيعلاقه خواو ترمينځ ددغسی کتنواوافکارو دتبادلی ادامه گټوره او اغيزه ناکه گڼوددوستی اوشرافتمندانهحل تهدرسيدو تروخته مونږ دافغانستان دملت نمايندگان دحکومت دتگ لاری په تائيد يوځل بياپهدی برخهکی پهمداوم اوسوله ايزډول دپښتنو او بلوڅو ورونو دحقه حقوقو داحقاق ملاتړکړی اوکوويي هيله لروچه دغه سياسی اختلا ف ددوی دخلکو اومشرانو دغوښتنوسره سم حل شی .

## ښاغلی جمهور رئيس دلوړی مراسم په ځای کړل

دانقلاب مشرښاغلی محمد داؤد دافغانستان دجمهوری دولت دلومړی جمهور رئيس په توگه دجمهوری دولت دلومړۍ لويی جرگی دغړيو په وړاندی دلوړی مراسم په ځای کړل .

دجمهوريت مؤسس چی دملت داستازو له خوا دراپو په اتفاق دافغانستان د لومړی جمهور رئيس په توگه ټاکل شوی ؤ دلوړی دمراسمو له سرته رسيدو وروسته دلويی جرگی ړنگيدل اعلام کړل .

کله چی دهيواد دنوميالی بچی ښاغلی محمدداؤد دسپرلی موټر دچنگابنی د (۲۶) نيټي په واټ اوانصاری واټکی تيريده دکابل دښاراوشاوخواپه زرگونو تنو چی دواټونوپه غاړوکی ددغی تاريخی ورځی دنمانځلو دپاره راټول شوی وو اوپه زرگونو عکسونه او شعارونه ورسره ووژوندی دیوی دافغانستان گران بچی ښاغلی محمد داؤد تل دی وی جمهوريت په شعارونو چکچکو او دهغوی په موټرباندی دگلانوپه شيندلو سره دجمهوريت دموسس ډير تودهرکلی چی زمونږ دوطنپالو اوجمهوری غوښتونکو خلکو ميزه ده وشو.

ښاغلی محمدداؤد ترغرمی دمخه دلسنيمو بجوپه شاوخواکی دلوړی دمراسمو دسرته رسولو دپاره دلويی جرگی تالارته تشريف راوړاوکلهچی دتالار په دروازهگی وليدل شو دملی ستری غونډی غړی ودريدل اولهچکچکو اوله خوښی او خوشحالی څخه ډکواحساساتو دڅرگنديدو سره مخامخ شو .

وروسته له هغه چی زمونږملی دمشردلويی جرگی تالارته تشريف راوړ دلويی جرگی رئيس ښاغلی عزيزالله واصفی غونډه دلوی خدای په نامه پرانستله دلويی جرگی رئيس دلويی جرگی دغونډوهغو تصويبونو په باره کی چیدنمايندگانولهخوادهغوی پهشپړويشتو

غونډوکې شوې اوپه هغوکې دیوې سریـزې په زیاتوالي فهرست اویوسلو شپږ دیـرش مادوکې دجمهوري دولت داساسي قـانـون دمسودې تصویب اودغه راز ددولت داساسي کرښو اوپالیسي په باب یوه اعــلامیه او د اساسي قانون دنافذیدو دمصوبې په نامه یوه فقره چې دافغانستان لومړی جمهو ر رئیس دغه قانون لاسلیك کوي اودهغه نافـذیـدل اعلاموي شامل دي رڼاواچــوله اوسریزه او اعلامیه یې ولوستله اوپس له هغې یې ښاغلي محمد داؤد ته بلنه ورکړه چې دجمهوري‌دولت دلومړي لویي جرګې دغړیوپه وړاندې دلوړې مراسم په ځای‌کړل .

وروسته بیاښاغلي محمد داؤد دلویې جرګې دریاست دمېزتر شا پداسې حال‌کې چې یوه اړخ ته‌یې دلویې جرګې رئیس ښاغلي‌واصفي اوبل اړخ ته‌یې عدلیه وزیر ډاکترعبدالمجید ولاړوؤ کښیناست اودکلام الله مجیدپه وړاندې دافغانستان دجمهوري دولت دلومـړي جمهور رئیس په توګه دلوړې مراسم داسې په ځای کړل .

«دافغانستان دملت تاسو نمایند ګانو پــه وړاندې زه محمد داؤد دلوی خدای په نامــه سوګندیادوم چې داسلام د سپیڅلي دیــن داساساتو ملاتړ وکړم .

دافغانستان اساسي قانون اونور قوانینوته په درنه سترګه وګورم اودهغوی پیروي‌وکړم. دملي خپلواکۍ اودساحې دتمامیت ساتنــه وکړم اوخپل ټول طاقت دخلکو له حقوقواو

ګټواود ۱۳۵۲ کال دچنګابښ د شپږویشتــم انقلاب هدفونواود افغانستان دجمهوریت دفاع ته وقف کړم» .

وروسته له هغه چې ښاغلي محمد داؤد دافغانستان دلومړي جمهور رئیس په توګـه دلوړې مراسم په ځای کړل بیا هم دملـت دنمایندګانو حاضرینو دتودواوزوړ خخه ډکو احساساتوپه څرګندیدو اواوږدو چکچکو سره بدرګه شو .

## دافغا نستان اومړي جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد دیوی وینا په‌ترڅ کې‌وویل:

دافغانستان دنجیب ملت ښاغلو استازو !

زمااودټولو هغو کسانو دپاره چې له خپل وطن سره مینه‌اوعلاقه‌لري دخوښۍ‌اوامیدواري ځای دی چې دملت تاسې استازي دافغانستان دجمهوري دولت په لومړۍ لویه جرګه کې دافغانستان د اساسي قانـون په مسودې او پخپلو مهمو ملـي مسئلو بـانـدې دغـور د پاره خاصې علاقې او دلچسپۍ سره په یوه آزاده اوپه زړه پورې فضاکې اودورور ګلوۍ اوبرابرۍ په احساس برخه واخسته او نـن موخپل وروستی تصمیم دافغانستان خلکو ته ابلاغ کړ .

داچې دملت تاسو نمایندګانو نن زه دخپل وطن دیوه خدمتګارپه توګه‌دافغانستان دلومړي جمهور رئیس په توګه وټاکلم زما د پـاره ویاړنه ده اودزړه له کومې ستاسې ددغه ښه باورله امله خوښي څرګندوم .

ګرانو خویندو اوورونړواووطنوالو !

په همدی ساعت‌که ددغه ستر مسئولیت درونډوالی چه زه یی احساسوم امکان شته چی ستاسی هیڅ یووګړی نه یوازی داچه هغه درك نه‌کړی بلکه دهغه تصورهم ونشی کړی .

ددغه ستر اودرانده مسئولیت د سرته رسولو دپاره زمااتکاء به‌په ستر اوتواناخدای دافغانستان دټول نجیب ملت په مرسته او ملاترزمادګرانو ملګرو په صادقانه او دزړه له کومی اودافغانستان ددولت دټولو کار کوونکو اوموظفینو په همکاری په هره سویه اوپه هر مقام په هرځای کی‌چی دی اوپه پای کـی زمونږ دملی انقلاب دطاقتونو اوزمونږ دټولو صدیقواووطن پالوزامنوپه فداکاری سربښندنه اوله ځان څخه تیریدو باندی وی .

زمادپاره به حقیقی خوښی هوویاړبه دهغه وخت وی چه خپل وطن اوخلکوته په صداقت سره دخدمت ددوری دشپږوکلونو له تیریدو وروسته بیاهم پدغه شان ټولنه کـی اود افغانستان دملت داستازوپه وړاندی په‌بریالی اوشرافت مندانه توګه دغه امانت چی ماتـه راسپارل شوی خپل خلف ته وسپارم .

پدغه وخت‌کی خپله وجدانی وظیفه بولم چی دانقلاب له ټولوملګروڅخه چه د۱۳۵۲کال دچنګابښ په شپږویشتمه شپه یی له ماسره برخه اخیستی وه دافغانستان له زړه ور او فداکار اردو دمرکزی کمیتی له غړیـو او د حکومت له غړیواوپه پای کی له ټولو هغـو مامورینو څخه چی په صداقت اوایمان داری سره یی پدغو دریوکلونو اواوومیاشتو کی خپلی وظیفی سرته رسولی دی تشکر وکړم.

اودهغو کسانو روح ته درود استوم جی‌پدغه تاریخی شپه یی وطن ته دخدمت په لاره‌کی خپل سرونه ښندلی دی .دغونډی په پای کی دجمهوری ملی سرودترانه خپره شـوه او د جمهوریت مؤسس دلویی جرګـی دغړیو او حاضرینو دزیاتو احساساتو ترمینځ دلویـی جرګی دغونډو له تالارڅخه ووت .

په دی مراسمو کی ښاغلی جمهور رئیس ماندینی محترمی میرمن زینب داؤد ، ښاغلی محمدنعیم له خپلی محترمی ماندینی ســره دکابینی دغړینو غړیوماندینو اوپه کابل کـی داوسیدونکو کوردیپلوماتیکو رئیسانو هم‌برخه اخیستی وه .

دغه راز په دی ټولنه کی د‌برخی‌اخیستو دپاره یوشمیر ستر عسکری او ملکی مامورین هم رابلل شوی ؤ .

دکابل ښاراودهغه دشاوخواپه زرګونوخلکو چی دبزګرانو، منورینو، کارګرانو، ځوانانوپه ګډون ښځی وی اوکه نارینه وروسته له هغه چی دجمهوریت مؤسس ښاغلی محمـد داؤد دافغانستان دلومړی جمهور رئیس په توګـه دلویی جرګی په تالارکی دلوړی مراسم پـه ځای‌کړل په انصاری واټ‌کی ستر مارش پیل کړاوپداسی حال‌کی چی دانقلاب دمشرښاغلی محمدداؤد عکسونه اوجمهوری شعارونه ورسره ووپه ډیری زیاتی خوښی اوخوشحالی سره

په عمومي ډول ټولو ښارونو کې جشنونه ونیول شول. نوموړې بهیر اود افغانستان تاریخي او زیات شمیر ... د ولسمشر لپاره ... نامتو ... دغه ورځ یې ونمانځله .

ددغه ستر ملي مارش په مخکې دجمهوري گارددتشریفاتو قطعي په انصاري واټ کښې پداسې حال کې چې دافغانستان دجمهوریت دوسله وال پوځ علم مبارك ورسره و له موزیك سره یوځای دمارش ملگرتیاکوله پدغه ستره ټولنه کې زیات شمیرځوانانو نجونۍ وی که هلکان ملی جامي اغوستي وی په ملـي اتڼونواوملي موسیقي سره یې ددغې بختوري ورځې له امله خپله خوښي اوخوشحالي څرگندوله همدارنگه خلکو دهیواد دولایاتوپه مرکزونو ولسوالیواوسیموکې ټولنې کړي وی اوپه خاصه مینه یې دخپل سترمشردلوړي دمراسمو جریان چې دافغانستان دملت له خوادهیواد دلومړي جمهور رئیس په توگه ټاکـل شوی دی او دلویې جرگې په وړاندی په ځای شول واوریدل.

پدغوټولنوکښي زمونږ دملي مشرپه وړاندی دملت داستازواودلویی جرگـې دغړیو دزوړ څخه دکواحساساتو سره یوځای چه دلویې جرگې له تالارڅخه مستقیما په ټول هیوادکې دراډیو افغانستان له خوا خپریدل په اوږدو چکچکو اوملي اتڼونو اومحلی سـازونـو او سندروسره ددغې پرتمنې ورځې هرکلي وکړ.

زمونږ په زرگونو وطنوالو ښځې وی که نارینه زاړه ووکه ځوانان وروسته لدهغه چې یې دراډیوافغانستان څخه یې دلومړي جمهوررئیس په توگه دملي مشردټاکلوکیدو زیري واوريد دملت داستازو اودجمهوری دولت د لو یی جرگی دغړیو له زیاتی خوښی اوخوشحالـی سره یوځای چې جریان یې دراډیوله خـوا خپریده په چکچکو شعارونو اوملي اتڼ سره ددغه کارهرکلی وکړ .

دهیواد دولایاتو په مـرکـزونو ، لو یـو ولسوالیو اوولسوالیو اوپه نوروگوټونو کـی پدغه مناسبت ستری ټولنی وشوی پداسی حال کی چې والیانو دجمهوري وسله وال پوځ قوماندانانو، مامورینو، دپوهنی زده کوونکو او په زرگونوتنوخلکوپه دغوټولنوکی برخه درلوده دښارونوپه واټونو اودخپلو ولسوالیو پـه مرکزونو اوسیموکی مارش وکړ اوبوځل بیایی دلومړي جمهوررئیس په توگه دهیواد دانقلاب دمشراوصدیق زوی ښاغلی محمد داؤددټاکل کیدوپه مناسبت خپل وطن پال او جمهوري غوښتونکي احساسات څرگند کړل .

په دغوټولنوکی په هرگوټ کی جمهوري انقلاب دصفت په برخه کی په سلگونوشعارونه لیدل کیدل . یوشمیر منورینو ، ځوانانـو بزگرانو اوکارگرانو دوینا وپه ترڅ کی دلويي جرگی له خوادهیواد دملی وثیقی دتصویـب اودغه راز دافغانستان دجمهور رئیس په توگه زمونږ دملی مشر دټاکل کیدوپه مناسبت خپل پاك اوبی الایشه احساسات وښودل اوله لوی خدای څخه یی دافغانستان دجمهوری رئیس ښاغلی محمد داؤد په مشری دگـران هیواد دترقی اولوړتیااودملت دهوسایني اوسوکالی هیله وکړه .

# دافغانستان دجمهوري دولت په لومړۍ لويه جرگه کې دملت استازي

دغه لاندې کسان دجمهوري دولت په لومړۍ لويه جرگه کې دګډون لپاره دخلکو داستازو په توگه ټاکل شویدي .

**دارزگان ولایت :**

دتیرین کوټ له ښار څخه ښاغلی
عیدمحمد دمحمدایوب زوی .

ددایکندی له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدقاسم دمحمدجان زوی .

دشهرستان له ولسوالی څخه ښاغلی
سهراب علی دقمبرعلی زوی .

د گیزاب له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی محمد حنیف دمحمد شریف زوی .

داجرستان له ولسوالی څخه ښاغلی
لاهور داشرف خان زوی .

دچوری له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی نظرمحمد دپورمحمد زوی .

دکجران له ولسوالی څخه ښاغلی
غلام حیدردمحمدکریم زوی .

ددهراوودله ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی عبدالقیوم دحاجی عبدالرحمن زوی .

دخاص ارزگان له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی عبدالرحمن دعبدالله زوی

**دبامیانو ولایت :**

دبامیانو مرکز څخه ښاغلی عبدالمالک
دعبدالصمد زوی

دپنجاب له ولسوالی څخه ښاغلی
محمد یوسف داحمدعلی زوی .

دورث له ولسوالی څخه ښاغلی
شیخ محسن دعبدالحسین زوی .

دیکاولنگ له ولسوالی څخه ښاغلی
سیدحبیب الله دسیدمحمدمحسن زوی .

دسیغان اوکهمردله ولسوالی څخه
ښاغلی سیدشاه دسیدم شاه زوی .

**دبادغیس ولایت :**

دکلای نو له مرکزڅخه ښاغلی
محمدابوبکر دزال بیگ زوی .

دقادس له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدظاهر دجمعه خان زوی .

دجوند له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدالف دحاجی محمدرحیم زوی .

دغورماچ له ولسوالی څخه ښاغلی
بازمحمد دبلال زوی .

دمرغاب له ولسوالی څخه ښاغلی
غلام جیلانی دحاجی محمدامین زوی .

**دبدخشان ولایت :**

دفیض آبادله مرکزڅخه ښاغلی
حاجی عبدالحفیظ دعبدالعزیز زوی

ددرواز له ولسوالی څخه ښاغلی
سیدمحمد اکبردسیدمحمود زوی .

د جرم له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالواسع دمولوی خاکسار زوی .

داشکاشم له ولسوالی څخه ښاغلی
میرزامحمد دمحمد نسیم زوی .

دکشم له ولسوالی څخه ښاغلی
برکات احمدتاج محمد زوی .
دواخان له ولسوالی څخه ښاغلی
خواجم بردی دحاجی آدینه بیگ زوی .

**دبغلان ولایت :**

دبغلان له ښارڅخه ښاغلی محمدسالم
دعبدالدیان زوی .

دپلخمری له ولسوالی څخه ښاغلی
سلطان احمد رؤفی دعبدالرؤف زوی .
ددوشی له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی خیرالدین دغلام رسول زوی .
داندراب له ولسوالی څخه ښاغلی
عیدی محمدخورسند دآدینه زوی .
دخوست اوفرنگ له ولسوالی څخه
ښاغلی عبدالغفار بای دمحمدرستم زوی
دنهرین له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی محمدشریف دمحمداکرم زوی .

**دبلخ ولایت :**

دمزارشریف له ښارڅخه ښاغلی
غلام محمد اوزبې دحاجی امرالله زوی .
دمزارشریف له ښار څخه ښاغلی
حاجی فیض الله دحبیب الله زوی .
ددولت آباد له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی فیض الله دچاری زوی .
دچمتال له ولسوالی څخه ښاغلی
امیرمحمد دمحمودخان زوی .
دچاربولك له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالرحیم دعبدالکریم زوی .
دشولگری له ولسوالی څخه ښاغلی
نورمحمد دجمعه خان زوی .
دبلخ له ولسوالی څخه ښاغلی
جلادخان دنیازمحمد زوی .
دنهرشاهی له ولسوالی څخه ښاغلی
سیدداود دسیداقبال زوی
دشورتیپی له ولسوالی څخه ښاغلی
مولوی رحمن بردی دحاجی محمدعمرزوی

**دپروان ولایت :**

دپروان له مرکزڅخه ښاغلی میرغوث الدین
دمیرنظام الدین زوی .
دغوربند له ولسوالی څخه ښاغلی
سیدمحمداصغر دمیرعلی گوهر زوی .
دپنجشیرله ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالقیوم عطائی دعطامحمدخان زوی .
د جبل السراج له ولسوالی څخه
ښاغلی یارمحمد دمیرمحمدخان زوی .
دبگرام له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی عبدالرحمن دمحمدنادر زوی .
دسرخ پارسا له ولسوالی څخه ښاغلی
فرامورز دمحمد اکبرزوی .
دکاپیسا دلویی ولسوالی له مرکز څخه
ښاغلی محمدآصف دمحمد صدیق زوی .
دتگاب له ولسوالی څخه ښاغلی
سعدالله دمحمدقاسم زوی .
دکوهستان له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالواحد دعبدالقادر زوی
د نجراب له ولسوالی څخه ښاغلی
مولوی ابوالقاسم دعبدالمجید زوی

**دپکتیا ولایت :**

دگردیز له ښارڅخه ښاغلی حاجی‌فیض‌محمد دجلادخان زوی .

دگردیز له ښارڅخه ښاغلی‌گل احمد دحاجی نیك محمد زوی .

دسیدکرم له ولسوالی څخه ښاغلی عبدالغنی دپیردوست زوی .

دزرمت له ولسوالی څخه ښاغلی محمدانور دمحمد اکبرزوی .

دځمکنیو له ولسوالی څخه ښاغلی حاجی سلطان محمد دحاجی گل زوی .

دځاځیو له ولسوالی څخه ښاغلی محمدعمر دگلاجان زوی .

دجانی خیلوله ولسوالی څخه ښاغلی ملاخواجه دشیرمحمدخان زوی .

دوزی ځدرانو له ولسوالی څخه‌ښاغلی میراجان دغلام محمدزوی .

دخوست دلویی ولسوالی له مرکزڅخه ښاغلی وزیرشمین دپادشاه‌گل زوی

دمیدان ځاځیوله ولسوالی څخه‌ښاغلی برکت الله دحاجی رحیم الله زوی

دموسی خیلو له ولسوالی څخه ښاغلی موسی جان دصاحب زوی .

دتڼیو خوست له ولسوالی څخه ښاغلی میرزاشازار دسلیمی زوی .

دارگون دلویی ولسوالی له مرکزڅخه ښاغلی شیرمحمد دعیسی خان زوی .

دسپیری ځدران له ولسوالی څخه ښاغلی قطب خان دمیروخان زوی .

دگوملی له ولسوالی څخه ښاغلی نعمت خان دشیرخان زوی .

**دتخار ولایت :**

دتالقانوله مرکزڅخه ښاغلی‌عبدالمبین دعبدالکریم زوی .

درستاق له ولسوالی څخه ښاغلی کریم الله دحبیب الله زوی .

دینگی قلعه له ولسوالی څخه ښاغلی نائب جمعه خان دمحمدشفیع زوی .

داشکمش له ولسوالی څخه ښاغلی محمد سرور دمحمدحسن زوی

دفرخار له ولسوالی څخه ښاغلی مولوی عبدالواحد دعاشور محمدزوی

دچاه آب له ولسوالی څخه ښاغلی میرغلام حیدر دمیرحبیب الله زوی .

دخواجه غارله ولسوالی څخه ښاغلی عبدالرشید دحاجی خدایقل زوی .

**دجوزجان ولایت :**

دشبرغان له ښار څخه ښاغلی ایکم بردی دمحمد قل زوی .

دسنگچارك له ولسوالی څخه ښاغلی وصال الدین دمحمد اقبال زوی .

دسرپل له ولسوالی څخه ښاغلی سیدمحمد دغلام رسول زوی .

دآقچی له ولسوالی څخه ښاغلی محبت دجمعه گلدی زوی .

دقرقین له ولسوالی څخه ښاغلی حاجی خضر محمد دمخم زوی .

دمنگجك له ولسوالی څخه ښاغلی

رحمن نظردحاجی ملانوبت زوی .

**دزابل ولایت :**

دکلات له ښارڅخه ښاغلی عبدالقادر دغلام حسن زوی

دارغنداوله ولسوالی څخه ښاغلی عبدالجلیل دنیک محمد زوی

د شینکی له ولسوالی څخه ښاغلی حاجی کمال دعبدالغنی زوی .

دجلدك له ولسوالی څخه ښاغلی حاجی دلبردحاجی عبدالواحد زوی .

ددایه چوپان له ولسوالی څخه ښاغلی منگل خان دحاجی ارسلاح زوی .

دکوچیانو استازی ښاغلی محمدایوب دصاحب جان خان زوی .

دشاجوی له ولسوالی څخه ښاغلی محمدکریم دحاجی محمدخان زوی .

**دسمنگانو ولایت :**

دایبکو له مرکزڅخه ښاغلی غلام صدیق دحاجی سورگل زوی .

دره صوف له ولسوالی څخه‌ښاغلی جهانگیر دجهانمیر زوی .

دخلم له ولسوالی څخه محترمه نجیبه دمحمد سهیل اوز .

داوبی دوآب له ولسوالی څخه‌ښاغلی حاجی نورمحمد درحمت بای زوی

**دغزنی ولایت :**

دغزنی له ښارڅخه ښاغلی حاجی حبیب الله دشیراحمد زوی

دغزنی له ښارڅخه ښاغلی عبدالله شمیمی دجمعه گل زوی .

داندړوله ولسوالی څخه ښاغلی سیدجعفر دسید جیلانی زوی .

دناهورله ولسوالی څخه ښاغلی غلام علی عبدی دجمعه خان زوی .

د جغتو له ولسوالی څخه ښاغلی شجاع محمد دحاجی سلطان محمدزوی .

دقره باغ له ولسوالی څخه ښاغلی اخترمحمد دشیرجان زوی .

دجاغوری له ولسوالی څخه ښاغلی غلام علی دمحب علی زوی .

دکټوازدلویی ولسوالی له مرکز څخه ښاغلی نیازمحمد دگل محمدزوی .

دوازی خواله ولسوالی څخه ښاغلی محمدخان دختك زوی .

دشرنی له ولسوالی څخه ښاغلی محمد رفیق دحاجی نظرمحمد زوی

دکټواز دمرکز دکوچیانو استازی ښاغلی حاجی محمدسرور دمیرگل زوی .

دمرکز دکوچیانو استازی ښاغلی بخت پور دشیرعلی زوی .

دمقرله ولسوالی څخه فضل احمد دحاجی حبیب الله زوی .

دناوی له ولسوالی څخه ښاغلی عبدالسلام دحبیب الله زوی .

دمالستان له ولسوالی څخه ښاغلی محمدجعفر دمحمد باقرزوی .

**دغور ولایت :**

دچغچران له مرکزڅخه ښاغلی خلیم

نوراحمد دخلیفه علی شاه زوی .

دلعل اوسرجنګل له ولسوالی ښځه ښاغلی محمدامین‌بیګ دغلام حیدربیګ زوی .

د تولک له ولسوالی ښځه ښاغلی حاجی عبدالستار ددوست محمد زوی .

دشهرک له ولسوالی ښځه ښاغلی حاجی سیدانور دسیدتاج محمدزوی .

د تیوری له ولسوالی ښځه ښاغلی محمدحسین دحاجی محمد ابراهیم زوی

دپسابندله ولسوالی ښځه ښاغلی امرالدین دشادی خان زوی

**دفاریاب ولایت :**

دمیمنی له مرکز ښځه ښاغلی محمد عمر دمحمدعلی زوی .

داندخوی له ولسوالی ښځه ښاغلی عبدالرسول دنادرنیاز زوی .

د پښتون کوټ له ولسوالی ښځه ښاغلی غلام سخی لارمل .

دبلچراغ له ولسوالی ښځه ښاغلی کشمیردحاجی عبدالله زوی .

دشیرین تګاب له ولسوالی ښځه ښاغلی محمدعظیم دآدم خان زوی .

دقیصار له ولسوالی ښځه ښاغلی عبدالقادر دسیدمراد زوی .

د دولت آباد له ولسوالی ښځه ښاغلی حاجی جمعه ایشان دقربان سعیدزوی .

ددرزآب له ولسوالی ښځه ښاغلی نصرالله دبهرام زوی .

**دفراه ولایت :**

دفراه له ښارښځه ښاغلی عبدالرزاق دعبدالقدوس زوی

دبکواه له ولسوالی ښځه ښاغلی عبدالرشید دتاج محمد زوی

دشینډنډ له ولسوالی ښځه ښاغلی محمداسمعیل دروح الله زوی .

داناردری له ولسوالی ښځه ښاغلی میرمحمدایوب دمیرمحمد مرتضی زوی .

دپرچمن له ولسوالی ښځه ښاغلی حاجی عبدالغفار دفیض محمد زوی .

دګلستان له ولسوالی ښځه ښاغلی صبغة الله دعبدالله زوی .

دګلای کاه له ولسوالی ښځه ښاغلی سیدمقیم الدین دسیدشرف الدین زوی .

دلاش جوین له ولسوالی ښځه‌ښاغلی غلام محمد دجمعه خان زوی .

دبالابلوک له ولسوالی ښځه ښاغلی محمد عمر دمحمد صدیق زوی .

**دکابل ولایت :**

دکابل له ښارښځه محترمه کبرا دبسم الله خان لور .

دکابل له ښارښځه پوهاند دوکتور عبدالفتاح همراه دګل علیخان زوی .

دکابل له‌ښارښځه‌ښاغلی محمدشریف دحاجی غلام رضازوی .

دمیربچه‌کوټ له ولسوالی ښځه پوهنوال حبیب الرحمن هاله دعبدالمحمد زوی.

دچهاردهی له ولسوالی ښځه ښاغلی غلام نبی باهر دغلام قادرزوی .

دیغمان له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدعلی فیض درمضان زوی .
دبگرامیو له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدانور دحاجی سیداحمد زوی .
دسروبی له ولسوالی څخه ښاغلی
عصمت الله دمحمدشریف زوی .
دده سبزله ولسوالی څخه پوهاند
میرشرف‌الدین انصاری دمیرفیض الدین زوی.
دشکردری له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالله نیك دامرالله زوی .
دقره باغ له ولسوالی څخه ښاغلی
محمد داود ددل محمد زوی .

**دکندهار ولایت :**

دکندهار له ښار څخه ښاغلی
محمد داود دمحمد عثمان زوی .
دکندهار له ښار څخه ښاغلی خیرمحمد
دمحمداعظم زوی .
دپنجوایی ولسوالی څخه ښاغلی عبدالله
دحاجی خیرمحمد زوی .
دسپین بولدك له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی عبدالکریم دحاجی داروخان زوی .
دارغستان له ولسوالی څخه ښاغلی
امان الله ددلبرخان زوی .
دخاك ریزله‌ولسوالی څخه ښاغلی‌محمدعثمان
دنیازمحمد زوی .
د پنجوائی له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالحلیم دشیرمحمد زوی .
دمیوند له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالوهاب دعبدالله زوی .

دشاولیکوټ له ولسوالی څخه‌ښاغلی
لعل محمدددوست محمد زوی .
دشورابك له ولسوالی څخه ښاغلی
نظرمحمد دسیدمحمد زوی .
دمعروف له ولسوالی څخه ښاغلی
غلام علی دعبدالسلام زوی .
دشینکی له ولسوالی څخه ښاغلی
غلام رسول دغلام محمد زوی .
دارغنداوله ولسوالی څخه ښاغلی
حیات الله دمحمد رفیق زوی .

**دکندز ولایت :**

دکندزله ښارڅخه محترمه عزیزه
دمحمدامان لور .
دکندزله ښارڅخه ښاغلی محمدانور
رسولی دعبدالرسول زوی .
دامام صاحب له ولسوالی څخه
ښاغلی عبدالحکیم دمحکم تاش زوی .
دخان آباده ولسوالی څخه ښاغلی
نعمت الله دخان ملازوی .
ددشت ارچی له ولسوالی څخه
ښاغلی مولوی قلندر دمحمد حسین زوی .
دکلای زال له ولسوالی څخه ښاغلی
صفرمحمد دنظرمحمد زوی .
دچاردری له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدگلاب درحمت گل زوی .

**دلغمان ولایت :**

دمهترلام له ښارڅخه ډاکتر جانان
دتاج محمد زوی .
دنورستان له ولسوالی څخه ښاغلی

عبدالقدیر دمحمد دین زوی .

دعلیشمینګ له ولسوالی څخه ښا غلی
حاجی عبدالرزاق دحاجی محمدافضل زوی .

دقرغیوله ولسوالی څخه ښاغلی
سیدعباس دسیدغلام حسین زوی .

دعلینګار له ولسوالی څخه ښاغلی
ملک عبدالحی دملاګل تور زوی .

**دلوګر ولایت :**

دپل علم له ښارڅخه ښاغلی
محمدآصف دمحمد سرورزوی .

دمحمدآغی له ولسوالی څخه ښاغلی
حاجی کریمداد دعبدالرحمن زوی .

دبرکی برک له ولسوالی څخه‌ښاغلی
سیداحمد دسیدګلاب زوی .

دازرو له ولسوالی څخه ښا غلی
شاه محمود دمحمدعلی زوی .

دکوچیانو استازی ښاغلی ملک نور
احمد دمحمدجان زوی .

**دننګرهار ولایت :**

دکوچیانو استازی حاجی محمددین
دباغوان زوی .

دجلال آبادله ښارڅخه ښاغلی
جان محمد دجهانګیر زوی .

دجلال آبادله ښارڅخه ډاکټر
تاراسنګ دپیارام سنګ زوی .

دکونړ د لویی ولسوالی له مرکز څخه
ښاغلی محمدهاشم زماتی دمیرزمان خان زوی.

دخوګی له ولسوالی څخه ښاغلی
محمدطاهر وطنیار دعبدالحکیم خان زوی .

دکامدیش له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالجبار دحاجی عبدالله زوی .

دبرکونړ له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالله غمخوردحاجی عبدالودود زوی .

دسرکانو له ولسوالی څخه ښا غلی
نورستان خان دعبدالستار خان زوی .

دخاص کونړله ولسوالی څخه‌ښاغلی
محمدجان دمیرزامحمدحلیم زوی .

دپیچ له ولسوالی څخه ښاغلی حاجی
محمدصدیق دمحمد موسی زوی .

دشینوارو د لویی ولسوالی له مرکز
څخه ښاغلی‌سیدبهرام‌شاه دسیدمحمدشاه‌زوی.

دده بالا (عسکه مینه) ښاغلی مامور
سرداردخاځی زوی .

داچین له ولسوالی څخه ښاغلی
ګل محمد دمحمد عمرزوی .

دنازیانوله ولسوالی څخه ښاغلی
فولاددزرمت خان زوی .

دمهمنددری له ولسوالی څخه‌ښاغلی
حاجی سردارمحمد داصغر زوی .

دګوشتی له ولسوالی څخه ښاغلی
سیدکریم خان دسیداکبرخان زوی .

دکامی له ولسوالی څخه ښا غلی
ملک شیریندل دکندل زوی .

دکوزکونړله ولسوالی څخه ښاغلی
محمدامان دشیرمحمد زوی .

درودانوله ولسوالی څخه ښاغلی حاجی
مطیع الله دحاجی محمد سعیدزوی .

دسره رودله ولسوالی څخه ښاغلی

عبدالله دشبیراحمد زوی .

دخو گیانو له ولسوالی شخه بنساغلی جرنیل والاخان دمحمدجان زوی .

دحصارك له ولسوالی شخه بنساغلی عبدالوهاب داحمدخان زوی .

**دنیمروز ولایت :**

دزرنج له مرکزشخه بناغلی فیض محمد دمحمد علم زوی .

دچاربرجك له ولسوالی شخه بناغلی محمدجان داحمدجن زوی .

دچخانسور له ولسوالی شخه بناغلی محمدشریف دسخی ملاحسن زوی .

دکنگ له ولسوالی شخه بناغلی محمدحسین دجمعه خان زوی .

**دوردگو ولایت :**

له میدانښارشخه بناغلی حیات الله دعبدالقادر زوی .

دبهسود دلومړی برخی له ولسوالی شخه بناغلی محمداسحق دغلام حسین زوی .

دبهسود دمرکز له ولسوالی شخه بناغلی محمدناصردمحمد حسن زوی .

دسیدآباد له ولسوالی شخه بناغلی حاجی سلطان محمددفضل محمد زوی .

دچك وردك له ولسوالی شخه بناغلی محمدمحسن دمحمدطاهر زوی .

**دهلمند ولایت :**

دبست له ښار شخه بناغلی سلطان سکندر دعیسی خان زوی .

دنهرسراج له ولسوالی شخه بناغلی حاجی پیرمحمد دعبدالحبیب زوی .

دنوزاد له ولسوالی شخه بناغلی آقامحمد ددوست محمد زوی .

دموسی کلاله ولسوالی شخه بناغلی حاجی فیض الله ددوست محمدزوی .

دگرمسیر له ولسوالی بناغلی حاجی محمدنعیم دمحمدکریم زوی .

دناوعلی له ولسوالی شخه بناغلی حاجی خدایداد دخزان زوی .

دباغران له ولسوالی شخه بناغلی غلام سرور دعبدالله زوی .

دبارکزیو د ناوی له ولسوالی شخه بناغلی حاجی ظریف دحاجی نیك محمد زوی.

ددیشوله ولسوالی شخه بناغلی حاجی محمدزمان دحاجی محمدکریم زوی .

**دهرات ولایت :**

دهرات له ښار شخه محترمه نجیبه دعبدالرحیم لور .

دهرات له ښارشخه بناغلی علی‌آقا دعبدالحسین زوی .

دغوریانو له ولسوالی شخه بناغلی قاری محمدابوبکر دمحمد سرورزوی .

دانجیل له ولسوالی شخه بناغلی غلام رسول حقیقی دعبدالحمید زوی .

داوبی له ولسوالی شخه بناغلی اخترمحمد دمحمدابراهیم زوی .

دزنده جان له ولسوالی شخه‌بناغلی محمدامین شکیبادداحمدقلی زوی .

دادرسکن له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالباقی بهواز دمحمد سرورزوی .
دکرخ له ولسوالی څخه ښاغلی
امین الله دسیدمحمد زوی .
دپښتون زرغون له ولسوالی څخه
ښاغلی عبدالهادی فایق دنورمحمد زوی .
دګلران له ولسوالی څخه ښاغلی

عبدالکریم تمنادخداداد زوی .
دکشک له ولسوالی څخه ښاغلی
عبدالرحیم زنجور دملاعبدالرحمن زوی .
دګذری له ولسوالی څخه ښاغلی
صالح محمد دمحمد سرورزوی .
د کهسان له ولسوالی څخه ښاغلی حاجی
اعظم دسیداحمد زوی .

## دافغانستان دجمهوری دو لت دلويي جرګي انتصابي غړي.

ددولت درئیس اوصدراعظم ښاغلی محمدداود دفرمان په صادریدلو سره یوسلو دیرش تنه دافغانستان دجمهوری دولت دلومړنی لويي جرګي دانتصابي غړوپه توګه وټاکل شول .

دحکومت دپخوانی ابلاغیې په اساس دیو سلو دیرشو تنوله جملې څخه دجمهوری اردو پنځلس تنه صاحب منصبان اونور دبزګرو، کارګرو، منورينو اوځوانانو له جملې څخه دلويي جرګي دانتصابي غړوپه توګه ټاکل شويدي چه نومونه يي په لاندې ډول وړاندې کيږي .

دجمهوری اردو دمنصبدارانو نومونه چې دجمهوری دولت دلومړنی لويي جرګي دانتصابي غړيوپه توګه ټاکل شويدي .

ډګرجنرال عبدالعزيز دعظیم الدين زوی .

ډګرجنرال محمد موسی خان دحاجی خيرالدين خان زوی .

تورن جنرال عبدالله روکی د محمدسلیمان خان زوی .

تورن جنرال عبدالغنی دعبدالواحد زوی .

بریدجنرال محمد طاهردعبدالغفار خان‌زوی.

بریدجنرال بابه‌جان دعبدالواحد زوی .

بریدجنرال غلام دستګیردحاجی قلندرزوی .

بریدجنرال نورمحمد دخیرمحمد زوی .

ډګروال نیک محمد عزیزی دعزیزمحمدزوی.

ډګروال دوکتورسرورګل دریدی ګل زوی .

ډګروال محمدنعیم دمحمد اسلم زوی .

ډګروال غلام صدیق دطره باز زوی .

ډګرمن مرتضی قل دروزی قل زوی .

ډګرمن سیدسکندرشاه دسیدنذرالدين‌زوی .

جګړن عبدالستار دمحمدیوسف زوی .

دهغو کسانو نومونه چې دبزګرانو کارګرو منورينو اوځوانانو څخه دجمهوری دولت په لومړۍ لويه جرګه‌کی دانتصابي غړیوپه توګه ټاکل شویدي .

ښاغلی محمدیعقوب دمحمدامیرزوی بزګر .

ښاغلی زمری ددولت محمدزوی بزگر .
ښاغلی آدم خان دگل علم زوی بزگر.
ښاغلی عبدالغفوردمحمدجان زوی بزگر .
ښاغلی فتح الله دخان محمدزوی بزگر.
ښاغلی میراسلم دیارمحمد زوی بزگر .
ښاغلی عبدالصمد دعبدالصمدزوی بزگر .
ښاغلی ملاجان دمحمدجان زوی بزگر .
ښاغلی عبدالمجید دشیرمحمدزوی بزگر .
ښا غلی عبد الوا سع دمیرعلم زوی بزگر.
ښاغلی محمدظاهردخان شرین زوی بزگر.
ښاغلی علیجان دمیراجان زوی بزگر .
ښاغلی غلام رسول دمحمداعظم زوی بزگر.
ښاغلی حضرت محمدگل محمدزوی بزگر.
ښاغلی نواب دزندی زوی بزگر.
ښاغلی عبدالجبار دعبدالغفارزوی بزگر .
ښاغلی صوفی رمضان دمیرزاعلی زوی بزگر.
ښاغلی محمدعظیم دمحمدحسین زوی بزگر.
ښاغلی امیر الله دعزیزالله زوی بزگر.
ښاغلی رجب علی دیوسف علی زوی بزگر.
ښاغلی غلام رؤف دغلام رسول زوی بزگر.
ښاغلی عبدالباقی دجان دل زوی بزگر .
ښاغلی خواجه فیض محمدخواجه جلال زوی بزگر .
ښاغلی عبدالصمد دشاه محمدزوی کارگر .
ښاغلی عبدالوهاب دعبدالاحدزوی کارگر .
ښاغلی عبدالروف دعبدالغفورزوی کارگر .
ښاغلی عبدالله دمحمدصدیق زوی کارگر .
ښاغلی شیرمحمد دسیدمحمدزوی کارگر .
ښاغلی فیض الله دمحمدجان زوی کارگر.

ښاغلی غلام حیدر دعبدالرحیم زوی کارگر.
ښاغلی محمدعیسی دمحمدیاسین زوی کارگر.
ښاغلی محمدسروردغلام جان زوی کارگر .
ښاغلی اسدالله دغلام غوث زوی کارگر .
ښاغلی بازمحمد دسلطان محمدزوی کارگر.
ښاغلی محمداسحق دمحمد اسماعیل زوی کارگر .
ښاغلی محمدطاهردعبدالرزاق زوی کارگر .
ښاغلی عبدالقدیر دعبدالقیوم زوی کارگر .
ښاغلی غلام ربانی دمیرافغان زوی کارگر.
ښاغلی شاه دل دمسافرصادق زوی کارگر.
ښاغلی محمدابراهیم دشهنواززوی کارگر .
ښاغلی محمدسلیمان دخدای دادزوی کارگر.
ښاغلی محمدقسیم دعبدالغنی زوی کارگر .
ښاغلی نیازمحمد دبازمحمد زوی کارگر .
ښاغلی شجاع الدین دامیرالدین زوی کارگر.
ښاغلی عجب گل دمحمدرسول زوی کارگر.
ښاغلی محمدامان دمحمدحسین زوی کارگر.
ښاغلی باشی زرین دپښتون زوی کارگر.
ښاغلی محمدعلی دسیدمحمدزوی کارگر .
ښاغلی محسن دعبدالرزاق زوی کارگر .
محترمه خالده دمحمدزمان لور دادبیاتو دخانگی لیسانسه .
محترمه حمیرادغلام غوث لوردادبیاتودخانگی لیسانسه .
محترمه ثریاخادم دقیام الدین لوردطب په خانگه کی ډاکتره .
محترمه ذکیه دمحمدرسول لور دساینس په خانگه کښی لیسانسه .
محترمه زینب دمحمدامین لوربکلوریا .

محترمه محبوبه دنورمحمد لور دحقوقو او سياسي علومو په څانگه کي مافوق ليسانس .

محترمه خديجه‌دعبدالحق لورمافوق‌بکلوريا.

محترمه عزيزه دعبدالعزيزلوردحقوقو په څانگه کښي ليسانسه .

ښاغلی عبدالکريم حقاني دعبدالله زوی .

ښاغلی محمدکبير دمدد خان زوی ډيپلوم انجنير .

ښاغلی محمدامين قربت دعبدالغيات زوی .

ښاغلی عبدالله واحدی د عبدالسلام زوی دطب ډاکتر .

ښاغلی محمدبشيردوست محمدزوی ډيپلوم انجنير .

ښاغلی محمديونس دمحمد عيسی زوی د اقتصاد په څانگه‌کي ليسانسه .

ښاغلی ميرعبدالصمد دسيدعلي زوی‌دتخنيک په څانگه ماستر .

ښاغلی عبدالعلي مهرزاددمهرعلي زوی دطب ډاکتر .

ښاغلی ميرحسين سادات دشيرمحمد زوی ډيپلوم انجنير .

ښاغلی جلال نوراني دمحمد سالم زوی دحقوقو اوسياسي علومو ليسانسه .

ښاغلی محمدطاهر سيفي دمحمد حسن‌زوی دحقوقواوسياسي علومو په څانگه‌کي ډاکتر .

ښاغلی عزيزاحمددفضل احمدزوی انجنير.

ښاغلی روشن دل داحمدشاه زوی .

ښاغلی محمدياسين عظيم دمحمدعظيم زوی دښوونی اوروزني په څانگه‌کي دکتور .

ښاغلی سيدکريم حايزدملتان زوی دښوونی اوروزني په څانگه کي ليسانس .

ښاغلی ميرمحمد يوسف دميرمحمد عيسی زوی مافوق بکلوريا .

ښاغلی خان آقاخاشع دمحمداسلم زوی دطب ډاکتر .

ښاغلی مولوی عبدالمجيد دمدرسي استاد.

ښاغلی محمدلطيف وهاب‌زاده دمحمداسحاق زوی دحقوقو اوسياسي علومو په څانگه‌کي ليسانسه .

ښاغلی غلام شاه سرشارروشني دبابه خان زوی بکلوريا .

ښاغلی محمدافضل د عبدالکريم زوی دسوسيولوژی په څانگه‌کي ماستر .

ښاغلی قيام الدين راعي دمحمد اسماعيل زوی دادبياتو په څانگه‌کي دکتور .

ښاغلی عبدالاحد دغلام محمدزوی انجنير .

ښاغلی غلام حضرت دوجيه زوی دليسانس معادل .

ښاغلی محمد حسن فروتن دشربت زوی دفارمسي په څانگه‌کي ليسانس .

ښاغلی محراب الدين دمقبل زوی داقتصاد ډاکتر .

ښاغلی محمدمبين همراز دمحمدمقيم زوی دغاښونو ډاکتر .

ښاغلی محمداقبال‌دغلام‌صديق زوی دحقوقو اوسياسي علومو په څانگه کي ليسانسه .

ښاغلی عبدالغفار متوکل دمحمدرستم زوی دطب ډاکتر .

ښاغلی عبدالله نقشبندی دغلام نقشبندزوی داقتصاددپلان جوړولو په څانګه‌کی ډاکتر .

ښاغلی حمیدالله دعبدالله زوی لیسانسه .

ښاغلی محمدطاهر دفدامحمد زوی انجنیر .

ښاغلی محمدصدیق روهی دمحمدحسین‌زوی دروان شناسی په څانګه‌کی ماسټر .

ښاغلی مړ حبیب سهیلی دمحمدایوب زوی دساینس په څانګه‌کی لیسانسه .

ښاغلی محمد سعید دمحمدیوســف زوی دحقوقواوسیاسی علوموپه څانګه‌کی لیسانسه.

ښاغلی شیوسرن دطب ډاکتر .

ښاغلی عبدالحبیب حمیدی دعبدالحمید زوی لیسانسه .

ښاغلی محمدحسن نیردسخی داد زوی دژورنالیزم لیسانسه .

ښاغلی محمدظفردسردارمحمد زوی انجنیر.

ښاغلی محمدقاسم یاردمحمد اسمعیل زوی دژورنالیزم په څانګه کی لیسانسه .

ښاغلی عبدالتواب د شمس الدیـــن زوی لیسانسه .

ښاغلی فتح محمددغلام حسن زوی متقاعد جنرال .

ښاغلی امین‌الله درحمت الله زوی دیپلوم انجنیر .

ښاغلی سیدرسول فکور دسید حسین‌زوی لیسانسه .

ښاغلی عنایت شریف دمحمد شریف زوی داقتصاد لیسانسه .

ښاغلی سیدیوسف واعظی دسید اسماعیل زوی دحقوقو اوسیاسی علومو لیسانسه .

ښاغلی عمادالدین غیاثی دجمال الدین زوی دنباتاتو دساتنی په څانګه ډاکتر .

ښاغلی سیدعمرضیاء دمیر ضیاالدین زوی دبرینښنا دانجنیری په څانګه‌کی لیسانسه .

ښاغلی عین الدین دضیاالدین زوی انجنیر.

ښاغلی عطامحمد دمحمدعمرزوی دحقوقو او سیاسی علومو په څانګه کی لیسانسه .

ښاغلی غلام نبی دسلام جیلانی زوی‌دښوونی اوروزنی په څانګه‌کی لیسانسه .

ښاغلی لعل محمددمحمدایوب زوی داقتصاد لیسانسه .

ښاغلی میرعلی احمدهاشمی دمیرمحمدحسن زوی دطب ډاکتر .

ښاغلی عبدالستاردمحمدافضل زوی‌لیسانسه.

ښاغلی وحیداحمد دعلی احمدزوی دتخنیک په څانګه کی ماسټر .

ښاغلی سرورغنچه دحاجی توره زوی‌دکرنی اومالداری په څانګه‌کی ماسټر .

ښاغلی محمدکبیر دمحمدیونس زوی‌داقتصاد ډاکتر .

# اعضای کمیته تسوید اولین قانون‌اساسی
# دولت جمهوری افغانستان

دوکتور محمد حسن شرق معاون اول صدارت عظمی .

ښاغلی سید عبدالاله معاون دوم صدارت عظمی .

ښاغلی عبدالقدیر وزیر داخله .

دوکتور عبدالمجید وزیر عدلیه .

انجنیرغوث الدین فایق وزیرفواید عامه .

ښاغلی عبدالتواب آصفی وزیر معادن و صنایع .

ښاغلی محمدخان جلالر وزیر تجارت .

دوکتور عبدالله عمر وزیر صحت عامه .

انجنیرعبدالکریم عطائی وزیر مخابرات .

پوهاند عبدالقیوم وزیر معارف .

پوهاند دوکتور عبدالرحیم نوین وزیر اطلاعات وکلتور .

ښاغلی عزیزالله واصفی وزیر زراعت .

ښاغلی فیض محمد وزیرسرحدات .

انجنیرجمعه محمدمحمدی وزیرآب وبرق .

ښاغلی وحیدعبدالله معین وزارت خارجه .

ښاغلی علی احمدخرم وزیر پلان .

دگرجنرال غلام حیدررسولی لوی درستیز.

ښاغلی محمد سرور قوماندان قوای چهار زرهدار .

ښاغلی مولا داد .

ښاغلی محمد یوسف .

ښاغلی خلیل الله .

مولوی عبدالبصیررئیس عالی تمیز .

ښاغلی غلام علی کریمی .

مولینا عنایت الله ابلاغ .

دکتور سعید افغانی .

ښاغلی عبدالهادی هدایت .

دوکتور محمدآصف سهیل .

پوهاند وفی الله سمیعی .

دکتور غلام صدیق محبی .

برید جنرال شاه پور .

برید جنرال محمد یحیی نوروز .

ښاغلی محمداکبر عبقری .

بناغلی محمداسمعیل قاسمیار .

دکتور ضامن علی .

بناغلی یارمحمد دلیلی .

دکتور سیدمخدوم رهین .

دکتور محمد بشیر وهابزاده .

پوهنمل عالیه حفیظ .

پوهنمل فاطمه کیفی .

پوهنمل محمداعظم وهابزاده .

بناغلی سیدناصر .

ښاغلی محمد داؤد رئیس جمهور موقع توشیح نخستین قانون اساسی دولت جمهوری

ښا غلی محمد داود رئیس جمهور بارئیس واعضای کمیسیون غورومداقه برمسوده قانون اساسی دولت جمهوری دیده میشوند.

# بسم الله الرحمن الرحیم

دلوی خدای په نامه اودافغانستان دنجیبوخلکو دنیکمرغی په هیله زه محمدداؤد دافغانستان لوړنی جمهور رئیس دهغی وظیفی په اساس چه دجمهوری دولت دلوړنی لویی جرگی نمایندگانو د(۱۳۵۵) هجری لمریزکال دسلواغی دمیاشتی دپنځه ویشتمی نیټی دمصوبی به استناد درایو په اتفاق ماته راسپارلی ده نن دپنجشنبی په ورځ د۵ ۱۳۵۵ هجری لمریزکال دکب دمیاشتی په پنځمه نیټه دافغانستان په مرکزکابل کښی دااساسی قانون توشیح کوم اوانفاذیی اعلاموم.

دافغانستان دجمهوری دولت لوړنی جمهوررئیس محمد داؤد. (۱۳۵۵کال دکب پنځمه)

## سریزه

له هغه ځایه چه ملتونه اوټولنی دتاریخ په اوږدوکښی تل دتحول اوتکامل په حال کښی دی اوله هغه ځایه چه داواقعیت زمونږ په تاریخی ژوندکی دیوملت اودبشری ټولنی دیوجزپه حیث ښکاره شویدی له دی کبله:

دیوداسی پتمن ژونددتامینولودپاره چه دعدالت اوکفایت په متینو بنسټونو ولاړوی اونیکمرغی اوهوسایني اواطمینان ځخه ډک وی.

د۱۳۵۲ کال دچنگاښ دشپږویشتمی نیټی دملی، اجتماعی، اقتصادی،سیاسی، اوفرهنگی سپیڅلوارمانونو دتامینولو دپاره ....

دملی یووالی دوړخ په ورځ زیاتیدونکی ټینگښت اوپیاوړتیا تضامن او تساند او د اجتماعی عدالت دتامینولو اوزمونږ په ټولنه باندی دحاکموعینی اوذهنی شرایطو ملی فرهنگ اوتاریخی واقعیتونو سره سم په مترقی اومثبته توگه دتضادونو دمحو کولو دپاره زمونږ دهیواد دخلکو پرتمینی ماضی اوبرمیال تاریخ ته دژوری درناوی اودهیواد دخپلواکی اوملی هویت دساتنی په لاره کښی ددوی پرله پسی مبارزی اوددوی د تاریخی اوانسانی رسالت دپرځای کولو دپاره.

په لوی خدای (جل جلاله) باندی دایمان درلودلو اوداسلام دسپیڅلی دین داساسونو په پیروی.

اوپه پای کښی ددی ټولوهدفونواومقصدونو دتحقق دپاره.

مونږ دافغانستان خلکو دعصر دغوښتنو او شرایطو په درککولو سره تصمیم نیولی دی چه خپل ملی ژوند دآزادی، ترقی، حق، عدالت اوسولی پربنسټ دوروور گډلوی او سمسمی داصولو سره سم اوډژوند فلسفه اودهیواد دنن اوسباورځی دنسلونو سرنوشت دافغانستان د۱۳۵۲کال دچنگاښ دشپږویشتمی نیټی دملی اومترقی انقلاب داساسی اواقتصادی هدفونو پربنااټینگ کړو.

ددی حقایقو په درک کولوسره مودغه ملی وثیقه دجمهوری دولت داساسی قانون په حیث دافغانستان دنجیبو خلکودمادی اومعنوی نیکمرغی، هوسایني اوپرمختگ دپاره دخپل ځان اوراتلونکو نسلونو دلارښودنی د پاره وضع کړه.

# فهرست

## لمړی فصل
## اساسي هدفونه
### لمړی ماده :

دخپلواکی، ملی‌حاکمیت اودخاوری دتمامیت څخه دفاع کول .

### دوهمه ماده

دقدرت اجراکول دخلکو له خواچه اکثریی بزگران، کارگران، منورین اوځوانان دی .

### دریمه ماده

دفکراوعمل ترمنځ دیووالی ټینګښت دخلکو دپوره وندی اخیستلو په تکل دهیواد دمادی اومعنوی جوړښت اوپراختیا دپاره .

### څلورمه ماده

دیوی داسی دیموکراسی تامین چی په اجتماعی عدالت اودخلکو په‌گټوولاړه وی .

### پنځمه ماده

دآزادی اوانسانی کرامت درناوی او دهر رنګه کړاواوتوپیر دمنځه وړل .

### شپږمه ماده

دجمهوری نظام ورځ په ورځ زیاتیدونکی ټینګښت اوپیاوړتوب .

### اوومه ماده

دافغانستان دخلکوداکثریت په گټه ددی اساسی قانون درارزښتونو اوبنسټونوسره‌سم دژوروبنیادی اوپرله پسی اقتصادی اواجتماعی اوښتونو منځ ته راوستل .

### اتمه ماده

دهر ډول استثمار له مینځه وړل .

### نهمه ماده

دکار دحق تضمینول .

### لسمه ماده .

دخلکو دخدمت دپاره په اجباری توگـه دلمړنیوښوونو تامین اوتعمیم اودعلمی اوفنی کادرونو دروزنی اوبشپړتیاپه منظورډیاډول دثانوی، عمومی، مسلکی اوعالی‌زده‌کړوپراختیا اوپرمختیا .

### یوو لسمه ماده

دعامی روغتیا دښه والی اوساتنی دپـاره دوقایوی اومعالجوی طب پراختیا .

### دوو لسمه ماده

دملگروملتونو دمنشور داساسونو اودبشر دحقوقو دجهانی اعلامیی درناوی اودعادلانـه سولی ملاتړ په نتیجه کښی دیوی هوسا او پرمخ تللی ټولنی جوړول چــه د ورورۍ، سمسمی ،مرستی اودانسانی کرامت دساتنی په بنسټ ولاړه وی .

## دوهم فصل : ـ
### اقتصادی بنسټونه ،

### دیار لسمه ماده

منابع لکه‌کانونه، ځنگلونه اوانرژی لـوی صنایع، مخابرات دهوایی‌اوځمکنی ترانسپورت مهم تاسیسات ، بندرونه، بیمی، بانکونـه ، دخوراکی موادو دبرابرولو مهــم تاسیسات لرغونی اوتاریخی آثاردقانون دحکمونوسره‌سم دملت شتمنی ده اواداره یی په دولت پوری اړه لری.

### څوار لسمه ماده

دزراعتی ملکیت‌لوړه اندازه دځمکواصلاحاتو

دقانون له پلوه تثبیت اوټاکل کیږی .

### پنځلسمه ماده

ځانګړی ملکیتونه او تشبثـــات داستثمار دمنځه وړلو داصل په ملاتړدقانون په وسیله تنظیمیږی .

### شپاړ سمه ماده

حکومت دلګښت او پیدایښت تعاونـــی شرکتونه اوکوپراتیفونه دخلکو په ګډون او دخلکو داکثریت په‌ګټه دقانون دحکمـــونـــو سره‌سم تشویقوی . ملاتړیی‌کوی اولارښوونه ورته کوی .

### اوو لسمه ماده

دمنځنیو، وړواولاسی صنایعو په ساحه‌کی ځانګړی تشبثونه اوپانګی اچـــول د قانون دحکمونو سره سم تشویق کیږی ملاتړیـــی کیږی اولارښوونه ورته کیږی .

### اتلسمه ماده

دهیوادسوداګری دلارښودل شوی سوداګری په اساس چه دخلکوداکثریت په‌ګټو ولاړه‌ده دقانون دحکمونو سره سم تنظیمیږی .

### نولسمه ماده

مالیه داجتماعی عدالت په بنسټ دقانون دحکمونو سره سمه اخیستل کیږی .

## دریم فصل :

## دولت

### شلمه ماده

افغانستان یوجمهوری‌دیموکراتیک، خپلواک، یوموټی اونه بیلیدونکی دولت دی .

### یو ویشتمه ماده

ملی حاکمیت په افغانستان کښی په‌خلکو پوری اړه لری . دافغانستان ملت ټول هغه افراددی چه دقانون له حکمونوسره ســـم دافغانستان ددولت تابعیت لری .

دافغانستان دملت دافرادو په هریو فرد باندی دافغان دکلمی اطلاق کیږی .

### دوه ویشتمه ماده

دافغانستان دین داسلام مقدس دین دی .

دملت هغه‌کسان چه مسلمانان نه دی په هغوحدودونوکښی دننه چه دآدابو اوعـامـی هوساینی په هکله یی قوانین ټاکلی آزادی چه خپل مذهبی مراسم په ځای‌کړی .

### در ویشتمه ماده

دافغانستان دژبوله جملی څخه پښتو او دری رسمی ژبی دی .

### څلیر ویشتمه ماده

دافغانستان دبیرغ رنګ تور، سور، او زرغون دی چه دارنګونه په افقی ډول په‌ټاکل شووانداز وله پورته مخ په ښکته واقع دی او دکیڼی خواپه پاسنی برخه کښی یی ددولت ملی نښان لګیدلی دی دبیرغ اوملی نښـــان تعریف اواندازه دقانون له خوابښودل‌کیږی .

### پنځه ویشتمه ماده

دافغانستان دجمهوری دولت وسله والـــی قواووی چه دملی انقلاب هدفونوته وفـاداری اوپه خپلوملی عنعناتو ټینګی ولاړی‌دی دخلکو دخدمت له‌پاره دحکومت داوامروتابع دی .

دافغانستان دقلمرونه دفاع دوسله والـــو قواووپه غاړه ده اودوسله والوقواوو دعالی شوری دلاری په ملی فعالیتونو کښی برخه اخلـــی .

## شپږ ویشتمه ماده

دافغانستان اداره دقانون دحکمونوسره سم دمرکزیت په اصل ولاړه ده .

دافغانستان مرکزدکابل ښاردی .

## څلورم فصل :

## د خلکو حقونه او وجیبې .

## او ویشتمه ماده

دافغانستان ټول خلك ښځې وی‌که نــر بی له تبعیض اوامتیاز دقانون په وړانــدی یوشان حقونه اووجیبې لری .

## اته ویشتمه ماده

آزادی دانسان طبیعی حق دی پرته له‌هغو حالاتوچه دنورو آزادی، شرافت یاعمــومــی ښیګړوامنیت اوملی مصلحتونو ته وګه یازیان ورسوی، داحق دقانون له خوابنودل کیږی .

## نهه ویشته ماده

هرافغان چه دعمراتلس کاله یی پوره‌کړی وی دقانون دحکمونو سره سم درای ورکولو حق لری .

## دیر شمه ماده

دذمی برائت اصلی حالت دی. ترڅوپوری چه تورن دواکمنی محکمی له خواپه قطعــی حکم‌سره په جزامحکوم نشی بیګناه ګـــڼل کیږی .

هیڅ عمل بی دقانون له حکمه جرم نه‌ګڼل کیږی . هیچاته جزانشی ورکول کیدی مګر دواکمنی محکمی دحکمه سره سم . هیچاته جزانشی ورکول کیدی مګردیوداسی قــانون دحکمه سره سم چه دڅغه تهمتی کارله‌کولو نه ړومبی نافذشوی وی .

هیڅوك تعقیب‌کیدلی، نیول‌کیدلی یاتوقیف کیدلی نه شی مګر دقانون دحکمونوسره سم.

## یو دیر شمه ماده

جرم دهرچاڅپل ځانی شی دی .

دتورن تعقیبول، نیول‌توقیفول‌اوسزاورکول بل هیچاته نه ورغځیږی .

ګړول اوله انسانی کرامت نه مخالفه سزا ټاکل نارواده .

هرڅوك حق لری چه دهغه تورډلری‌کولوپه غرض چه دقانون له مخه پری لګول شوی‌وی ځان ددفاع دپاره وکیل ونیسی .

## دوه دیر شمه ماده

دچاپوره وړی‌کیــدل د پــوروړی دآزادی دسلبیدویاکمیدوسبب کیدای نه شی .

دپورویستلو لاری چاری دقانون له خــوا ښودلی کیږی .

## دری دیر شمه ماده

هرافغان حق لری چه دڅپل هیواد سیمی هرځای ته ولاړشی اوهلته استوګنه غــوره کړی پرته له هغوځایو څخه چه قانون منع کړی وی .

همدارنګه هرافغان حق لری چه دقـانون دحکمونو سره سم دافغانستان نه د بانــدی سفروکړی اوبیرته افغانستان ته راشی .

## څلور دیر شمه ماده

هیڅ افغان په افغانستان کی دننه اوباد افغانستان نه دباندی په ښرلومحکومیدلــی نه شی .

هیڅوك په یوه ځای کی له میشته کیدلو اویااله‌هغه‌ځای‌نه‌بل ځای ته دلیږدیدلو څخــه

منع‌کیدای نه شی مگر پداسی حالاتو کښی چه دقانون دامنیت اوعامه گټودتأمین په‌منظور اجازه ورکړی وی .

هیڅ افغان دیوجرم په توربېرنی دولت ته سپارل کیدای نشی .

## پنځه دیر شمه ماده

دهرچاکور دبلوسی نه په امن دی هیڅوك حتی دولت هم داوسیدونکی داجازی یادیوی واکمنی محکمی له حکمه پرته اوبی دهغو حالاتو اولاروچارو‌چه په قانون کی څرگندی ښودل شویدی دچاکورته ننوتلی او هغه لټولی نشی .

دمشهود جرم په وخت‌کښی مسئول مامور دیوچاکورته بی دهغه داجازی یا دمحکمی دمحکمی اجازی څخه په خپل مسئولیت ننوتلی شی اوهغه لټولی شی . خو دغه مامورپدی مکلف دی چه دننوتلو اولټولو نه وروسته دقانون دخواپه ښودل شوی موده‌کی دننه دمحکمی حکم ترلاسه کړی .

## شپږ دیر شمه ماده

ملکیت دبلوسی نه‌په امن دی دهیچاملکیت دقانون دحکم اودیوی واکمنی محکمی دفیصلی نه پرته مصادره‌کیدلای‌نه شی .

دخصوصی ملکیت استملاك یوازی دعمومی ښیگړودپاره دعالادنه عوض په بدل کښی دقانون دحکمونو سره سم جواز لری .

هیڅوك دملکیت له لاس ته راوړلواوتصرف څخه منع‌کیدای نشی مگردقانون په پولوکی.

دملکیت داستعمال لاری چاری دعامه‌ښیگړو دپاره دقانون دپلوه تنظیم اوښودل کیږی .

## اوه دیر شمه ماده

دهرچا دمخابری آزادی اوپټوالی په لیك سره وی‌که په تیلفون که په تیلگراف اویاپه گومه بله وسیله دبلوسی نه‌په‌امن دی .

دولت دچاد مخابری د پلټنی حق نلری مگر دقانون دحکمونو سره سم په سملاسی حالاتو کښی‌چه‌قانون‌ښودلی دی‌مسئول‌مامور بی‌لدی‌چه لومړی له محکمی څخه اجازه‌واخلی په خپل مسئولیت سره کولی شی چه‌مخابری وپلټی . دغه مامورپدی مکلف‌دی چه‌دپلټنی څخه وروسته په هغه موده کښی چه قانون ښودلی دی‌د محکمی‌حکم تر لاسه کړی .

## اته دیر شمه ماده

دفکر اوبیان آزادی د بلوسی نه په امن ده .

هر افغان حق لری چه د قانون دحکمونو سره سم په وینا لیکنه ،تصویر اویاداسی نورو وسیلو سره‌خپل فکر څرگند کړی .

دچاپخانو د تاسیس او د مطبوعاتو دخپرولو اجازه او امتیاز د قانون دحکمونو سره سم یواځی د افغانستان اتباعوته ور کول کیږی .

دلویو چاپخانو ،درادیو او تلویزیون. دعاو خپرونکو کارځیو تاسیس او چلول یواځی په دولت پوری اړه لری .

## نهه دیر شمه ماده

د افغانستان اتباع حق لری چه‌درروا او سوله ناکو مقصدونود پوره کولو دپاره دقانون د حکمونو سره سم‌بی وسلی ټولنه و کاندی.

## څلو یشتمه ماده

د افغا نستان د خلکو دسیاسی روزنـــی اواجتماعی غوښتنو د څرګندو لوپه منظـــور تر هغه وخته چه دا آرزو تر سره کیـــږی او طبیعـــی و د ی تـــه ر سیـــږ ی په هیوادکی د ملی انقلاب د ګوند په لارښودنه کوم چه دافغانستان دخلکو د (۱۳۵۲) کـال دچنګاښ دشپږویشتمی نیټی دمترقی اوولسی انقلاب بنسټ ایښودونکی اومخکښی ګوندی یواځی یوګوندیز سیستم ټینګ وی .

## یو څلو یشتمه ماده .

کار د هرافغان چه دکولووس یی ولری حق، شرف اودغاړی فرض دی .

دکار دتنظیم دپاره چه کوم قوانین جوړیږی دهغوی لوی هدف یوی داسی مرحلی تـــه رسیدل دی چه په هغی کی دټولوزیارکښانو کروندګرو، کاریګرواواصنافو حقونه اوښیګړی وساتلی شی دکار مناسب حالات راپیداشی اودکاریګرو اوکار فرمایانو ترمینځ روابـــط په عادلانه اوپرمخ تللی ډول تنظیم شی .

دکسب اوکارغوره کول په هغوشرایطوکښی دننه چه قانون ټاکلی دی آزاد دی .

## دوه څلو یشتمه ماده

دافغانستان اتباع داهلیت له مخـــی او د قانون دحکمونو سره سم ددولت دخدمـــت دپاره منل کیږی .

## دری څلو یشتمه ماده

بیګارکه ددولت لپاره هم وی ناروادی .

دبیګار بندیز دهغو قوانینو دعملی کولو په لاره کښی چه دعمومی ښیګړو په نیت دیوځایی کارد سمښت دپاره جوړیږی کوم څخه نه راپورته کـوی .

## څلور څلو یشتمه ماده

هرافغان مکلف دی چه دولت ته مالیه او محصول ورکړی .

هیڅ رازمالیه اومحصول بی دقانون لـــه حکمه نشی ټول کیدی .

دمالیی اومحصول اندازی اودهغو ورکـولو لاری چاری یی داجتماعی عدالت سر ه سم دقانون له خواټاکل کیږی داحکم په خارجی اشخاصو باندی هم چلیږی .

## پنځه څلو یشتمه ماده

دهیواد څخه دفاع دافغانستان دټولواتباعو سپیڅلی وظیفه ده .

دافغانستان ټول اتباع دقانون د حکمونو سره سم دعسکری خدمت په کولومکلف دی .

## شپږ څلو یشتمه ماده

داساسی قانون په حکمونو سره سم چلیدل دجمهوری نظام اود ۱۳۵۲ کال د چنګاښ د۲۶ نیټی دانقلاب دهدفونو سره وفاداری دجمهور رئیس درناوی کول، قوانینوته غاړه ایښودل، عمومی نظم اوامن ته پاملرنه دهیواد دښیګړو ساتل اوپه ملی ژوندکښی ګډون کـــول دافغانستان دټولوخلکو وظیفه ده .

## اووه څلو یشتمه ماده

هیڅوک نه شی کولی چه ددی اساسی قانون دمندرجه حقونو اوآزادیو څخه په استفـادی سره ملی خپلواکی دخاوری تمامیت، ملـــی وحدت اوهغه غوښتنونه چه دخلکو داکثریت په ښیګړوولاړی وی اوپاد ۱۳۵۲ کال دچنګاښ

د ۲۶ نیتی دانقلاب نوروهدفونوته چکه اوزیان ورسوی .

## پنځم فصل :
## ملی جرگه
### اته څلویښتمه ماده

ملی جرگه دافغانستان د خلکـــو دارادی څرگندویه ده اوډټول ملت څخه نمایندگـــی کوی .

### نهه څلویښتمه ماده

دملی جرگی غړی چه پنځوس په سلوکی یی کروندگر اوکاریگر تشکیلوی دگـوند له پلوه پیشنهادااو دآزادو، عامو،پټو اوسماسمو انتخاباتو دلاری دقانون دحکمونو سره سـم دیوی څلورکلنی مودی دپاره دخلکو له خوا غوره کیږی .

ددی مقصد دپاره افغانستان په انتخـــابی ونډونو ویشل کیږی .

دونډونو شمیراوسمیه دقانون له مخه ټاکل کیږی .

### پنځو سمه ماده

دملی جرگی دوکیلانو دغوره کیـدو لاری چاری شرطونه او دهوی وظیفی دقـانـون د حکمونو سره سمی تنظیمیږی .

دیووکیل دانتخاب په قانونی والی باندی داعتراض اووده دغړیتوب دوثیقی کـره کتنه دملی جرگی دداخلی وظایفو داصولوسره سم تراجرالاندی نیول کیږی .

### یو پنځو سمه ماده

دوکیل څخه دوکالت دامتیاز سلبول دملی جرگی دغړوددوی برخوڅخه ددووبرخو پـــه موافقی سره کیدی شی .

### دوه پنځو سمه ماده

دانتخاب کوونکوشرطونه دانتخاباتو پـــه قانون کی ښول کیږی .

هغه خوك چه دملی جرگی دغړیتوب دپاره غوره کیږی په‌کاردی چه دانتخاب کوونکو په شرطونو سر بیره دغه صفتونه هم ولری .

۱ـ باید دملی جرگی په غړیتوب بانـدی دغوره کیدونه لمړی یی لږترلږه لس کـاله پخوادافغانستان ددولت‌تابعیت حاصل‌کړی‌وی.

۲ـ دمحکمی له خوا دسیاسی حقونو څخه په محرومی محکوم شوی نه وی .

۳ـ دانتخاب په وخت‌کښی یی دخپل عمر پنځه ویشتم کال پوره کړی وی .

### دری پنځو سمه ماده

دملی جرگی هریوغړی حق لری چه دجرگی دننه دهغه موضوع په باب چه خبری پـری روانی وی خپله نظریه دداخلی وظایفو پـــه اصولو برابر څرگنده کړی .

### څلور پنځو سمه ماده

دملی جرگی هیڅ یوغړی د هغی نظریـــی له‌کبله چه دخپلی وظیفی دپرخای کولو پـــه وخت کښی ښکاره کوی دعدلی تعقیب لاندی نه راځی .

که چیری دملی جرگی په یوغړی باندی توروپوری شی نومسئول مامور ددغی پیښــی خبرملی جرگی ته ورکوی اوپس له هغــه چه دجرگی غړی په اکثریت سر ه اجـــازه ورکاندی تورن دعدلی تعقیب لانـدی راځـی دڅرگند جرم په باب مسئول ماموروکولی شی

چه تورن بی دجرگی داجازی نه دعدلی تعقیب لاندی راوړی اوویی نیسی .

که چیری عدلی تعقیب دقانون له مخی دتوقیف غوښتنه کوله نومسئول مامورمکلف دی چه سملاسی جرگی ته خبرورکړی .

که چیری تورپه داسی وخت‌کښی پیښ شوی وی چه جرگه تعطیل وی نودتوقیف خبردجرگی اداری هیات ته ورکول کیږي .

اداری هیات مکلف دی چه ملی جرگه دراتلونکی اجلاس په‌لمړی غونډه‌کی دموضوع څخه خبره کړی .

## پنځه پنځو سمه ماده

حکومت کولی شی چه دملی جرگی په غونډوکی گډون وکړی . ملی جرگه کولی شی چه دحکومت غړی خپلی غونډی ته وغواړی اودهغوی نه څرگند تیا وغواړی .

په غونډوکی به دملی جرگی مباحثی ښکاره وی مگر کله چه جمهور رئیس دغونډی پټوالی اعلام کړی همدارنگه کله چه دملی جرگی مشراویادحکومت هرغړی اویالږ ترلږه دملی جرگی لس تنه غړی داغوښتنه وکړی چه جرگه دی پټه وشی اوجرگه دا غوښتنه ومنی .

هیڅوک په سرزوری سره دملی جرگی دیره ځای ته ننوتلای نشی اوکه څوک ددی حکم نه مخالفت‌وکړی دقانون دحکمونوله‌مخه به سزاورکول کیږی .

## شپږ پنځو سمه ماده

بی له هغوحالاتو چه حکم یی پدی اساسی قانون کښی په‌صراحت ښودل شوی دی دملی جرگی فیصله دحاضروغړو درایو په اکثریت کیږی .

## اوه پنځو سمه ماده

ملی جرگه په‌هرکال کښی څلورمیاشتی پرله پسی عادی غونډه چه دلیندی په اوله نیټه پیل‌کیږی دایروی .

## اته پنځو سمه ماده

ملی جرگه دتقنینی دوری په اول وخت کښی دخپلو غړوله منځه یوکس دمشر په توگه غوره کوی .

جرگه دخپلو غړوله منځه دوه تنه دلومړی نائب اودوهم نائب په حیث اوبیوه تنه نور دمنشی اودمنشی دنائب په حیث دکلنی‌غونډی په اول سرکی دیوکال دپاره غوره‌کوی .

دغه پورتنی کسان دجرگی اداری هیات تشکیلوی اوپه‌اعظمی ډول دغونډی دپیل‌کیدو نه وروسته دپنځلس ورځوپه موده کی غوره کیږی .

## نهه پنځو سمه ماده

ملی جرگه دبحث لاندی موضوعاتو باندی دکره اوپراخی کتنی دپاره دداخلی وظیفو داصولو دحکمونو سره سمی جرگه‌گی جوړوی.

## شپیتمه ماده

ملی جرگه دخپلوداخلی وظایفو اصول جوړوی .

## یو شپیتمه ماده

دملی جرگی دغړودپاره دقانون دحکم سره سم مناسب معاش ټاکل کیږی .

## دوه شپیتمه ماده

ملی جرگه دافغانستان دحیاتی چاروډسمون

دپاره ددې اساسي قانون په حکمونو برابر دقوانینو په هغومسودو باندې چه دحکومت اویاقضائیه قوې له خواورته پیشنهادشوې وي وروسته دمطالعې اوغورنه لازم تصمیم نیسي .

په بودجې باندې تصمیم نیول دبین الدول معاهدو تصدیقول خارج ته د افغانستان دجمهوري دولت دوسله والوقواؤ دتولګولیږل دملي جرګې په واک کې دي .

دملي جرګې دتعطیل یاانحلال په وخت کښې حکومت کولی شي دعاجلو چارودسمون دپاره تقنیني فرمانونه تسوید اوترتیب کړي، دافرمانونه دجمهور رئیس ښکلو او اعلامولو څخه وروسته نافذګڼل کیږي . دغه فرمانونه دملي جرګې دلومړني غونډې له نیټې نه تر دیرشو ورځو پورې ملي جرګې ته دتصمیم نیولودپاره وړاندې کیږي .

## دري شپیتمه ماده .

قانون هغې مصوبې ته وایي چه ملي‌جرګې منلي اوجمهور رئیس ښکلې وي .

## څلور شپیتمه ماده

هیڅ قانون نشي کولی چه داسلام‌دسپیڅلي دین اساسونو، جمهوري نظام اونورو هغو ارزښتونو څخه مناقض وي چه پدې اساسي قانون کښې راغلي دي .

## شپږم فصل :
## لویه جرګه
## پنځه شپیتمه ماده

په افغانستان کښې لویه جرګه دافغانستان دخلکو دسترقدرت، واک اوارادې ښکارندویه ده .

لویه جرګه ددې لاندې کسانوڅخه جوړه‌ده:

دملي جرګې غړي .

دګوند دمرکزي شورې غړي .

دحکومت اووسله والوقواوو دعالي شورې غړي .

دسترې محکمې غړي .

دهرولایت دپنځوتنوڅخه تر اتوتنو پورې نمایندګان .

دیرش تنه غړي چه دفرمان په وسیله دجمهور رئیس له خوانټاکل کیږي .

## شپږ شپیتمه ماده :

لویه جرګه ددې اساسي قانون دحکمونو سره سم په جمهوري فرمان دایریږي .

جمهوررئیس دلویې جرګې رئیس دی .

دجمهور رئیس دمړینې یااستعفې په‌صورت کې لویه جرګه دمړینې یااستعفا دورځې له تاریخ نه په شلو ورځوکې دننه دجمهوري ریاست دمقام له خوابرابریږي .

## اوه شپیتمه ماده

لویه جرګه دلاندې مقصدونو اوحالاتودپاره دجمهور رئیس اویادلویې جرګې دنائب‌رئیس په مشرې دایریږي .

۱ـ داساسي قانون تعدیل .

۲ـ دجمهور رئیس انتخابول اویا دهغه داستعفې منل .

۳ـ دجنګ اواوربند داعلان تصویبول .

٤ـ دبلې هرې مهمې پیښې په مقصد چه دلویې جرګې دتصویب غوښتنه وکړي .

### اته شپیتمه ماده

په داسی‌حال کښی چه لویه جرگه دایره دهغی دغړوپه هکله ددی اساسی قانـــون دځلورپنځوسمی مادی حکم عملی‌کیږی .

### نهه شپیتمه ماده

دلویی جرگی مباحثی به ښکاره وی مگـر کله چه دحکومت ددووبرخونه زیات غـړی یادگوند مرکزی شوری اویادجرگی دیرش‌تنه غړی وغواړی چه غونډه دی پټه وی اولویه جرگه داغوښتنه ومنی .

### اویا ومه ماده

لویه جرگه دپرانستلو وروسته په‌نوم‌رنی غونډه‌کی دخپلوغړوله مینځه یوتن درئیس د نائب په‌توگه اودوه تنه دمنشیانوپه توگـــه دخپلو غړوددرایوپه اکثریت سره غوره‌کوی .

### یو اویا ومه ماده

پرته له هغوحالاتوڅخه چه احکام یی پدی اساسی قانون‌کی په څرگندډول راغلی د ی دلویی جرگی تصمیم دهغی دحاضروغړو پــــه اکثریت سره نیول کیږی .

### دوه اویا ومه ماده

ددی اساسی قانون دحکمونو سره ســـــم دلویی جرگی تگ لاره دقانون له خوابڼودل کیږی .

### دری اویا ومه ماده

لویه جرگه هغه واکونه لری چه پـــدی اساسی قانون‌کی تاکل شویدی .

### خلور اویا ومه ماده

دملی جرگی دړنگیدوپه حالت کی دهغــی غړی دلویی جرگی دغړوپه توگه خپل حیثیت دلوی ملی جرگی ترداپریدوپوری ساتی .

په داسی حالت‌کی چه دلویی جرگی‌غونډی روانی‌وی دهغی ټول غړی پرته لدی چه مقام رتبه، اووظیفه‌یی په‌نظرکی ونیول شی‌مساوی حقونه لری .

## اووم فصل :

## جمهور رئیس

### پنځه اویاومه ماده

جمهور رئیس دافغانستان ددولت مشر دی اوداجرائیه قوی اوگوند وظیفی ددی اساسی قانون اوډگوند داساسنامی له‌حکمونو سره‌سم په مستقیمه توگه په غاړه لری اودمربوطـو اورگانونو دلاری یی اداره اولارښودنه کوی.

### شپږ اویا ومه ماده

جمهور رئیس لومړی دگوند له خوانومول کیږی اوډیوی شپږکلنی مودی له پاره دلوی جرگی له خوادهغی دغړوددریو برخو څخـــه ددووبرخو ددرایوپه اکثریت انتخابیږی .

### اوه اویا ومه ماده

جمهور رئیس باید دافغانستان داتباعـــو څخه وی مسلمان وی اوهغه او همسریـــــی دافغانی موراوافغان پلاره زیږیدلی وی او د مدنی اوسیاسی حقونو څخه گټه من اوعمریی دڅلویښتوکالوڅخه کم نه وی .

### اته اویا ومه ماده

دجمهور رئیس صلاحیتونه اووظیفی دادی:

۱ـ دافغانستان دوسله والو قواؤلـــویـــه مشری .

۲ـ دلوی جرگی په سلادجنگ اواوربند اعلان .

جمهور رئیس کولی شی چه دسملاسی او څرگند خطرپه حالت‌کی چی‌خپلواکی‌اودخاوری تمامیت تهدید کړی اویاپه نورو سملاسی حالاتوکی استثنایی تصمیم ونیسی او لویه جرگه دایره کړی .

۳ـ داضطرار دحالت اعلامول اوختمول .

٤ـ دلویی جرگی دایرول اوپرانستل .

٥ـ دملی جرگی دعادی غونډی پرانیستل اودهغی دفوق العاده غونډی دایرول او پرانیستل .

٦ـ دملی جرگی ړنگول اودنوروانتخاباتو دفرمان ایستل نوی انتخابات دملی جرگی دړنگولو دنیټی نه‌په دریو میاشتوکی دننه سرته رسیږی .

۷ـ دملی یووالی ټینگښت او دافغانستان دخلکو دښیگړو ملاتړ .

۸ـ ددی اساسی قانون دحکمونو سره سم دهیواد دکورنی اوبهرنی سیاست لارښودنه اویوشان کول .

۹ـ دجزاکمول اوبښل .

۱۰ـ دقانون دحکمونو سره سم دنښان ورکول .

۱۱ـ دگوند دغړوڅخه دجمهوری ریاست دمرستیال یامرستیالانو اودگوند دغړو او له گونده بهرکسانوڅخه دوزیرانوټاکل، معزولول اودهغوی داستعفی منل .

۱۲ـ دستری محکمی دغړواودقاضی القضات ټاکل .

۱۳ـ دقانون دحکمونو سره سم دقاضیانو، دوسله والو قواؤ منصبدارانو او عالیرتبه مامورینوټاکل متقاعدکول، معزولول اودهغوی داستعفی منل .

١٤ـ په بهرنیو ملکونوکی دافغانستان دسیاسی نماینده گیو، مشرانواوپه بین المللی موسسه کی دافغانستان ددایمی نمایندگانو ټاکل اودبهرنیو ملکونو دسیاسی نمایندگانو باورلیك منل .

۱٥ـ دقوانینو اوتقنینی فرمانونو ښکلل اودهغو دجاری‌کولو اعلام اودبین الدول‌معاهدو ښکلل اودقانون دحکمونوسره سم دبین‌الدول معاهدو دتړون دپاره داعتبارلیك ورکول .

## نه اویا ومه ماده

جمهور رئیس کولای شی چه په مهوملی مسایلوکښی دافغانستان دخلکو عمومی رایوته مراجعه وکړی .

## اتیا ومه ماده

جمهور رئیس په وظیفی دبوختیدوونه‌دمخه دلوی جرگی په وړاندی داسی لوړه په ځای کوی .

ستاسی دافغانستان دملت دنمایندگانو په وړاندی زه .... دلوی‌خدای په نامه‌لوړه کوم چه داسلام دسپیڅلی دین داساسونوملاتړ به کوم دی اساسی قانون اودافغانستان نور قوانینو ته به‌په درنه سترگه گورم اوهغوی ته به غاړه ږدم دملی خپلواکی او دسیمی دتمامیت خارنه به‌کوم اوخپل ټول قوت ا و طاقت به دافغانستان دخلکو دحقونواوښیگړو د۱۳٥۲ کال دچنگاښ د۲٦ نیټی د انقلاب دهدفونو اوجمهوریت دملاتړپه لارکی وقفوم.

## یو اتیا ومه ماده

پرته له هغوحالاتوچه ددی اساسی قانــون پەشپږدیرشمه مادەکښی ځرګندشویدیجمهور رئیس دخپلی وظیفی دچلولو په موده کښــی ددولت سره دهیڅ رازګټی وتی معامله نشی کولی .

## دوه اتیا ومه ماده

جمهور رئیس دناروغی اودسفرپه وخت‌کی دجمهوری ریاست مرستیال اویامرستیالانو ته وظیفه ورکوی چه دهغو لاربنودنو سره سم چه دوی ته یی صادرکړی دده په عوض‌کار وکاندی .

## دری اتیا ومه ماده

دجمهور رئیس معاش او لګښت د قانون خواټاکل کیږی .

## خلور اتیا ومه ماده

دجمهور رئیس دانتخابولو دپاره دجمهوری ریاست ددوری دپای ته رسیدو نه پنځـــه خلویښت ورځی وړاندی باید ددی اساســی قانون اودګوند داساسنامی دحکمونوسره سم لازم چلند وکړی شی .

## پنځه اتیا ومه ماده

که چیری جمهوررئیس داستعفا تکل وکړی لویه جرګه دایروی اوخپل استعفا لیک‌مستقیماً هغی ته وړاندی کوی . په داسی حالت کــی چه لویه جرګه دااستعفاء قبوله‌کړی دتـــوی جمهوررئیس انتخاب ددی اساسی قانون دشپږ اتیاومی مادی سره سم صورت نیسی .

## شپږ اتیا ومه ماده

که چیری جمهور رئیس مړشی اویااستعفاء وکړی دجمهوری ریاست وظیفه په موقتـــی ډول دملی جرګی رئیس ته سپارله کیږی پدی حالت کښی دملی جرګی رئیس په انتخاباتو کی دجمهوری ریاست دنوموړلی په توګه ټاکل کیدی نشی .

پدغه موده‌کی چه دملـی جرګـی رئیس دجمهوری ریاست وظیفه په موقتی ډول چلوی دااساسی قانون تعدیلیدی نه شی .

نوی جمهور رئیس دجمهوری ریاســـت دکرسی دتشیدنی له ورځی څخه په دیرشو ورځوکی دننه دقانون دحکمـــونوسره ســـم انتخابیږی .

دهغوعاجلو اوملی مهمو پیښو درابرسیره کیدوپه حالت کی چه موقتی جمهور رئیس دی ته اړکړی چه ددی اساسی قانون (۷۸) ماده‌کی دراغلو صلاحیتونو څخه کار رواخلی مؤقتی جمهور رئیس کولای شی چه ددغـی مادی دحکمونو په رعایت دحکومت اودګوند دمرکزی شوری دغړودموافقی سره سم ددی اساسی قانون داته اویاومی مادی دمندرجه صلاحیتونوڅخه استفاده وکړی .

## اوه اتیا ومه ماده

په جمهور رئیس باندی دملی خیانت تور دملی جرګی ددریو برخو څخه ددوبرخوغړو درایو په اکثریت لګول کیدی شی داغوښتنه دګوند دمرکزی شوری ددریو برخو څخه ددو برخو غړو درایـــو داکثریـــت دمنلو وروسته لوی جرګی ته وړاندی کیږی .

پدی حالت‌کی جمهوررئیس مکلف دی چه لویه جرګه دایره کړی .

دملی جرگی رئیس دلویی جرگی دغونډی مشری کوی. کله چه لویه جرگه لګول شوی توردوړاندی شوودلایلو سره سره ددریوبرخو څخه دخپلودووبرخو غړودرایو په اکثریت تصویب کړی دجمهور رئیس لاس دکساره ایستل کیږی .

دمحکمی جوړښت اودمحاکمی لاری چاری په بیل ډول د خاص قانون له پلوه ښودل کیږی .

پدی حالت کی دجمهوری ریاست چاری په موقتی توګه دملی جرگی رئیس تهسپارلی کیږی . مؤقت جمهوررئیس ددی اساسی قانون دشپږاتیاومی مادی دحکمونو تابع‌دی

## اتم فصل : —

## حکومت .

### اته اتیا ومه ماده

حکومت ددولت ستراداری او اجرائیوی اورگان دی چه دجمهوری ریاست دمرستیال یامرستیالانو اووزیرانو څخه جوړوی او د جمهوررئیس ترمشری لاندی خپله وظیفه سرته رسوی .

### نه اتیا ومه ماده

دجمهوری ریاست مرستیال یا مرستیالان اووزیران باید دافغانستان له اتباعو څخه وی هغوی اوهمسرانی یی دافغانی مور او افغان پلاره زیږیدلی وی ټول مدنی اوسیاسی حقونه یی پهځای وی .

### نوی یمه ماده

دجمهوری ریاست مرستیال یا مرستیالان اووزیران په وظیفودبوختیدونه مخکی دجمهور رئیس په وړاندی داسی لوړه کوی .

دلوی خدای (ج) په نامه لوړه کوم چه دافغانستان اساسی قانون اونوروقوانینو ته به په درنه سترگه گورم اوهغوی ته به غاړه ږدم اوخپل ټول قوت اوطاقت به د ملی ښیگړواوحقوقو دملاتړ په لارکی وقفوم او د ۱۳۵۲ کال دچنگابښ دشپږویشتمی نیټی دانقلاب دهدفونو او دافغانستان دجمهوریت ساتنه به کوم .

### یو نویمه ماده

حکومت دلاندی واکونه اووظیفی لری .

۱— دقانون دحکمونو اودگوند داساسونو سره سم دهیواد دکورنی اوبهرنی سیاست په ځای کول .

۲— دمربوطه وزارتونو ددائرواوپه هغوی پوری دمتعلقوموسسو دچارو اداره او څارنه اودهغوی داجراآتو یوشانته کول .

۳— په اجرائیوی اواداری چاروکی دقوانینو اوجمهوری فرمانونو سره سم تصمیم نیول اودهغوی‌عملی کیدو څارنه .

٤— دقوانینودمسودو جوړول او دمقرراتو وضع‌کول .

٥— ددولت دبودجی دسمبښت او جوړښت اودواقتصادی ملی اوپولی سیستم دټینگښت دپاره دلارو چارو دپیدا کول .

٦— ددولت دپرمختیایی پلانونو طرح او د هغوی دعملی کیدو اواجراآتو دپاره دلاروچارو سنجول .

۷— دبهرنیو اوکورنیو پوروتو د راکړی ورکړی په هکله مفاهمه اوخبری .

۸ـ دعمومي نظم اوامن دساتلـو دپـاره دلاروچارو سنجول

۹ـ دهرډول اداري فساد دمنځه وړلولپاره دقانون دحكمونو سره سم لازم اواغيزه ناكه تدبيرونه غوره كول

۱۰ـ دبهرنيو هيوادواو موسسو سـره د قانون دحكمونوسره سم دقراردادونو تړون .

۱۱ـ دنورلو هغووظيفو په ځاى كړه چه‌دى اساسي قانون اونورقوانينو حكومت ته‌سپارلي وي .

## دوه نوى يمه ماده

حكومت دخپلو وظيفودسمون دپاره دقانون پربنياد مقررات جوړوي .

دامقررات بايد چه دهيڅ قانون دعبـارت اوروح سره تناقض ونه لري .

## درى نوى يمه ماده

دهغو حالاتوپرته چه ددى اساسي قـانون په شپږ ديرشمه ماده‌كي څرګند شويــدي دجمهوري رياست مرستيال يا مرستيالان او وزيران دوظيفوداجراكولوپه وخت‌كي د ګټـي وټي هيڅ ډول معامله ددولت سره نشـي كولي .

## خلور نوى يمه ماده

دجمهوري رياست مرستيال يا مرستيالان اووزيران دخپلو اجراآتو له بابته جمهـور رئيس دګوند مركزي شوري اوملي جرګـي ته مسئول دي .

## پنځه نوى يمه ماده

دجمهوري رياست مرستيال يا مرستيالانو اودحكومت دهريوغړي په هكله دګناه تړلـو تور دملي جرګي دغړوددريمي برخي په‌غوښتنه كيدى شي .

ملي جرګه د.غوښتنه دخپلو دووبرخو غړو درايو په اكثريت تصويبوي .

تورن غړي دملي جرګي دپريكړي وروسته سملاسي دخپلي وظيفي څخه لرى كيږي .

دتورن غړي محاكمه ديوى خاصي محكمي په وړاندى دايريږي .

دمحكمي جوړښت اودكار لاري چاري يـي اوهمدارنګه دحكومت دتورنو غړو سزاګـاني په ځانګړي ډول ديوځاص قانون له پلــوه څرګند يږي .

## نهم فصل :

## قضـــاء .

## شپږ نوى يمه ماده

قضايه قوه ددولت يوركن دى چه ديوى ستري محكمي اونورو محكمو څخه جوړيـږي چه شميريي په قانون‌كي ښودل كيږي .

ددى قوانينولوى هدف دقضايي موافقـو يووالى دمحاكمو دتشكيلاتو واك اود محاكمي دتګ لارى تنظيمول دي .

## اوه نوى يمه ماده

دقضاء واك اواختيار دټولو هغو دعووغوراو پريكړي ته غځيږي چه‌په هغوكي حقيقي يـا حكمي اشخاص كه څه هم دولت وى دمدعي يامدعى عليه حيثيت لري اودقضاء په‌وړاندى دقانون دحكمونو سره سم دايري شي .

## اته نوى يمه ماده

پرته دجنګ له حالته بل هيڅ يو حالـت نشي‌كولي چه يوه قضيه يايوه ساحه ددولت

دقضایي قوي دواك اواختیار له دایرې څخه په هغه ډول چه پدې فصل‌کښې یې بریدونه ښودل شویدي وباسي اوبل مقام ته یې وسپاري .

داحکم دعسکري محکمو دجوړیدو مخه نه نیسي خودامحکمې به یوازې دهغو جرمونو په ساحه‌کښې وي چه دافغانستان دوسله‌والو قواووپورې اړه لري .

دعسکري محکمو تشکیل واك اواختیار په قانون کښې ښودل کیږي .

## نه نوی یمه ماده

محکمې چه په‌کوموپیښوباندې غور کوي په هغوی کښې ددې اساسي قانون اوددولت دنوروقوانینو حکمونو پرځای کوي .

که دغورلاندې پیښو څخه دیوې پیښې په باب په اساسي قانون اوددولت په قوانینو کښې کوم حکم نه‌وي نو محکمې داسلامي شریعت دحنفي مذهب دکلي اساسونوله مخه په هغه چوکاټ کښې دننه چه دی اساسي قانون ښودلی دی پدې حالاتوکښې یوداسې حکم راباسي چه ددوی په نظرکښې څومره چه ممکنه وي عدالت ترټولوپه ښه توګه ترسره کړي .

## سلمه ماده

قاضیان دقاضي القضات په غوښتنه دجمهور رئیس په مننه ټاکل کیږي .

## یو سلو یومه ماده

دقاضیانو عزل دقاضي دجرم دکولوپه‌حالت کښې دستري محکمې په غوښتنه اود جمهور رئیس په مننه صورت نیسي .

که چیرې په قاضي باندې دجرم کولوتور ولګول شي ستره محکمه دقانون دحکمونو سره سم دده په حال غورکوي اود تورن‌ددفاع داوریدوڅخه وروسته که ستره محکمه په قاضي باندې لګول شوی توروارد وګڼي‌دتورن قاضي دعزل پیشنهاد جمهور رئیس ته‌وړاندې کوي هرکله چه دجمهور رئیس له خوا دغه غوښتنه ومنل شي قاضي د وظیفې څخه معزولیږي اودقانون دحکمونو سره سم په سزارسیږي .

## یو سلو دویمه ماده

دقاضیانوترفیع، بدلول، تقاعد، استعفاء او دهغوی مؤاخذه دقانون دحکمونو سره سم دستري محکمې له پلوه سرته رسیږي .

## یو سلو دریمه ماده

دقاضیانو دپاره دقانون له پلوه مناسب معاش ټاکل کیږي .

## یو سلو څلورمه ماده

پرته له هغو حالاتو چه ددې اساسي‌قانون په شپږدیرشمه ماده‌کښې څرګند شوي دي دستري محکمې غړي اوقاضي القضات دخپلو وظیفو چلولو په موده کښې دګټې وټې هیڅ ډول معامله ددولت سره نشي کولی .

## یو سلو پنځمه ماده

دافغانستان په محکمو کښې محاکمه په ښکاره ډول کیږي اودقانون دحکمونو سره‌سم هرڅوك دورتلو حق لري .

دمحکمو دټولو قطعي پریکړو عملي کول واجب دي خودچادمرګ دحکم په حالت کښې دآخرني محکمې دپریکړې دعملي کولود پاره

دجمهوررئیس بشکلل شرط دی .

محکمه کولی‌شی چه‌په هغه گوښو حالاتـو کښی چه قانون څرګندکړی دی پټه غونډه وکړی ولی دحکم اورول به هرومروښکاره‌وی.

محکمی مکلفی دی چه دورکړی حکم سره یوځای په څپلو پریکړو کښی دحکم سببونه څرګند کړی .

## یو سلو شپږمه ماده

دجرمونو کشف دپولیسوله‌خوااو دجرمونو تحقیق تعقیب اوددعوی سورول دقانون‌دحکمونو سره سم دڅارنوال له خواچه ددولت پـه اجرائیه قوی پوری تړلی دی کیږی .

دهغو جرمونو کشف اوتحقیق چه‌دافغانستان په وسله والوقواووپوری اړه لری دخـاص قانون له خواتنظیمیږی .

## یو سلو اوومه ماده

ستره محکمه (۹) غړی لری چه دجمهـور رئیس له خواټاکل کیږی .

دستری محکمی غړی بایددالاندی صفتونه ولری .

۱ـ دعمرپنځه دیرش کاله یی پـوره کړی وی .

۲ـ دټاکل‌کیدو دنیټی څخه مخکی یی باید لږترلږه لس کاله پخوا دافغانستان ددولـت تابعیت حاصل کړی وی .

۳ـ دمحکمی له خوادسیاسی حقونو څخـه په محرومی محکوم شوی نه وی .

٤ـ دحقوقو په علم ، ملی هـدفـونو اود افغانستان په حقوقی نظام باندی په پـوره اندازه پوه وی .

جمهور رئیس دستری محکمی دغړوله‌جملی څخه یوغړی چه عمریی له څلویښتو کـالو څخه‌کم نه وی دقاضی القضات په‌توګه ټاکی.

جمهور رئیس کولای شی چه د ستـری محکمی په غړواودقاضی القضات په مقـرری باندی دټاکنی له وخته هرپنځه کاله‌وروسته نوی کتنه وکړی .

ددی حکم اوددی اساسی قانون د (۱۱۱) مادی دحکم څخه پرته په‌بل هیڅ ډول‌دستری محکمی غړی اوقاضی القضات دخپلو وظیفـو څخه لری کیدلی نشی .

## یو سلو اتمه ماده

دستر محکمی غړی اوقاضی القضات پـه وظیفودپوختیدو څخه مخکی دجمهور رئیس په وړاندی داسی لوړه په ځای کوی .

داوی خدای (جل جلاله) په نامه لوړه‌کوم چه دقضاوظیفه په پوره امانت او شرافـت سره په ځای‌کوم حق اوعدالت به داسـلام دسپیڅلی دین داساساتو داساسی قانون د نورو حکمونو ارزښتونو او د افغـانستان دجمهوری دولت دقوانینو په نظرکښی نیولو سره سم تامینوم اوپه حپلوټولواجراآتوکښی به خدای (جل جلاله) حاضر ګنم اودعدالت په ګټه به دهیواد اودخلکو دحقونو ساتنـه کوم

## یو سلو نهمه ماده

دهغه حالت نه پرته چه ددی اساسی‌قانون په یوسلویوولسمه ماده کښی ښودل شویدی دستری محکمی غړی اوقاضی القضات په‌قانونی ډول دخدمت ددوری له‌ختمیدونه وروسته‌دپاتی

عمرژوله موده دخدمت ددوری له ټولو مالـی بنیگړونه گټه اخلی .

دخدمت ددوری له ختمیدونه وروسته‌دستری محکمی غړی اوقاضی القضات دملی جرگـــی اوحکومت غړیتوب اوددولت ماموریت نشـــی کولای .

## یو سلو لسمه ماده

دستری محکمی هرغړی اوقاضی القضـات کولی شی دقانون دحکمونو سره سم دخپلی وظیفی څخه استعفاء وکړی . دستری محکمی دغړواودقاضی القضات استعفاء دجمهور رئیس دمننی له نیټی وروسته نافذیږی .

مستعفی غړی اوقاضی القضات دهغومالـی بنیگړوڅخه چه‌په یوسلونهمه مـاده کښـی راغلی دی استفاده نشی کولای .

ټول هغه قیودچه دیوسلو نهمی مادی په آخری فقری‌کښی راغلی دی په مستعفی غړی اوقاضی القضات باندی تطبیقیږی .

## یو سلو یوو لسمه ماده

که چیری دملی جرگی دریمه برخه غـړی دوظیفی له اجرانه دراپورته شوی جرم پـه توردقاضی القضات یادستری محکمی دیـــوه یاڅوتنوغړو دمحاکمی غوښتنه وکړی او ملی جرگی له دریوبرخو څخه ددوو برخو غـړو درایوپه اکثریت داغوښتنه ومنی نو دتـورن لاس دکاره ایستل کیږی .

ملی جرگه دغړوله منځه یوغړی ددعـوی دسورولو اوداتوغړوڅخه جوړه یـوه دلگـــی دمحاکمی چلولودپاره ټاکی .

دادلگی دملی جرگی درئیس په مشـری دجزایی محکمی دتگ لاری سره سم تـــورن محاکمه کوی اوکه چیری په تورن باندی جرم ثابت شی نودی دوظیفی نه معزولیږی اوسزا ورکوی .

## یو سلو دوو لسمه ماده

ستره محکمه ددی اساسی قانون او نورو قوانینو دحکمونو سره سم دمحکمو اجـراآت تشکیلات اوددولت قضایی چاری سموی .

پرته له هغوموارد و څخه چه پدی اساسی قانون کښی څرگندشوی دی دستری محکمی اداری اوقضایی صلاحیتونه دقانون لـه پلوه ښودل کیږی .

ستره محکمه دمحکمو داداری چارو دسمون دپاره ضروری لاری چاری برابروی .

دقضایی قوی بودجه دقاضی القضات له‌خوا دحکومت په سلاجوړیږی اوددولت دبودجـی دیوی برخی په څیر‌حکومت له خواملی‌جرگی ته وړاندی کیږی .

دقضاء دبودجی دلگولوواک دستری محکمی په لاس کښی دی .

ستره محکمه کولی شی دقضایی چارو د سمون په برخه کښی دقوانینو مسودی جوړی اوددی اساسی قانون ددوه ویشتمی‌مادی‌دحکم سره سم یی ملی جرگی ته وړاندی‌کړی .

## یو سلو دیارلسمه ماده

دقضائی قوی دمامورینو اوټولـــو اداری کارکوونکوپه هکله‌دولت‌دمامورینواوټولواداری کارکوونکو دقوانینو حکمونه نافذدی خوددوی ټاکل، ترفیع، استعفاء منل، موآخذه اوهغوی ته تقاعد ورکول دقانون سره سم دستـــری

سره خدمت کړیدی . دجمهوریت ورځپانــه خپل په زرگونو علاقمندان دورځی په لمړیو وختوکی دورځی له جریاناتو څخه خبروی .

باید وویل شی چه دولت په ۱۳۵۳ کال کی په خارج کی افغانی محصلینو ته خدمت پهمقصدیوه مالی خساره ومنله اوفیصله یی وکړه چه دغومحصلینوته دی جمهو ریـت ورځپانه ولیږله شی . دهمدغی فیصلی پـه اساس په لمړی ورځ کی زرگونی او وروسته دحمل اونقل دمشکلاتوله کبله په ورځ کی له څلورو سوو کتو څخه زیات جمهـوریت، دافغانی سفارت خانوله لاری لیږل شوی او لیږل کیږی .

برسیره پردی په باندنیو هیوادو کـی یوشمیر افغانی محصلینو شخصا پهورځپانه کی دگډون غوښتنه کړیده .

سږکال دجمهوریت دمجلی تیراژ دتیرکال په پرتله تریوی اندازی پوری زیاتشوی اوعلاقمندان یی له مرکزڅخه برسیره پــه ولایاتوکی هم زیات دی. دجمهوریت ورځپانی اختصاصی صفحی چه دقلمی همکارانو پـه همکاری چاپیږی دادی :

د(ښځه اوژوندل) صفحه، دورزش او قانون صفحه، دروغتیاصفحه، دښوونی او روزنـی صفحه، علمی صفحه اوستاسو دجمعی ورځی صفحی هره پنجشنبه نشر اوله ډیرو تـازه مطالبو څخهیی استفاده کیږی . کوښښ کیږی چه ډیرمجرب لیکوالان دی برخی ته جلـب کړی شی ترڅودغه صفحی له پخوانه زیات علمی بڼه غوره اوله اړتیاسره سم خلکو ته وړاندی شی .

په څلورم مخ کی هره ورځ یومطلب لــه خارجی نشراتو ترجمه اووړاندی کیــږی . پنځم مخ هره ورځ یوشمیراختصاصی هنری اوډول ډول خبرونوته بیلیږی . پدغه صورت کی دجمهوریت ورځپانی اودجمهوریت مجلی خپرونی داسی تنظیم شوی ترڅودیوی درندی ورځپانی اومجلی په توگه خپله شایستگـی وساتی اودغه نشراتی رسالت په سیاســی، اقتصادی، فرهنگی، ټولنیز، روغتیایی، حقوقی، علمی اوادبی ساحوکی په یوه مطلوب اوسالم شکل په مخ بوزی .

**دانیس نشراتی مؤسسه :**

دانیس ورځپانی په روان کال کی وکـولی شوچهخپلی خپرونی نورهم ښی اوبه زړهپوری وگرځوی اودهمدغه روش په اســاس یـی دوطنوالوزیاته پاملرنه جلب کړی اود گډون کوونکو شمیر زیات شوی دی . ددی دپاره چه ورځپانی ډول، ډول اوبه زړه پوریمطالب دبیلو، بیلوذوقونو دپاره وړاندی کړی دی، داوونی په زیاترو ورځوکی به لسو مخو نو کی یعنی دنوروورځوپه پرتله دوه مخه زیات چاپیږی.

دپنجشنبی په ورځوچه ورځپانه معمولا په دولسومخونوکی چاپیږی ، پهروان کال کی، کله،کله په څوارلسومخونوکی چاپ شویده. دخپرونوپه برخهکی برسیره پردی چه موقع ورکړشوی دخلکو غوښتنی اوسالمی نظریی نشرشی،ددولتدپلانونو، پرمختگونواوبدلونونو دمعرفی په برخهکی لوستونکوته دارزښتناکه

اوکافي مطالب وړاندې شوي اودورځپاڼـــــې دخپرونو زياته ساحه يې نيولې ده .

ورځپاڼې، دخپنودايرو اومؤسسو له پلوه دخلکودمشکلاتوليرې کولو په لارکي په روان کال کې دمربوطو دايرودرئيسانو او نمايندګـــانو په ګډون سمپوزيمونه داير، اوټولي پوښتني اوځوابونه يې نشرکړې چه دارزښتناکو مطالبو په توګه دپوښتونکوله خوا منل شوي، دهغوی قناعت يې حاصل کړی اوانعکاسات يې مطلوب اودرضايت وړو .

دنيشخند او نوشخند ستون چه انتقـادي مطالب لري، په روان کال کي دورځپاڼې پـــه مخونوکي زيات شوېدی .

**دژوندون مجله :**

دغې مجلې، ديوې اوونيزې مجلې په توګه ذوقي، معلوماتي اوتحقيقاتي اونور موضوعات چاپ اودعلاقمندانو داستفادې دپاره وړانـدې کړيدي . په تيرکال کي هڅه وشوه چه دپوهانو اومحققينو نظريې ملي اواجتماعي مسايلو ته جلب اوېدې باره کي په مجله کي ځيني صفحې نشرشي . دغه رازکوښښ وشوچه دليکوالانو په همکارۍ په زړه پوري مطالب برابر اود اوستونکو له ذوق اوزمونږ دټولنې له فرهنګي اړتياسره سم چاپ شي .

**دکمکيانو انيس :**

دکمکيانو انيس مجلې تيرکال برسيره پردې چه په ښـل ګونو داستانونه اوپه زړه پوري تفريحي مطالب اوموضوعات نشر کړې، داسې مطالب يې هم نشرکړل چه هغوته دنجونواو هلکانو دپاره دمړستيال درس نوم ورکولای شو.

لکه چه (دمعرفت ډيوه) په ستون کي ددرسي مضامينو دتعريفاتو لړۍ دمعـرفـت ډيـــوې دابتکاري جدولونو چاپيدل، دليك او لوست دزده کړې اودعلمي مشغوليتونو دپاره په مجله کي دکانکوردصفحې پرانيستل کيدل اوله علمي تجربوسره تفريحي صفحه په همدې جمله کي راځي. دممتازو اوصحتمندو شاګردانودعکسونو خپريدل اوله ممتازو اوهنرمندو نجـونـو او هلکانو سره مصاحبو دلوستوونکو زياته توجه اوپاملرنه جلب کړيده .

دکمکيانو انيس لاهم پدې هڅه کي دی چه دکوچنيانو ددغې يوانځينۍ مجلې متن نور هم په زړه پوري وګرځوي اودنوی کال دپاره يې نوي ابتکارونه اوطرحې په نظرکي نيولي دي.

**دهيواد نشراتي مؤسسه :**

دهيواد ورځپاڼه دخپلې نشراتي پاليسـۍ له مخې، دداخلي اوخارجي پيښو، د هيـواد دفرهنګ اوثقافت اوپه عمومي توګه دافغاني ټولنې دملي ژوندانه دبيلا بيلو اړخـــونـو دروښانولوپه برخه کي خپرونې کوي .

دغه ورځپاڼه چه په پښتوژبه په اتومخونو کي خپريږي دکورنيو دتربيوي، اجتماعـي او اقتصادي مسايلو دحل کولو دپاره په اوونۍ کي يوځلې دهرې يکشنبې په ورځ دکور او ټولنې په نامه يوه اختصاصي صفحه هـــم خپروي، سربيره پردې دغه ورځپاڼه دخپـل تيرنشراتي کال په موده کي دهيواد دتاريخي آثارواولرغونو ابداتو دژوندي کولواو اهميت په باب يولړمطالب هم خپاره کړي دي .

دهيواد ورځپاڼه په هيوادکي دهبری ا و

ورزشي خپرواوانکشافونو مربوط معلومات اواطلاعات هم خپروي، ددې دپاره چه دهیواد داطلاعاتي اوکلتوري پالیسي له مخې، دلیکوالو دآثارودچاپولو په برخه کې ددغې ورځپاڼې نشراتي ونډه ترسره شوي وي ، دروان کال له پیل کیدوڅخه دمخه د۱۳۵٦ کال په اوږدو کې د (سپوږمۍ اوډمکې په گرد چاپیره راگرځیدل) ترعنوانونو لاندې دوه کتابونه چاپ شویدي اوددغې ورځپاڼې دعادي خپرونو په څنگ کې به ددغه ډول نورو کتابونو او قلمي آثاروچاپولو ته هم اقدام وشي .

د۱۳۵٦ کال دشروع کیدلوڅخه راپه دیخوا په پرله پسې توگه دگران هیواد دانکشافي پروژو اوددولتي مؤسسیو اوصنعتي فابریکو دفعالیتونو په باب دهیوادد ورځپاڼي دخبریالانو دخانگې په واسطه یولړمرکې اوراپورتاژونه خپاره شوي دي چه البته په راتلونکې وخت کې بههم دورځپاڼې دمضمونونو او ثقافتي چاروداډول دپه نظرکې نیولوسره داختصاصي اوعادي مرکو اوراپورتاژونو دخپرولو سلسله جاري وساتله شي .

**کابل ټايمز :**

دکابل ټايمز ورځپاڼې دجمعي مفاهمې دیوې عمده وسیلې په توگه په انگلیسي ژبه خپلوخپرونوته دوام ورکړی . دافغانستان او نړۍ انکشافات او جریانات یې په بیلو،بیلو برخوکې منعکس کړي دي .

دافغانستان پیژندنې لوی مدیریت چه ددغه ریاست په چوکاټ کې فعالیت کوی هڅه کړې ده چه دخپلو امکاناتو په حدودکې دافغانستان دجمهوریت فرهنگي، اقتصادي او اجتماعي گوټونه معرفي کړي . په دې برخه کې ددغه لوی مدیریت لاندینې خپرونې یادولای شو:

الف – دآریانا دري میاشتنۍ مجله (دافغانستان جمهوریت) په منظم ډول په انگلیسي ژبه چاپ شوي ده .

ب – دافغانستان جمهوریت کالنۍ چه د۱۳۵۵ کال دسلواغې په میاشت کې په (۵۳۵) مخونوکې له چاپ څخه وتلی .

ج – هغه غیرموقوته مصوري نشریې چه ددغه مدیریت له خوا په ۵۵ کال کې چاپ شوي، دادي :

دافغانستان لاسي صنایع، په افغانستان کې ماشیني صنایع، دافغانستان محلي جامې ، دافغانستان معارف، دافغانستان دجمهوریت رنگه پامفلت او دافغانستان په باب دسیدجمال الدین په سیمینارکې دگډون کوونکو پوهانو نظر .

د – دافغانستان پیژندنې لوی مدیریت په ۵۵ کال کې، دملي بیرغ، ملي سرود، عکسونو، کتابونو اودهیواد دپیژندنې دنورو موادولیږلو په باب دمختلفوهیوادونو دعلاقمندانو غوښتنې پرځای کړي دي .

هـ – سربیره په دې دکابل ټايمز نشراتي مؤسسې دافغانستان پیژندنې پر مختلفوبرخو کې له خارجي محققینواومتتبعینو سره همکاري کړې اولازم معلومات یې هغوی ته ورکړي دي. چه په دې لړکې لاندینې نشریې په وړیا توگه توزیع شوي دي :

۱ــ دښاغلي جمهوررئيس دويناو کلکسيون ۲۴۱ ټوکه .

۲ــ دآريانا افغانستان ريپبلك مختلفې‌گڼې ۲۴۷۷ ټوکه .

۳ــ د ۱۹۷٤ــ۷٦ــ۱۹۷۷ کلونو انګليسي کالنۍ ٤٤٤ ټوکه .

٤ــ جمهوريت تـر عنوان لاندې رسالـه ٦٥۷ ټوکه .

۵ــ مختلف پامفلټونه ۲٦۹۰ نسخې .

٦ــ دهرات د ښار پيژندنـې نشريـه ۳۷۵ نسخې .

۷ــ مختلف سلايدونه ۳۵ فريم .

دغه راز په‌دې لړکې دتوزيع دمديريـت له خوا يوشمير نشريې لکه دجمهوري بيرغ ملي سرودنوټيشن ، پوسترونه، دافغانستان نقشه، دکابل ښارنقشه اوپست کارتونه هم بيلو، بيلومنابعوته سپارل شوي دي .

همدارنګه يوزيات شمير نشريې دخپرونو رياست ته وزکړل شوي چه‌تل يې علمي‌او بين‌المللي‌شخصيتونو'وکتابتونونوته ورکړيدي.

## دکهول مجله :

دکهول مجله لکه چه له نامه څخه يـې پوهيدل کيږي اويوه زړه لرغوني آريايـي رينبه لري، دکورني اوښځي معنی ورکوي .

دغه مجله دافغانستان د جمهوري دولـت دکلتوري پاليسي په اساس منځ ته راغلـی اوهدف يې دافغانستان دښځو تنوير اومعاصر ژونداوپه ملي او اجتماعي چاروکې برخـې آخيستودپاره دهغوی چمتوکول دي .

دکهول مجلې دتاسيس مقدمات د۱۳۵۵کال دوږي په مياشت‌کې برابراو لومړنی ګڼه يې په دوه سوه مخونوکې د۱۳۵۵ کال دمرغومې په مياشت‌کې په ښکلي قطع اوصحافت سره له چاپ څخه ووتله . دکهول مجله چه‌دهيواد دمطبوعاتو په افق‌کې نوی ختلي، وياړی چه لومړی ګڼه يې دجمهوريت ددوري په دريم کال‌کې په لومړی لويه جرګـه‌کې دملـت نماينده‌ګانوته توزيع شوه .

دکهول مجله علمي، تحقيقي ، اخلاقـي، اجتماعي، تربيوي اوذوقي مضامين او لنـډ داستانونه چاپوي . تراوسه پوري ددغي‌مجلې دري ګڼې طبع اودعلاقمندانو داستفادې دپاره وړاندې شوي دي .

دکهول مجله زيارباسي ترڅودهيواد اونړی دمشهورو ښځو څلاندې څېرې پخپلو صفحو کې نشرکړي. که څه‌هم دغې مجلې نوی په فعاليت پيل‌کړی، مګرپه‌دې برياليې‌شوی‌ده چې دعلاقمندانوپاملرنه ځان ته جلب کړي .

## دولاياتو داطلاعاتو اوکلتورآمريتونه :

د'طلاعاتي اوکلتوري فعاليتونو پر مخ‌بيولو دپاره د'طلاعاتو اوکلتور آمريتونو په مربوطو ولاياتو کې خپل فعاليت ته دوام ورکـړی اوخپل اجراآت يې دجمهوري انقلاب داهدافو اوکلتوري پاليسي په رڼاکې تنظيم اوپراخ کړيدي. البته‌دورځپاڼوخپرولو ترڅنګه‌داطلاعاتو اوکلتور آمريتونو دخپلو مربوطو ځا نګـو پواسطه نورمطبوعاتي خدمتونه هم تر سـره کړيدي اوهڅه يې کړی ده چه ددغوخدماتو ساحه پراخه شي .

لاندینی ورځپاڼې اومجلې دولایاتوداطلاعاتو اوکلتور دآمریتونو لهخوا خپریږي :

۱ـ داتفاق اسلام ورځپاڼه په پښتو اودري ژبه په ځلورومخونوکې دهرات داطلاعاتو او کلتور آمریت .

۲ـ دبیداورورځپاڼه په پښتواودري ژبــو په ځلورومخونوکې دبلخ داطلاعاتو او کلتور آمریت .

۳ـ دننګرهارورځپاڼه په پښتوژبه پهځلورو مخونوکې دننګرهار داطلاعاتواوکلتورآمریت .

٤ـ دطلوع افغان ورځپاڼه په پښتو ژبه په ځلورومخونوکې دکندهارداطلاعاتو اوکلتور آمریت .

٥ـ دوړانګې ورځپاڼه په پښتوژبه پهځلورو مخونوکې دپکتیا داطلاعاتواوکلتور آمریت .

٦ـ داتحادورځپاڼه په پښتواودري ژبــو په ځلورومخونوکې دبغلان داطلاعاتو او کلتور آمریت .

۷ـ دسنائي ورځپاڼه په پښتواودري ژبـو په ځلورومخونوکې دغزني داطلاعاتو او کلتور آمریت .

۸ـ دپروان ورځپاڼه په پښتواودري ژبـو په ځلورومخونوکې دپروان داطلاعاتو اوکلتور آمریت .

۹ـ دوېوی ورځپاڼه په پښتو اودري ژبو په ځلورمخونوکې دجوزجان داطلاعاتواوکلتور آمریت .

۱۰ـ دفاریاب ورځپاڼه په پښتواودري ژبو په ځلورومخونوکې دفاریاب داطلاعاتو اوکلتور آمریت .

۱۱ـ دبدخشان ورځپاڼه په پښتواودري ژبو په ځلورومخونوکې دبدخشان داطلاعاتواوکلتور آمریت .

۱۲ـ دهلمند جریده په پښتوژبه پهځلورو مخونوکې دهلمند داطلاعاتو اوکلتورآمریت . په هفتهکې دوه ځلې .

۱۳ـ دکندز جریده په پښتو اودري ژبـو په ځلورومخونوکې دکندز داطلاعاتو او کلتور آمریت په اوونۍ دوه ځلې .

١٤ـ دسیستان جریده په پښتوژبه پــه ځلورومخونوکې دفراه داطلاعاتواوکلتور آمریت په اوونۍ کې دوه ځلې .

١٥ـ دهرات مجله په پښتو اودري ژبو دهرات په ولایتکې دهرات میاشتنۍ .

١٦ـ دکندهارمجله په پښتو ژبه دکندهار په ولایتکې دکندهار میاشتنۍ .

١٧ـ دننګرهارمجله په پښتوژبه دننګرهار په ولایت کې دننګرهار میاشتنۍ .

١٨ـ دپکتیامجله په پښتوژبه دپکتیا پــه ولایتکې دپکتیا میاشتنۍ .

**رادیو افغانستان :**

رادیو افغانستان دتیرکال په موده کـــې دجمهوري دولت دکلتوري پالیسۍ پهپیروي اوداطلاعاتو اوکلتور د وزارت په لارښوونــه هڅهکړې ده چه له ملي روحیې سره سم په منظم ډول خپلو خپرونو ته دخلکو داذهانــو دروښانتیا اوخبرتیا په لارکې دوام ورکــړي اوعغه نورهم پراخه کړي اوخپل نشراتــــي خدمات، دبیلو، بیلو پروګرامونو په خپرولو سره چه (٧٤) تربیوي، تنویري، اطلاعاتـي

اوهنری پروگرامونو ته رسیږی دورځنیو او اوونیزو پروگرامونو په صورت په خارج کی وطنوالواو علاقمندانوته وړاندی کوی . پدی ترتیب دکورنیو خپرونو دساعتونو شمیر په اوونی کی (۱۵۱) ساعتو او ۳۰ دقیقو اود باندنیو خپرونو دساعتونو شمیر (۳۱) ساعته او۳۰ دقیقوته رسیږی .

**الف ـ دنشراتو آمریت :**

درادیو افغانستان کورنی خپرونی دخلورو مهمو اداروله لاری چه روزنی، اطلاعاتو، هنر اوادبیاتو اوموسیقی اداری دی دافغانی ټولنی لهملی، ټولنیزاوسیاسی اړتیاوسره دډول،ډول پروگرامونو په چوکاټ کی‌براېراو نشرته‌سپارل کیږی چه البته دهغودځارنی او بررسی‌دپاره دپروگرامونو ځانګه اودثبت اونشر دپاره‌یی تخنیکی آمریت مکلفیت لری .

**۱ـ داطلاعاتو اداری :**

دغه اداره چه د اطلاعاتی اواخباری موضوعاتو دخپرولو مسئوله ده دخبرونو په سرویس کی دکورنی اوبین المللی پښتـو مربوط خبرونه خپروی، بر سیره پسر دی دراپورتاژونو برابرول، دکورنی جـرایـدو دتبصرو اوورځی دپیښو دتفسیرونو خپرول هم دهمدغی اداری وظیفه ده .

دجمهوری مترقی نظام له اهدافوڅخه دخلکو دخپرولو اوپرمختیا اوپراختیا دلارو دعلمی تحلیل اوڅیړنی دپاره هره اوونی دنیم‌ساعت دپاره (دجمهوریت په پلوشوکی) پروگـرام اودغه رازداقتصادی موضوع ګانوتوضیح ا و تفهیم دپاره هره اوونی دپنځلسو دقیقودپاره اقتصادی پروگرام برابر اوخپروی .

دتیرکال په موده‌کی دسهار ، غرمی، او ماښام دخپرونو له خپریدلو څخه سر بیره (۵۲) (دجمهوریت په پلوشوکی) پروگرام ، (۳٦٥) پښتو اودری تفسیر او ۵۲ اقتصادی پروگرامونه داطلاعاتو له اداری څخه نشرشوی دی .

داوونی دمهمو سیاسی پیښو تفسیر چه په تیروکلونوکی دجمعی په ورځو دپنځودقیقو دپاره خپریده دروان‌کال له پیل څخه د(نړی، سیاست اوپیښی) ترعنوان لاندی په (۱۵) دقیقو کی ځای‌کړی شوی چه داوونی دنورو مهمو پیښو په څنګ کی سیاسی اصطلاحات اومفاهیم په‌داسی شکل سره چه هر څوک پری وپوهیږی توضیح کیږی .

دغه رازدتیرکال په اوږدوکی داخباری‌مطالبو اوسیاسی تفسیرونو برابرولو دپاره د یـوه آرشیف اساس کیښودل شو، په‌کابل کـی دملګروملتو داطلاعاتو دداری اوونیـز (۱۵) دقیقه ریپرپروگرام اوددوستو هیوادونو دملی اوخاصو ورځو پروگرامونه هم‌داطلاعاتو دداری له خوا‌ثبت اوخپریږی .

**۲ـ دروزنی اداره :**

دغه اداره دښووانی، روزنی، ټـولنیـز او معلوماتی **مطالبو او پروګرامونو** بـرابرول اوخپرولووظیفه په غاړه لری اودټول هیـواد خلکوته دتنویری او ارشادی اړتیاوله پلـوه درادیو افغانستان دډیرو مهمو ارګانونه‌څخه شمیرل کیږی .

دغه اداری دخپل تنویری او آموزشی رسالت له مخی دهر پروگرام دعلاقمندو آوزیدونکو لـه غوښتنی اودهغوی دپوهی اوژوندانه له سویې سره سم دډول، ډول اومختلفو تـــربیتی ، آموزشی، ټولنیزاواجتماعی پروګرامونوبرابرولو اوخپرولوسره چه دننی ژوند اړتیاووته ځواب ورکوی اودجمهوری نظام له مترقی اهدافوسره سم دذهنی اوفکری ودی اوانکشاف ضمانت کوی، هره ورځ داوریدونکوپه خدمت کی ده .

دنوموړو اهدافوپه نظرکی نیولوسره دروزنی اداری دتیر کال په موده کی هم دتربیتی او ارشادی پالیسی په چوکاټ کی دهیواددخلکو دملی، ټولنیز، روغتیایی اوعرفانی اړتیاوسره سم دلاندنیو پروګرامونوپه وړاندی کولو سره دګرانو اوریدونکو دذهنی او فکری ودی او انکشاف دپاره هڅه کړی ده :

د(کورنی ژوند) د (۳۱۷) پروګرامونو په خپرولو سره چه تربیتی، ټولنیز، روغتیایـی موضوعات احتوا کوی، دکورنیو داذهـانـــو دروښانه کولوپه مقصد ددوی په خدمت کی ده

او (دځوانانونړۍ) دپروګرام له لاری یی چه په تیرکال کی (۵۱) پروګرام وړاندی شوی دهیوادځوان نسل ته یی په بیلـو، بیلـــو اختصاصی موضوعګانوکی معلومات ورکــړی اوهغوی یی دخپلی ... اوراتلونکی ملـــی اوټولنیز مسئولیتونوته متوجه کړی دی .

په ټولنیز چاروکی دښځو دتشویق اوبرخی آخیستلو اودجمهوری اهدافو په رڼا کـــی خپلو حقوقو اوملی ټولنیز وجـایبو تـه ددوی ذپاملرنی دپاره (دښځو په ژوندکی نوی رڼا) د(۵۲) پروګرامونوپه خپریدلو سره دتیرکال په موده کی په زړه پوری خپرونی شوی دی.

دغه رازپه تیرکال دکلیوالو اوبزګـرانـو پروګرام دانقلاب دهدفونو په رڼاکی لـــه ارزښتناکو محتویاتو اوپه زړه پوری پیښو اوګټورو مطالبو سره تنظیم اووړانـدی او د هیواد داقتصادی پرمختیااو دکرنی دچـــارو دانکشاف په ساحوکی دجمهوری دولـت لـه انکشافی اواصلاحی پروژوځخه دبزګـــرانـو دزیاتی خبرتیا دپاره معلومات ورکړل شول چه په دی لړی کی تیرکـال ټولـه (۳٦٥) پروګرامونه نشر شوی دی .

دکوچنیانو اختصاصی پروګرام په اوونی کی دوه ځلی خپریږی اودهغه مقصددکوچنیانو دذهن وده اوله ټولنیز، تاریخی، تربیتی او معلوماتی مسایلو اودهیواد له فرهنګی ا و کلتوری افتخاراتو ځخه ددوی خبرتیا ده پـه تیرکال کی (۱۰٤) پرو ګرامونه د هیـــــواد دکوچنیانو دپاره وړاندی شوی دی .

برسیره پردی لنډداستانونه پـه (۳٦٥) پروګرامونوکی دکوچنیانو دمشغولا او دفکری اوذهنی ودی دپاره نشر شوی دی .

ذهنی مسابقه چه یوټولنیز پروګرام او د ذهنی اومعلوماتی انکشاف دپاره یوه ښــه وسیله بلله کیږی ، درادیوله استدیوګـانو ځخه دباندی دایرشوی په خاصو وختـونـو، داخترپه ورځواو فوق العاده پروګرامونو کـی نشرشوی چه په تیرکال کی دنشـــرشـوو

پروگرامونو شمیر (۵۲) ته رسیدلی دی .

د (مونږ اواوریدونکی) پروگرام دهیواد داوریدونکو ټولنیز اومعلوماتی ارزښتناکو پوښتنوته ځوابونه ورکوی چه په ۱۳۵۵کال کی (۵۰) پروگرام نشر شوی دی .

**دسازونو اووازونو پروگرام :**

دغه پروگرام دروزنی اداری یو بل معلوماتی پروگرام دی چه بګړ، ځلبونکی اوداوریدونکو موضوعات اومطالب دنړی لههر ګوټ څخه دعلمی معلوماتی اوتازګی لهحیثه خپروی .

ددغه پروګرام مطالب عموما دساینس او تکنالوژی نوی پدیدی ، جغرافیایی اولرغون پیژندنی اکتشافات اودورځنی ژوند په باب دنړی په زړه پوری کوچنی پیښنی‌تشکیلوی راغونډکړل شوی موضوعات، دسازونو او رازونو دپروګرام ددوه ساعته خپرونوپه ترڅ کی دخلکوله له خوښو کړوشوو سندروسره یوځای تنظیم اوخپریږی .

ددغه پروگرام دډول ، ډول مطالبوپه جمله کی، ځینی برخی داوریدونکو لیږل شوو مطالبو اوله کلکسیونرانو سره مصاحبو ته بیلی شوی ، چه دغه‌کار پروگرام نور هم په زړه پوری ګرځولی دی .

**ارمغان سحر :**

تربیوی اوتلقینی پروګرام دی چه خپل مطالب یی په پراخه پیمانه دافغانی ټولنی اوسنیواړتیاوته پیل کړی دی . دغه پروګرام درخصتی له ورځوڅخه په پرته په ۳۱۲ پروگرامونوکی نشر شو .

موعظی اودینی مضامین اوویناوی زیاتره دتبلیغ له نظرنه زموږدخلکو ددنیو ملی او ټولنیزاړتیاودمحور له مخی عیار شوی دی اوارزښتناکه اوګټور تکی یی دنظام داهدافو اودینی ارزښتونوپه رڼاکی دیووالی دټینګښت اودټولنیز مسئولیتونو داحساسولو دپاره خلکوته وړاندی شول.

دتیرکال په اوږدوکی دخپرونو شمیر یی په لاندی ډول دی :

دقرآن کریم تلاوت، دحق دلاری تسفیر، هره ورځ نیم ساعت ټوله ۳۶۵ پروګرامه ..
سیرت النبی (ص)، دتعطیل له ورځو څخه په پرته (۳۱۱) پروگرامه .

(مردان حق) دجمعی په‌ورځو (۵۲) پروګرامه.

موعظی دجمعی په‌شپو اوورځو کی (۱۰٤) پروګرامه .

دروژی دمیاشتی، مولود شریف، اخترونو، محرم الحرام خاص پروګرامونه (٤۰) پروګرامه.

دروغتیادساتنی اوله ناروغیوڅخه دمخنیوی دساتنی اودروغتیا اوځاپیریال ، کورنی او فردی حفظ الصحی ته دعامه خلکو دلارښوونی دپاره (درادیو طبیب اوتاسی او ستاسو روغتیا) پروګرام دکمیت اوکیفیت له نقطه نظر نه پراخ شوی چه‌له هغی‌نه (۵۲) پروګرامه په تیرکال کی اوریدونکوته وړاندی شول .

داختصاصی پروګرامونوپه محتویاتو کی هم چی له نوروڅخه درادیو افغانستان په همکاری خپریږی لکه سره میاشت دپوهنی وزارت اوپولیس دټولنی خدمتګار پولیس ګټور بدلونونه راغلی‌دی چه خپور شوو‌پروګرامونو

شمیریی په تیرکال‌کی په ترتیب سره ۲۶،۲۶ او ۵۲ پروګرامه دی

څلورویشت پروګرامه ( دنړی مشاهیر) ترعنوان لاندی تیرکال نشر شول ، نوموړی پروګرام زیاتره دهیواد دمشاهیرو اوپوهانو پیژندنی ته وقف شو .

(دورزش نړی) پروګرام چه دهیواد او نړی په زړه پوری سپورتی خبرونه منعکس‌کوی، دنړی په ورزشی خپرونه سربیره په تیره بیادملی سپورتونو په باره کی مطالب او په زړه پوری اطلاعات وړاندی‌کړی‌چه‌دپروګرامونو شمیریی په تیرکال کی ټوله (۵۲)ته‌رسیدلی دی .

د ساینس پروګرام چه هره اوونی دپنځلسو دقیقو دپاره (دکړدی نه ترسپوږمی پوری) ترعنوان لاندی خپرېږی د ساینس اوتکنالوژی له تازه پدیدوڅخه بحث کوی. تیرکال (۵۲) پروګرامه یی وړاندی شویدی.

**رادیو ستاسوپه خدمت کی :**

تیرکال داساسی قانون په نافذیدو سره زمونږګران هیواد دوږو لویو تحولاتو په مسیرکی واقع شواودارشادی منشولیت له لحاظ یی دغه ضرورت پیدا کړ، څرنګه چه په‌دی مرحله‌کی دبل هروخت نه زیات‌جمهوری نیکمرغه نظام دهیواد دآبادی اوپر مختک دپاره دټولو وطنوالواومؤسسو دهمکاری او ګډون غوښتنه کوی او باید خلك له پروژو اودمسئولو څانګو له فعالیتونو او مشکلاتو څخه خبروی، له دی‌کبله دروزنی ادارمؤظفه شوه چه یونوی یوساعته پروګرام (رادیو ستاسوپه خدمت) کی ترعنوان لاندی دنوی کال له پیل څخه پخپلو خپرونو باندی‌زیات کړی، ترڅومؤسسی اودولتی دایری چی دعامه خدمتونو مسئولیت ورپه غاړه دی ، په دغه پروګرام‌کی په وارسره برخه واخلی، اودخپلو وظایفو اوکارونو په باب داوریدونکو پوښتنواو پیشنهادونو ته ځواب ورکړی

**دهنر اوادبیاتو اداره :**

رادیو افغانستان دګران هیواد دفرهنګ اوادبیاتو دساتنی په برخه‌کی دخپل اطلاعاتی اوآموزشی رسالت په څنګ‌کی خپل فرهنګی اوهنری خدمتونه دهنر اوادبیاتو اداری له‌لاری سرته رسوی. دغه اداره چه درادیوافغانستان دادبی، هنری اوتفریحی مطالبو دنشراوخپرولو مسئوله ده دنشراتی پالیسی په نظر کی نیولوسره بیل، بیل پروګرامونه چه هنری محتویات لری تنظیم اوخپروی چه هریو یی په ټاکلی ادبی، فرهنګی ، هنری اوتفریحی ساحوکی‌ګرانو اوریدونکوته خدمت کوی .

درامونه، داستانونه، تمثیلی پارچی اوټول ادبی پروګرامونه‌لکه ترازوی طلایی، دشومه‌دم انګازی، ازهرچمن سمنی، رادیویی مجله، بازار هنر ، رادیویی تیاتر، حرف خوش، موسیقی ونکته ها، اندیشه وزندګی

رادیویی مجله چه دهنر اوادبیاتو داداری سویه لرونکو پروګرامونوڅخه ده، په اوونی کی یوځل داوریدونکو دپاره دعلمی مسائلو په باب ژورمطالب خپروی .

داستانونه ، آموزشی او ادبی مطالب ، دعلمی څیرو پیژندنه اوعلمی مطالب ددغه

پروګرام نشراتی مواد تشکیلوی .

دتیرکال په موده کی نوموړی پروګرام نه یواځی خپله سطح وساتله، بلکه دهغه دعلمی اوفلسفی خیړنوپه برخه‌کی زیاته توجه شویده . چه‌په‌دی ترتیب تیرکال ۵۲ پروګرامه نشر شول .

(اندیشه وزندګی) دغه پروګرام په علمی او تحقیقی مسایلو پوری اړه لری . له‌دغه پروګرام څخه په ۱۳۵۵کال‌کی (۳٦) پروګرامه نشرشول، دغه‌پروګرام ادبی، هنری اوفلسفی مطالب لری اودعرفانی اوتصوفی مسایلو په برخه‌کی دهیواددلویو پوهانو نظریی په یوه خاصه توګه وړاندی کوی .

ددغی اداری دترازوی طلایی پروګرام هم دهمدغو پروګرامونو په جمله کی راځی چه‌په هنری اوادبی آثارو باندی نقد او تبصری کوی. دهغو قهرمانانو څیری ارزیابی کوی چه حماسی یی خلق کړیدی . دغه پروګرام له‌خپل خاص نشراتی طرزسره تیرکال (۵٤) پروګرامه نشرکړی اودخپلواوریدونکوشمیر یی زیات کړی دی

دشومه دمانګازی پروګرام‌دملی اوبین‌المللی‌ادب یوه‌تجلی‌ده اودپروګرام دموسیقی‌برخی‌هغه‌نور هم په‌زړه پوری‌ګرځولی دی . ددغه پروګرام اساس دهیواداولړی دکلاسیك ادب دڅیړو اونموپیژندنه ده، مګرددی ترڅنګه دځوانو استعدادونودسپړلودپاره دمعاصرینو اشعاروته هم په دغه پروګرام‌کی ځای ورکړ شویدی . نوموړی پروګرام په تیرکال کی ۳٦۳ ځلی نشرشو. دهیواد اونړی دادبیاتو دحال شرح اوددوی غوره اشعارنه یواځی په نوموړی پروګرام‌کی بلکه دهنر اوادبیاتو اداری په یوه بل بڼکلی پروګرام یعنی از( هرچمن سمنی) په پروګرام کی هم خپریږی .

اواوس زیاتره دشاعرانو اوددوی داشعارو د پیژندنی ځای د (کاروان ابریشم وګل های سپیدشعر) په نامه یوی بلی برخی نیولی‌دی. چه (کاروان ابریشم) ددری ژبی غوره‌رباعیات احتوا کوی او (ګل های سپید شعر) کوچنی اوبڼکلی طرحی نشروی اوپه پښتو برخی باندی یی په‌دی وروستیو وختونوکی پښتو لنډی زیاتی شوی دی چه له ترجمی سره نشرته سپارل کیږی . په تیرکال کی د(ازهرچمن سمنی) ۵۲ پروګرامه د رادیو افغانستان دګرانو اوریدونکو دپاره نشرشوی.

**دموسیقی ونکته هاپروګرام :**

دغه پروګرام چه هرماښام له ٦ بجو نه دشپی تر۸ بجوپوری درادیو افغانستان له دریم چینل څخه خپریږی، درادیو دذوقی، تعلیمی اوهنری پروګرامونو له جملی څخه‌دی چه ډیراوریدونکی لری، هغه زیات لیکونه چه داوونی په اوږدوکی له اوریدونکو څخه رسیږی، زمونږدغه ادعاثابتوی .

دموسیقی ونکته‌هاپه‌پروګرام‌کی دزده‌کوونکو تکوترڅنګ تازه سرودنه اولنډزوقی اوهنری مطالب، له قوانینو اومقرراتوڅخه درادیو داوریدونکو دزیاتی خبرتیا دپاره ځینی مطالب دډیالوګونو اولنډه تمثیلی پارچو په شکل وړاندی اوپه هغوباندی رڼاچوله کیږی

د تیرکال له وروستیو وختونو څخه ددغــه پروگرام په محتوی کی بدلون راغلی دی، په دی معنی چه دښوونکو تکو دزیاتیدلو ترڅنگ دجمهوری دولت دځینو اصلاحاتو او اقداماتو په باب هم ځینی ټکی څرگندیږی نوله دی کبله یی دډیراوریدونکی پیــدا او هغــوی یی خوښ ساتلی دی .

**راډیویی تیاتر :**

درادیویی تیاتر پروگرام چه دسهار پــه ۱۰ بجواو۵ دقیقودجمعی په‌ورځو ده۵ دقیقو دپاره له رادیو څخه خپریږی درادیو له ښوتمثیلی اوهنری پروگرامونو څخه شمیرل کیــږی . په دغه پروگرام کی تمثیلی پارچی اولنډی کمیدی نمایشنامی شاملی دی . سربیره پردی په‌دغه پروگرام کی له هنرمندانو سره مصاحبه هم کیږی .

رادیو افغانستان دخپلو اوریدونکو دمشغولا اوزیاتی خوښی دپاره دغه پروگرام چه پخوا په پنځلسو ورځوکی یوځل خپریده د۱۳۵۶ کال له پیل څخه په اوونۍ کی یوځل نشــر کړاوپه دغه ترڅ کی تصمیم ونیول شوچــه راډیویی تیاتر دیو شمیر ننداره کوونکو او اوریدونکوپه مخکی درادیوپه ستودیوگانو کی ثبت اوخپورشی . له همدی کبله دروان کال دوری له میاشتی څخه‌هره اوونۍ دغه پروگرام درادیو دننداره کوونکو اواوریدونکو په‌گډون په طبیعی حالت ثبت اودجمعی په ورځــو خپریږی .

د (حرف خوش، آهنگ خوش، خبرخوش) پروگرام چه په وروستیو وختوکی نوم یی په (دانه های قیمتی ازفرهنگ عامیانه) بدل شوی اویو فلکلوریک پروگرام دی .

تیرکال دول، دول فلکلوریکو مطالبوته په دغه پروگرام کی ځای ورکړشو، لکه بابولالی دمینه‌و سندره، دکوچنیانو سندری، دخلکــو ددود اودستور فلکلوریکی کیسی، منظــوم متلونه اوداسی نورچه په تیرو ۱۲ میاشتوکی ۱۲ پروگرامه نشر شول ددغی اداری یوبل پروگرام (دهغتی دزړه خواله) تر عنوان لاندی دی چه تیرکال ۱۲ پروگرامه نشر شول او مطالب یی اصلاحی جنبه لری اودهری جمعی په ورځ دسهارله خواخپریږی . ددغه پروگرام محتویات له ټولنیز چاپیریال څخه الهام اخلی.

دهنر اوادبیاتو اداری دیورتنیو پروگرامونو ترڅنگ تیرکال نور۲٦ فوق العاده پروگرامونه دجمهوری جشن ، اخترونو اوپه نورو ورځو کی نشرکړی دی .

**دموسیقی مدیریت :**

درادیو افغانستان دموسیقی مدیریت لــه معمول سره سم تیرکال هم په دزیوساحوکی فعالیت کړی دی :

**۱ـ درا یوافغانستان‌دموسیقی په‌ستودیوگانو کی دموسیقی دنوو پارچوجوړول :**

پدی برخه کی‌دټولومؤظفو سندرغاړواوهغو سندرـ غاړوسندری چه‌نوی رادیو ته‌مراجعه‌کوی اوښه هنری استعدادلری درادیو افغانستان دآهنگ جوړونکو اومختلفو ارکسترونو په مــرسته دموسیقی دمنتظمینو ترنظرلاندی ثبت شویدی.

لکه چه په تیرکال‌کی دزروپارچوپه خوا وشا کی نوی آهنگونه ثبت او درادیو افغانستان آرشیف ته تحویل شویدی . دغه رازپه‌همدی موده‌کی دمختلفو ارکستروټو په مرسته‌تقریبا سل نوی نغمی ثبت شویدی .

**۲- درادیو افغانستان دموسیقی تر تیب اوتنظیم :**

پدی برخه‌کی د موسیقی پرودیوسرانـو هـره ورځ درادیو افغـانستان دموسیقی‌متعدد پروګرامونه دتیروخت په شان ترتیب کړیدی چه‌که‌درادیوافغانستان دموسیقی‌خپرونی دوخت له نقطه دنظرخخه وسنجول شی، تقریبا زر ساعته وخت نیسی .

**۳- دکنسرتونو ترتیب اواجیا کول :**

دتیرکال په اوږدوکی تقریبا یوسل وپنځوس کنسرتونه دمیلمستیاواو رسمی محافلو پـه مناسبت اجرا شوی دی .

سربیره پردی درادیو افغانستان هنرمندانو په همدغه کال دکنسرتو اجراکولو د پـساره دکلتوری همکاریو په اساس ځینو دوستـو هیوادونوته مسافرت وکړ .

**دپروګرامونو اداره :**

درادیوافغانستان دپروګرامونو انسجام او تنظیم د(پروګرامونو مدیریت) پوری اړه‌لری چه‌هدف یی درادیویی پروګرامونوله مسئولو پرودیسرانوسره مرسته اومشوره اودپروګرام له‌خپریدلو څخه دمخه دتخنیکی او نشراتـی اشتباه ګانو مخنیوی ده ، دغه رازله مربوطو دایرو سره مرسته، دنطاقانو ، ممثلانـو او انونسرانو استخدام، دکارځارنه او تنظیـــم اووددوی دمختلفو اداری راډیویی پروګرامونو دسویی دپراختیا دپاره هڅه اوکوښښ کول هم ددغی اداری دوظایفوڅخه دی

دپروګرامونو اداره وظیفه لری چه دخپرونو په برخه‌کی پرته له خبرونوڅخه، له‌خپریدو دمخه غور اوځیرنه وکړی اودنشـراتـــی او تخنیکی غلطیواو نیمګړتیاوله اصلاح څخـــه وروسته یی چه‌کله‌،کله په پروګرامونو کـی لیدل کیږی، نشرته وسپاری . د اوس دپاره دپروګرامونو دمدیریت دنطاقانو داداری‌زیاتره همکاران اجیرنطاقان، انونسران او یوشمیـر ممثلان تشکیلوی چه دخپلو اصلی وظـایفوپه څنګ‌کی دنطاق، انونسریاممثل په توګه‌وظیفه سرته رسوی . لدی کبله څخـه کیږی چـه دنطاقانوداداری مسلکی کدرونه دایمی غـړی اومستقیم همکاران ونیسی . نولدی‌کبله‌داسی تجویزونیول شوچه درادیودپروګرامونو اداره دی دنطاقانو اوممثلانو له پلـــوه د راډیـو دپورتنی اوراتلونکی ضرورت په نظر کـــی نیولوسره اوهم د تلویزیون ددغه ضـــرورت له‌کبله چه بایدتکره نطاقان، انونســران او ممثلین ولری، یوشمیر هغو کسانو ته چـــه دنطاقی په بیلو، بیلوڅانګو کی په ځان کی استعدادوینی بلنه ورکړه ترڅو ددوی له‌جملی څخه دآزموینی په اساس یوشمیر نوی اود استعداد څښتن همکاران استخـدام کـړی . په همدغه اساس تقریبا اتوسوو تنو مراجعه وکړه چه لدی جملی څخه له مقدماتی‌آزموینی وروسته څلویښت تنه دنطاقی په‌کورس کی شامل اودکورس له ختمیدو وروسته داخرنی

ازموینې په‌نتیجه‌کې یوشمیر یې‌ومنل شول.

دپروګرامونواداره له ۷٤ پروګرامونوڅخه‌چه ترمختلفو عنوانونو لاندې اوله تربیوی، تفریحی اومعلوماتی محتویاتو سره درادیو افغانستان له‌لارې داوونۍ په اوږدوکې خپریږي، ډیرپه زړه پورې اوزده‌کوونکې مطالب یې یوځل بیا د(درلابلای نشرات رادیو) په پروګرام کـې خپروي ترڅودمختلفو پروګرامونوپه زړه‌پورې مطالب یوځل بیاهغو اوریدونکوته واوروي چه اول ځل یې نه دي اوریدلي .

**دپښتونستان اداره :**

دپښتونستان اختصاصي پروګرامونو پـــه پښتواوبلوچي ژبو درادیو افغانستان له‌لارې په تیرکال کې په منظم ډول خپلو خپرونـو ته دوام ورکړی دی. دغه دوه پروګرامونــه هره ورځ دیوه ساعت دپاره خپریږي چـــه دتیرکال په‌موده‌کې هریویې ۳٦۵ پروګرامونو ته رسیدلي دي

**داعلانونه مدیریت :**

دغې اداری ددولتي اعلانونو په خپـرولو سربیره په تیرکال کې دپخواپه شان تجارتی اوفوتي اعلانونه هم نشرکړي دي . درادیو دتیرکال داعلانونوپه عوایدوکې دیوه تیرکال په پرتله څلورملیونه افغانۍ زیاتوالی راغلی دی . درادیو افغانستان دتیرکال داعلانونــو ټول عایدات څوارلس ملیونه افغانۍ دي .

**درادیو افغانستان خارجي نشرات :**

ددغه مدیریت خپرونې چه بهرنی نـړۍ ته دګران هیواد دپیژندنې په مقصد کیـږي هره ورځ په محلي وخت له ۲٫۳۰ څخــه دماښام تراووبجو پورې په لنډوڅپو ۱۹ او ۹۱ مترودوام لرې . د رادیو افغانستـــان دخارجي نشراتو پروګرامونه دورځې دپیښـــو اوجریاناتوپه باب ډول، ډول مطالـب او د افغانستان‌پولنیزه سیاسي، جغرافیایي، تاریخي اوکلتوري موضوعات تشکیلوی او د خارجي اوریدونکو لیکونواوفرمایشونوته ځواب‌ورکول کیږي . لکه چه‌دغه طرزپه یوه تیرکال کې هم دوام کړی اودخارجي نشراتو مدیریـــت له‌لارې ټوله (۱۷۲۲) ساعته خپرونې‌شویدي.

درادیو افغانستان دخارجي نشراتو مدیریت هره ورځ مختلف پروګرامونه په عربي، اردو، روسي، جرمني اوانګلیسي ژبو نشرکړي دي. درادیوافغانستان یوساعته پروګرام په اروپا کې اوسیدونکو افغانانو دپاره هره ورځ په محلي وخت له ٤٫۳۰ نه تر۵٫۳۰ پورې په ۱۹ متره خپریږي .

دخارجي نشراتو اداری دکال په اوږدوکې هڅه‌کړې ده ترڅودواوریدونکو دجلبولو دپاره ارزښتناکه مطالب نشر اودخپلو پروګرامونو داوریدونکو رضائیت ترلاسه کړي، لکه چه رسیدلي لیکونه دغه ادعا ثابتيدوي .

**ب- تخنیکي آمریت :**

ددې دپاره چه رادیو افغانستان وکولای‌شي خپل غږنورهم لوړ، ټولووطنوالو حتی دهیواد په ډیرولیرې ګوټونو اوخارجي اوریدونکو ته ورسوي اودعامه اذهانو روښانه کولو او د جمهوري نظام داهدافو دتعمیم په لاره کـــې نورهم پراخ خدمت ترسره کړي، دتخنیکي چارو دپراختیا په‌برخه کې دتیرکال په‌اوږدو

کی هم دغوفعالیتونو دوام وکړ :

**الف ـ دبلخ، کندهاراوهرات دولایاتو ددری لیږدونکی دستګاوی :**

په مختلفو ساحو کی دپرمختیایی پروګرامونو له تطبیقیدلو سره داسی پریکړه وشوه چه دجمهوری دولت دکلتوری پالیسی له مخی ، دهیواد دلیریو ولایاتو دخلکو مشکلات درادیو غږ دچړوالی له پلوه دیرژرلیږی کړی شی، ددی مقصد دسرته رسولودپاره دهرات، کندهار اوبلخ دولایاتو دپاره دمنځنی څپی ددریو دستګاو واردولو قراردا د۱۳۵٤ کال دغوایی دمیاشتی په ۲۰ نیټه دیوګوسلاوی د (رز) له کمپنی سره لاسلیك شو اوپرته له خنډ څخه ددغو دستګاو دنصب اوپه کار لویدلو فعالیت پیل شو .

**ب ـ دلسونوداخذونصب اوپه‌کارلویدل :**

دتیرکال په وروستیو وختونوکی درادیو افغانستان یوواکمن هیات داخذه دستګاه‌دنصب اوبرانیستلو دپاره ولایاتوته ولاړچه دغه دستګاوی یوپه بل پسی د مربوطو سیمو دوالیانو له خوا پرانیستل شوی په لاندی ډول یی په فعالیت پیل وکړ :

۱ـ دپروان ولایت د کاپیسا په لوی ولسوالی کی نوی اخذه .

۲ـ دبغلان ولایت دپلخمری په ولسوالی کی نوی اخذه .

۳ـ دفاریاب ولایت داندخوی په ولسوالی کی نوی اخذه .

٤ـ دسمنګان ولایت دخلم په ولسوالی کی نوی اخذه .

٥ـ دلوګر ولایت د پل علم په سیمه کی نوی اخذه .

٦ـ دلغمان ولایت دمیترلام په ښار کی نوی اخذه .

۷ـ دپکتیا ولایت د خمکنیو په ولسوالی کی نوی اخذه .

۸ـ دهلمند ولایت دګرشك په ولسوالی کی نوی اخذه .

۹ـ دارزګان ولایت دتیرینکوټ په ښار کی نوی اخذه .

۱۰ـ دغزنی ولایت دکټواز‌په‌لوی ولسوالی کی نوی اخذه .

دغه اخذی هره ورځ خلکوته خدمت دپاره دپوه ټاکلی پروګرام په اساس فعالیت‌کوی.

**ج ـ لوړ طاقت لرونکی دستګاوی :**

دلوړ طاقت لرونکو دستګاه اساسی سروی دخارجی ماهرانو دنه رسیدلو له امله په ۱۳۵٥ کال کی ونه شوه ، اما انتظار کیږی چه په۱۳۵٦ کال کی‌دملګرو ملتو دپرمختیایی پرو ګرامو نو له مخی دلوړ طاقت لرونکی دستګاه دپروژی مخکی بیولو دپاره دیوه بیل قرار داد په اساس خارجی ماهران استخدام او افغانستان ته ورسیږی تر څو اساسی سروی پیل شی .

**د ـ ټیټ طاقت لرونکی دستګاوی :**

درادیو افغانستان دموجود دستګاو چه په‌کابل کښی نصب شوی دی ټول طاقت

۲۸۵ کیلو واټ دی چه له دی جملې نه یو سلو پنځه ویشت کیلو واټه یې په منځنۍ څپه خپرونو دپاره او پاتې یوسلو شپیته کیلوواټه یې په لنډو څپو خپرونو دپاره پیل شویدی . کله چه په لومړی او دوهم پنځه کلن پلان کې په کابل کې دترانسمیترو نو نصب او په کار لویدل طرح شول ، داسې پیش بینې شوی وه چه په راتلو نکو پلانونو کې دی دهیواد مختلف ځایونه دی له داسې دستګاو سره چه ټیټ طاقت ولری داسې تنظیم شی چه دمرکز خپرونې له تقویه‌کیدو وروسته په ټاکلو ساحو کې نشر کړی اوله بلې خوا مرکز دی له‌داسې دستګاو سره چه لوړ طاقت ولری تجهیز شی تر څو دراډیو افغانستان خپرونې ګاونډیو هیوادو نـــو او لیریو ځایونو ته په ښه توګه ورسیږی .

له بده‌مرغه دلومړی او دوهم پرمختیایی پلانونو پیش بینی په راتلونکو پلانونو کې عملې نه‌شول اودغه کار نن رادیویی خپرونو له اتکل نه زیات مشکلات پیدا کړیدی .

دجینوا دتیرکال دجرګې راپوردغه واقعیت تائیدوی چه دپلان دعملې کیدلو په صورت کې به له لسوزرو څخه زیات لیږدونکې یعنی دمنځنۍ څپې په هرکانال کې تقریبا ســل لیږ دونکې په مختلفو طاقتونو په اوله او دریمه حوزه کې په فعالیت پیل وکړی چــه زمونږ هیواد هم په دریمه حوزه کې واقع‌دی.

تولدی کبله په سیمه اونړۍ کې ورځ په ورځ دلیږدونکو زیا تیدل له‌یوی خوا او د لیږدونکو دطاقت زیاتول له‌بلې خوا داایجابوی تر څو دراډیو افغانستان دشبکې دپراختیا او پیاوړتیا په برخه کې چټک ګامونه اوچت شی. ددغه پلان له طرح کیدلو سره په یوه وخت کې دتیلی کمونیکشن بین المللـــی اتحادیې دغړو هیوادونو دنمایند ګانو پــه ګډون یو پلان طرح کړ چه دهغه په اساس دمنځنیو څپوپه بندکې تعدیلات اونوی کتنې مینځ ته راغلې چه په ۱۹۷۸ کال کې به‌دعمل په ساحه کې تطبیق شی. ددغې اتحادیې په وروستنې کنفرانس کې دراډیو افغانستا ن هیات له اوسنیو فریکو نسیو سر بیره دهغو دستګاو دپاره چه ورته اړتیا شته، مناسبې نوی فریکونسۍ هم ریزرف او راجستر کړل چه دهغوشمیراولسو فریکونسیوته رسیږی .

برسیره پردی دراتلونکې پیش بینې په مقصد دهیواد د ۲۵ مختلفو سیمو دپـاره کم‌طاقته دستګاوی چه ظرفیت یې له یــو کیلو واټ څخه زیات ندی اود منځنۍ څپې په دریو کانالونو کې فعالیت کوی په نظر کې نیول شویدی .

**په لویه جرګه‌کې دراډیو افغانستان برخه آخیستل :**

راډیو افغانستان دجمهوری دولت دلومړنۍ لویې جرګې په وخت کې هغه رسالت چه د خلکو دخبرتیا له پلوه په‌دی برخه کې درلود دلزوم په صورت په مستقیمه توګه دهغې د غونډو دجریاناتو خپر ولو سره دغه وظیفــه په ښه توګه سرته ورسوله .

بر سیره پردی دوطنوالو دزیات معلومات اوخبرتیا په مقصد په افغانستان کی دلوی جرگی دقدامت او تاریخچی او دهیواد په ملی مسایلو کښی دهغی دنقش اودغـــه راز د جمهوری دولت داساسی قانون دمزایاو په هکله داختصاصی خپرونــو پــه تــرڅ کـــی اوریدونکو ته کافی مطالب وړاندی اومفصل توضیحات ورکړل شویدی .

دلویی جرگی دغونډو دجریان پــه وخــت کی دراډیو افغانستان تخنیکی او نشراتـــی غړو او دراډیو هنرمندانو دخپلو اختصاصی کارونو په ساحه کی خپل رسالت په ډیــره ښه توگه سرته رسولی دی ۰

لکه‌چه دلویی‌جرگی له پیل څخه ترپایه پوری موظف تخنیکی مامورین او وسایل د جرگی دجریاناتو دخپر ولو دپاره دشپی او ورځی په خدمت بوخت وو .

او د راډیو نشراتی څانگو چه دورځـــی له اطلا عاتی ، تولنیز او معلو ماتی پیښواو جریاناتو څخه دخلکو دخبریدلو مسوولیت‌په غاړه لری ، دمختلفو اختصاصی پرو گرامونو په خپرولو سره په ټول هیواد کی دخلکو په خدمت کی دی ۰

سر بیره پردی دجمهوری دولت په لومړنی لویه جرگه کی دملت د محترمو نمایند گانو دمشغو لتیا او سرگرمی دپاره خاص هنری پروگرا مونه او دموسیقی په زړه پـوری کنسرتونه دراډیو افغانستان دهنرمندانو پــه وسیله دراډیو افغانستان په لوی تالار کی اجرا شول . ددی دپاره‌چه دلویی جرگی د غونډو جریان په منظم او قناعت ښونکی شکل نشر شی ، راډیو افغانستان له یوملیون افغانی څخه زیاتو پیسو په لگښت مخصوص مایکرو فونونه او تخنیکی مساعد تجهیزات خریداری اودلویی جرگی تالاریی په دغوآلاتو سمبال اوچمتو کړ .

**ه ـ دتلویزیون پروژه :**

زمونږ هیواد دودی په حال کی دیوه‌هیواد په حیث چه دنفوس زیاتره فیصه‌دی یی دلیك او لوست له نعمت څخه بی برخی دی هغو نورواقداماتو په څنگ کی چه دخلکو د ژوندانه دسویی ښه کولو دپاره روان دی ، دتنویری او تربیوی اهدافو دتطبیق ، یوشمیر وطنوالو ته‌دگار دزمینی برابر ولو او لـــه ټولنیز او پرمختیایی پروژو څخه دخلکو د خبرتیا دپاره ، راډیو او تلویزیون ډیره مهمه اوډیره موثره وسیله بلله کیږی ۰

دتلویزیون پروژه په افغانستان کـــی د جمهوری دولت له پالیسی سره سم په اوه کلن پلان‌کی په جامع توگه په نظرکی نیول شویده چه دکابل د تلویزیون دپروژی لمړی مرحله ، دستند یو گانو دودانی دبنسټ د ډبری ایښودل کیدو سره د ۱۳۵۶ کال دوری په میاشت کی پیل شوی ده .

دتجهیزاتو اوخد ماتو لگښت یـــی ۹۵۰ ملیونو جاپانی ینو ته رسیږی چه له ۳٫۲ ملیونو ډالرو سره معادل دی او دجـاپان د حکومت له وړیا مرستی څخه تمویل کیږی .

دتلویزیون دستبد یو دودانی او ترانسمیتر، برج داسمایی غره ته داوبو او بریښنا رسولو او دتلویزیون دسړک جوړولو لګښت شل ملیونه افغانی کیږي چه ددولت له بودجې څخه تمویلیږی . دتلویزیون د پروژی دتطبیق په نتیجه کی دکابل ښار او خوا وشایی چه له ۱٫۵ ملیونو تنو څخه زیات نفوس لري ، دتلویز یون دخپرونو په څېړه کی راځي او تربیوی اوتنویری هدفی ترسره کیږی ، تر اوسه پوری دتلویزیون دپروژی لاندنی کارونه اجرا شویدی :

۱ ــ دسړک جوړولو او دآسمایی غره د څوکی اوار ولو پلان چه د تلویزیون د لیږدونکی دستګاه دودانی اوبرج دپاره ضرور دی ، دکابل ښاروالی له خواطرح اوډیزاین شویدی او دجمهوری قول اردو دټولګیو په واسطه دجوړولو کاریی پیل شو. نوموړی سړک ۳۵۰۰ متره اوږد والی لری چه لبه سالنګ واټ څخه په ۳۰۵ متره اوږوالی کی دآسمایی دغره دپاسه ایستل شوی چه ددغه کاردپاره ۱۸ ملیونه افغانی لګیدلی دی .

داوس دپاره په سلو کسی اویا ددغه سړک کار پرمخ تللی چه دسړک جوړول او دڅوکی له اوارولو څخه عبارت دی ، پاتی کاریی داستنادي دیوالونواوسیلبرونو جوړول دی، وروسته بشپړیږی .

د ۱۹۷۶ کال ددسامبر په میاشت کی د جاپان دکنی ماتسو کوشو له کمپنی او د ۱۹۷۷ کال دفبروری په میاشت کی دالجاپان تلویزیون سرویس کمپنی سره دشوی تړون په اساس دتلویزیون تخنیکی وسایل دجاپان دکنی متسو کوشو دکمپنی له خوا برابریږی او دتلویزیون دستبد یوګانو او ترانسمیتر د ودانیو جوړولو او دوسایلو نصبولو کار د افغانی ساختمانی دستګاه پواسطه، دآل جاپان تلویزیون سرویس کمپنی دماهرانو په مشوره او دهغوی تر نظر لاندی اجرا کیږی.

### ۲ــ دتجهیزاتو سروی اوقرارداد :

ددغی پروژی ډیر ژر بشپړیدو دپاره د جاپان حکومت وړیا مرسته چه ۹۵۰ ملیو نو ینو ته رسیږی په ۵۵ کال کی جلب شوه د جاپان ماهرانو د ولس کسیز هیئت د تلویزیون دپروژی اخرنی سروی دپاره کابل ته راغی او داساسی پلانګذاری دپاره یی دارتیا وړ مواد په کابل کی دخپلی استوګنی په موده کی تر لاسه کړ او دخپلو مطالعاتو په پای کی یی مفصل راپور دافغانستان حکومت ته وړاندی کړ چه دهغه له مخی له جاپانی مقا ماتو سره قرار داد لاسلیک شو او دکابل تلویزیون دپروژی دکار پلان یوه مشخصه بڼه غوره کړه .

څرنګه چه دجاپان حکومت دتلویزیون د پروژی دوړیامرستی په برخه کی د۵۵ کال په پای کی خپل پوره چمتووالی څرګند کړ ، نو د ۱۹۷۶ کال ددسامبر په میاشت کی دتخنیکی تجهیزاتو برابرولو قرارداد د جاپان د کوشوی کمپنی سره لاسلیک شو . ددغه قرار داد له مخی دتلویز یون کار مرحله په

مرحله دیوه ډیر دقیق پلان سره سم چی په هغه کی دجاپانی طرف مکلفیتونه ورپه گوته شویدی په ٥٦ کال کی بشپړ یږی او د ١٣٥٧ کال په لومړیو وختو کی دتلویز یون مقدماتی پرو گرامو نه پیل کیږی .

**دتلویز یون دپاره دپر سونل روزنه :**

دهغو کارونو په ترځ کی چه دتلویزیون دپروژی دساختمانی او تجهیزاتی چارو دعملی کیدو دپاره شوی دتخنیکی اونشراتی پرسونل دروزنی او چمتو کولو دپاره هم یو لړ اقدامات او هڅی شویدی چه دهغو په اساس

په لومړی گام کی دتخنیکی او نشراتی غړو په گڼون تقریبا شل تنه دتلویزیو نی پرو گرامونو دمربو طو چارو دزده کړی دپاره چه تخنیکی او نشراتی مسایل او دپروگرام جوړ ول دی ، جاپان ته لیږل شویدی .

دغه راز دتخنیك او نشراتو په دواړو ساحو کی دزیات شمیر مسلکی پرسو نل دروزنی له پاره له خینو مرسته کوونکـــو بین المللی مو سسو او دوستـو هیوادونـو سره یو لړ تماسو نه روان دی چه هیله ده په نژدی وخت کی رادیو افغانستان په دی برخه کی خینی مرستی تر لاسه کړی .

**دباختر آژانس ریاست :**

دغه ریاست دخپلـو مربوطو څانگـو لـه لاری دخبرونو برابر ولو اومخابره کولو په ساحه کی خپل خدمات پراخ کړیدی ، البته سعی شوی ده چه دجمهوری دولت دکلتوری پالیسنی په پیروی دهیواد داخلی پرمختیاوی او مهمی پیښی دواقعبینی ، صحت او دعمل چټکتیا دروحیی په نظر کی نیولو سره راټولی او نشراتی موسسو ته یی وسپاری .دغـــه راز دهیواد دپرمختیاو دورځنیو پیښو تبصری هم برابری او د استفادی دپاره نشـــراتـی موسسو ته سپارل شویدی . دهمدغه طرزد پیروی هڅه ورځ په ورځ په سل هاوو داخـــلـی او بین المللی خبرونه دباختر آژانس له لاری برابر او ټولو ورځپاڼو ، جریدو او مجلوته په پښتو اودری ژبو دموجودو وسایلوله لاری پرته له څنډ څخه مخابره او نشر ته وړاندی شویدی .دغه راز اخباری عسکونه دد غـــی موسسی دعکاسی دڅانگی له خوا نــه پواځی دمرکز جریدو ، ورځپاڼو او مجلوته ، بلکه دهیواد دولایاتو ورځپاڼو او مجلو او ددولتی دایرو نورو نشر یو ته هم برابر اووړاندی کیږی . باختر آژانس ددغو څانگو پواسطه په تیرو څلورو کلونو کښی خپلو خدماتوته دوام ور کړیدی :

**دتحریراتو اوخارجی آژانسونو دنمایندگانو دراجستر مدیریت :**

دغه څانگه دباختر آژانس په مربوطوچارو شر بیره له خارجی آژانسو نو او دخارجـی آژانسونو له نمایند گانو سره دارتباط وظیفه هم په غاړه لری. په هیواد کښی دخارجـــی آژانسونو دنمایندگیو دفعالیت لایحه په ٥٤ کال کی تطبیق شوه . ددغی لایحی له مخی دخارجی آژانسونو نمایندگان کولای شی چی دخپلو نومونو له ثبتولو وروسته دخبریالاتو په توگه فعالیت وکړی . د غه راز دهمدغی

ځانګی له لاری دباختر آژانس له خارجـــی آژانسو نو سره قرار دادونه لاسلیك کوی. داوس دپاره دباختر آژانس له دغو آژانسونو سره ارتباط لری : رویتـــر (انګـلستان) ، فرانس پرس (فرانسه) ، ا نسا ی (ایتالیا) تاس (شوروی اتحاد)، تانیوګ (یوګوسلاویه) دی، پی، ا، (دآلمان اتحادی جمهـوریـــت) سماچار (هند) ، (چی، تی،کا (چکوسلواکیا) سینهوا د (چین ولسیجمهوریت) دایران ملی رادیو تلویزیون . تاکل شوی ده په نـژدی وخت کښی دباختر آژانس دترکیی د اناتولیی او دکوریا دولسی جمهوریت له آژانسو نو سره هم دخبرونو دراکړی ورکړی قرار داد لاسلیك کړی .

هغه خارجی ورځپاڼی ،جریدی او بولیټنونه چه له خارجی نمایند ګیو او نشراتی منابعو ځخه آژانس ته رسیږی ، مهم موضو عات یی دهمدغی ځانګی پواسطه دترجمیدپاره مربوطو ځانګو ته لیږل کیږی .

**دداخلی خبرونو مدیریت :**

دغه مدیریت ټول داخلی خبرو نه دهیواد له مرکز او ولایاتو ځخه راغونډوی او لـــه تنظیم او ترتیب ځخه وروستهیی ، دژورنالیزم له معیارونو سره سم دنشر دپاره نشراتی موسسو او رادیو ته لیږی ، کوم خبرو نه چه ددغه مدیریت له لاری برابر یږی پــــه مختلفو ټولنیز ، سیاسی ، اقتصادی ،عرفانی او عمرانی ساحو کی ددولتی دایرو پــــه فعالیتونو پوری اړه لری او دترافیکی ،جنائی محاکماتی او ورزشی پیښو خبرونه هم چه خلك ورسره مینه لری پهکی شامل دی .

دغه مدیریت دیو کال په موده کښـــــی ٥٨٥٤ خبرونه دهیواد له مرکز او ولایاتـــو ځخه غونډ او نشر کړیدی .دغه راز دغـــه مدیریت وخت په وخت دمهمو کورنیو پرمختیاو په باب تفسیرونه لیکی او دنشر د پاره یی رادیو او ورځپاڼو ته لیږی .

په عین حال کی ځینی ضروری موضو عات ترځیړنی لاندی نیسی او دنشر دپاره یـــی چمتو کوی .

**د عسکاسی مدیریت :**

ددغی ځانګی وظیفه داخباری عکسـونـــو برابرول دی ، لکه چه دمرکز او ولایاتو ټولو ورځپاڼو او مجلو ته دضرورت وړ عکسو نه برابروی .

همدارنګه دغه ځانګه په کال کښی پـــه زرګو نو قطعی عکسو نه نورو دولتی دایرو او موسسو ، په خارج کی افغانی سفارتونو او ددولتی فعالیتونو پیژندنی پــه مقصد د (اطلاعات و کلتور درخدمت شماست) دویترین دپاره برابر وی .

دتیر کال دچنګاښ له میاشتی ځخه ترسږ کال پوری دیو لسو زرو خوا وشا کیعکسونه په ورځپاڼو او جریدو کی دنشر ، عرفانی او آزاد خر ځلاو دپاره برابر شویدی . ددغو عکسونو له جملی ځخه د ٥٥ کال دچنګا ښ لهمیاشتی ځخه د ٥٦ کال دچنګاښ ترمیاشتی

**پاتی په ٨٤٨ مخ کی**

# وزارت مخابرات

با پیروی از خط مشی دولت جمهوری که رشد و توسعه متوازن ومتناسب همه شئون حیاتی مردم از اهداف عمده آن میباشد وزارت مخابرات به منظور انکشاف وبهبود خدمات و وسایل مخابراتی که نقش تعیین کننده ای را در انکشاف اقتصادی واجتماعی کشور دارد وبرای تعمیم تسهیلات بیشتر برای هموطنان با در نظر داشت توان مالی وتخنیکی قدم های موثری برداشته که فعالیت ادارات مربوطه آنرادرقسمت خدمات مخابرات به شرح ذیل میتوان خلاصه کرد :

**اول : در ساحه پلان های انکشافی**

الف : پروژه توسعه دستگاه های اتومات بامضای قرار داد قرضه بیست میلیون مارك بین دولت جمهوری افغانستان و جمهوریت فدرالی آلمان در جریان سال گذشته زمینه توسعه دستگاه های اتومات شهر نو ، شیرشاه مینه و نصب دستگاه های جدید اتومات در نادر شاه مینه ، خیر خانه مینه وهکذا تمدید لین چینل مزار ، شبرغان ، میمنه وتالقان ، فیض آباد فراهم گردیده است که بافعال شدن دستگاه های اتومات جدید تعداد مجموعی تیلفون اتومات درکابل از ۱۳۲۰۰ لین به ۲۰۱۰۰ لین افزایش می یابد . چنانچه سروی وپلان شبکه ساحهٔ دستگاه های مذکور در سال گذشته توسط متخصصین وزارت مخابرات با اشتراك مساعی متخصصین گروپ امداد تخنیکی حکومت جمهوریت اتحادی آلمان تکمیل گردیده واعلانی در ژورنال بین المللی به نشر سپرده شده تا منابع معتبر تولیدی در زمینه اسناد پریکوالیفیکیشن را ارسال وبعد از ارزیابی وانتخاب کمپنی ها عرضه گری آغازومتعاقبا به خریداری سامان آلات ودستگاه ها مبادرت بعمل آید .

**ب : پروژه کیبل دکت ـ**

این پروژه متم پروژه کیبل دکت شامل پلان پنج ساله دوم شبکه تیلفون شهر کابل میباشد که باا کمال آن علاوه براینکه نتایج مثبت را برای حفظ ومراقبت کیبل ، محدودیت خسارات وایجاد سکتگی در سیستم مخابراتی وصرفه جوئی در مصارف تمدید کیبل بار می آورد از کندن جاده ها وپیاده رو ها نیز جلو گیری بعمل می آید .

بادر نظر داشت این ملحوظات ساختمان ده کیلو متر کیبل دکت شهر کابل در سال گذشته رویدست گرفته شده است .

**ج: پروژه تمدید لین های اساسی تیلفون ولین های چینل :**

در چوکات پروژه انکشاف مخابرات ولایات درنظر است تاختم پلان هفت ساله انکشافی بفاصله سه هزار کیلو متر لین های اساسی تیلفون بین ولایات کشور تمدید گردد که متکی به پروگرام مطروحه بین ولایات و ولسوالی های ذیل جمعاً به فاصله ۵۸۸ کیلو

متر لین های اساسی تیلفون طرف استفا ده مخابراتی قرار گرفته است .

**۱ ـ در ولایت نیمروز :**

از دل آرام به خاشرود الی زرنج واز زرنج به قلعه فتح الی چهار برجك به فاصله ۳۱۸ کیلو متر .

**۲ ـ در ولایت کندهار :**

از مرکز کندهار الی ولسوالی ارغستان ومعروف جمعا به فاصله ۱۶۰ کیلو متر واز مرکز سپین بولدك الی ولسوالی شورابك به فاصله ۱۱۰ کیلومتر .

هکذا چون تمدید وبکار انداختن ۱۶۸۱ کیلو متر لین چینل بین مزار شریف ، شبرغان ، میمنه ، قلعه‌نو هرات ، چغچران ، قندهار ، ارزگان ، فراه ،نیمروز وتالقان ، فیض‌آباد شامل پلان هفت ساله شده است بنابران غرض تعمیل کار مطابق پروگرام خریداری سیم وسامان غرض تمدید لینهای مذکور صورت گرفته که یك قسمت زیات آن قبلا به کابل مواصلت وقسمت باقیماندہ آن در آینده قریب به دسترس وزارت مخابرات قرار خواهد گرفت . علاوتاً در سالی که گذشت یك تعداد دستگاه های چینلی که‌قبلا تدارك شده بود در مراکز کابل ، پروان ، پلخمری ، سمنگان ومزار شریف نصب‌وطرف استفاده مردم قرار داده شده است که بانصب آن از یك طرف در تعداد لین های چینل بین شهر های کابل ، پلخمری و مزار شریف تزئید بعمل آمده واز طرف دیگر ارتباط‌مخابره تیلفونی بین کابل ، سمنگان مزارشریف و سمنگان پلخمری نیز برقرار شده است .

همچنان به‌منظور تمدید لین چینلی مزارشریف حیرتان بفاصله هشتاد کیلو متر درسال ۵۵ تدابیر مقدماتی اتخاذ وقرار داد خریداری سامان لین چینل مذکور باکمپنی پرو ما شی اکسپورت اتحاد شوروی عقد گردیده که با مواصلت سامان آلات کار تمدید لین مذکور دردست اجراء قرار داده خواهد شد. علاوتاً برای عملی ساختن کار پروژه های چینلی فوق الذکر تولید پایه های کانکریتی تیلفون دردستگاه پایه سازی وزارت‌آب وبرق‌شروع وتدابیر برای خریداری یك تعداد پایه های آهنی از خارج رویدست میباشد .

**د : ـ پروژه مایکرو ویف :**

مطابق پلان پیشبینی شده دیزاین یك قسمت از سرك های فرعی پروژه مایکروویف تکمیل وکار احداث آن توسط یونت های‌فنی کار جریان دارد .

**هـ : پروژه دستگاه های بی سیم ـ**

به منظور بر قراری مخابره مستقیم رادیو تیلفون ، تیلگراف . تیلکس وتیلس فوتو با ممالك خارج وتوسعه آن در اخیر سال ۵٤ قرار داد خریداری سامان آلات دستگاه های بیسیم عقد سامان آلات آن مواصلت نموده و کار مونتاژ آن آغاز گردیده است که طبق پروگرام درسال ۵٦ پروژه مذکور آماده بهره برداری میگردد .

۱۰۲ برای اجرای مخابره رادیو تیلفونی بین

کامل اکثر ولایات دور دست کشور که فاقد این چینلی میباشد به تعداد ده پایه دستگاه رادیو تیلفون درسال گذشته خریداری گردید که دستگاه های مذکور اخیراً بکابل مواصلت نموده ودر آینده قریب درنقاط که نیاز مندی بان محسوس است بکار انداخته خواهد شد

**و: پروژه اعمار ساختمان های مخابراتی :**

غرض استفاده ادارات پست ، تیلفون تیلگراف ساختمان عمارات ذیل تکمیل ومورد استفاده قرار گرفته است :

۱ ـ ساختمان تعمیر مخابرات ولایت غزنی پسته خانه های شهری واقع سید نور محمد شاه مینه ، بریکوت ، ده‌بوری وکارته پروان وتجهیز آن با وسایل پستی .

۲ ـ تکمیل کار تعمیر دستگاه اتو مات وپسته خانه خیر خانه مینه توسط دستگاه ساختمانی افغانی واکمال ساختمان محوطه دستگاه مذکور توسط اداره تعمیرات وزارت مخابرات وتدارک تجهیزات مکمل پستی برای آن .

۳ ـ آغاز وتکمیل ساختمان پسته خانه شهری جلال آباد .

٤ ـ ترتیب نقشه های مقدماتی برای اعمار یك پسته خانه مرکزی که بادر نظر داشت انکشاف روزافزون خدمات پستی، کار اعمار آن شروع شده است .

**ز : تربیه پرسونل فنی :**

با احساس نیازمندی دستگاه های مربوطه به قوای بشری در پهلوی ایفای خدمات مختلف تیلی کمونیکیشن فارغ وشامل وظیفه مخابراتی تربیه پرسونل فنی توجه وزارت مخابرات رابه خود معطوف داشته وهمه‌ساله یك تعداد شاگردان مکاتب در مرکز تربیوی مخابرات تعلیمات اختصاصی دیده ودر شعب مربوط استخدام می گردند چنانچه در سال گذشته به تعداد ۳۰ نفر به سویه بکلوریا و پنج نفر از صنف چهار دهم در رشته های شده اند. ومتقابلتا بتعداد۳۱ نفر شاگردان جدید الشمول بعد از سپری نمودن امتحان کانکور شامل مرکز تربیوی مخابرات شده‌اند.

هکذا در جریان سالیکه گذشت غرض کسب معلومات بیشتر ۸۰ نفر از مامورین شعبات پست کورس های مختلف پستی راتعقیب نموده اند . بصورت موجز مصارف پروژه های انکشافی فوق الذکر درسال ۱۳۵۵ بالغ ۱۳۵۰۰۰۵۱ ـ افغانی و۷۱۹۰۰ روبل گردیده است .

**دوم : در ساحه تیلی کمونیکیشن**

**الف : اصلاحات اداری ومحا سبوی**

غرض تنظیم بهتر امور مخابره وایجاد اصلا حات در طرز فعالیت شعب مربوط که از یکطرف تسهیلات مزید را برای انجام امور مخابراتی مردم فراهم می‌دارد واز جانب دیگر باتسریع فعالیت های تخنیکی وحسابی تزئیدی در عواید رونما می گردد وزارت مخابرات به اقداماتی متوصل شده است .

چنانچه در سال گذشته سیستم جدید محاسبه تیلفون راکه از چند سال به این

طرف در ادارات مرکزی تیلفون تطبیق شده در ولایات کندهار ، هرات وبلخ نیزدر معرض تطبیق قرار داده تابل های محصول مخابره به اسرع وقت به مشترکین توزیع وتادیه پول ذمت شان به غرفه جات بانکی مستقیما توسط خود مشترکین صورت گیرد .هکذا به منظور مراقبت بهتر وتزئید عواید سیستم سریل در مخابره های تیلفونی بین مرکز وولایات وهمچنین بین‌الولایات تطبیق گردیده است .

**ب: تعویض سیستم تیلفون لوکل بطری‌به سنترال بطری :**

بمقصد کاهش مصارف مشتر کین وتعمیم سیستم بهتر مخابره در سال گذشته سیستم تیلفون لوکل بطری شهر های میمنه وشبرغان به سیستم سنترال بطری تعویض و درشهر های مذکور سوچبورد های سنترال بطری که ظرفیت ۱۸۰ لین رادرهرشهر داراء میباشد نصب گردیده وکارشبکه شهر های سمنگان و پلخمری تکمیل شده که در آینده قریب بانصب سوچبورد های سنترال بطری به ظرفیت مجموعی ۱۸۰ لین در هر شهر در سیستم مخابره آن بهبودی رونما خواهد گردید .

**ج : تمدید لین های اساسی -**

در جریان سال ۱۳۵۵ به فاصله ۲۵۰کیلو مترلین های اساسی تیلفون خارج پروژه‌های انکشافی در ولایات کشور تمدید ویکتعداد لین تیلفون به منتظرین توزیع شده است

هکذا بعد از بکار انداختن دستگاه تلکس به ٤۷ مرجع وموسسه لین ودستگاه تیلی پرنتر توزیع گردیده ویك پایه‌تلکس غرض استفاده سایر هموطنان در غرفه محصولی نادرپشتون نصب شده است عایددستگاه تلکس درسال گذشته به تناسب سرمایه گذاری رقم قابل ملاحظه ای‌راکه بالغ ۰۰۰ر۱۷۵۰۰ ـ افغانی میگردد در جمله دیگر عواید وزارت مخابرات تشکیل میدهد .

**د : نصب تیلفون های سکه انداز .**

درجریان سال ٥٥ به تعداد ٢٤ پایه تیلفون سکه انداز جدیداً در کابل وبعضی از ولایات کشور به فعالیت انداخته شده که باآغاز فعالیت آن تعداد مجموعی تیلفون سکه انداز به هفتاد پایه در مرکز وولایات کشور میرسدکه ازدیاد در تعداد آن به تناسب‌سال ١٣٥٤ پنجاه ودو فیصد میباشد .

**سوم : درساحه خدمات پستی :**

**الف : توسعه ساحه فعالیت پست :**

بادرنظر داشت مفکوره تسریع عمل در انجام امور پستی وتعمیر خدمات آندرتمام نقاط‌کشور وتنظیم بهترروابط اهالی نقاط دور از مراکز ولایات به وسیله پست در سال گذشته هشتادپسته خانه درنقاط مختلف‌مملکت جدیداً افتتاح وبه فعالیت آغاز نموده است که باتاسیس آن تعداد مجموعی پسته خانه ها درسراسر کشور به ۳۳۵ پسته خانه تزئید یافته است‌که به تناسب سال ٥٤ تقریبا ۳۱ فیصد تزئید درآ رونما شده است .

دسانمی ودی په برخه کی خپل وظایف په لاندی ډول تعقیب او دامکاناتو او دټولنی د اړتیاو په حدود کی یی نور هم پراخه کړی دی .

**د فرهنگی روابطو مدیریت :**

داطلاعاتو او کلتور وزارت د مطبوعاتی او کلتوری تماسو نو دتوسعی او پراختیا په مقصد دکلتوری تړونونو لاسلیك کولو او د دوستی ټولنو دغونډو دایرولو سره له دوستو هیوادو نو سره دفرهنگی روابطو مدیریت په لاری یی تماس کړدی او دغه تماسو نه دکلتوری پالیسی په نظر کی نیولو سره په ګړور. توګه دکال په اوږدوکی دهیواد په ګټه زیات شویدی .

لکه چه په تیر کال کی یی په هیوادکی دننه دیو شمیر خارجی پوهانو ، ورځپا نه لیکو نکو ، عکاسانو او فلم اخستو نکو د مسا فرت زمینه برابره کړی او معنوی تـه لازمی اسا نتیاوی برابری شوی دی چه دغه کتنی خارجی نړی ته دهیواد دپیژ ندنی او دجمهوری انقلاب داهدافو دتو ضیح د پاره ډیر موثر او ګټور ثابت شویدی .

ددغو تړونو نو په اساس ځینی کلتوری پروګرامونه په اوږدو کښی دغه کار تعقیب شویدی . سر بیره پردی ، دملګرو ملتو له موسسی او دشوروی اتحاد ، ترکیی ، هند ، دچین ولسی جمهوریت او مصر له هیوادو نو سره د دوستی دټولنی چاری هم دهمدغه مدیریت میشنو نه افغانستان ته بلل شوی او د کال په غاړه دی .

سر بیره پردی دهغو هیوادونو د ملی او رسمی ورځو دکالیزی نما نځنه چه لـه افغانستان سره د دوستی ټولنی اړیکی لری او هم مربوطو ټولنو ته دتیلګرا مونو مخابره کول او ددواړو خوا دټولنو دملی او رسمی ورځو دنمانځنی په مناسبت دغو ندو جوړول دهمدغی څانګی وظیفه ده .

دفرهنگی روابطو مدیریت دخپل یونسکو په څانګه کی دیو نسکو دکنفرا نسو نـو او دیونسکو د متخصصینو چه په مختلفـو اطلا عاتی او کلتوری څانګو کی دګډون دپاره افغانستان ته راځی د ګډون مکمل ریکـارد ترتیب کړیدی او هم ددغه وزارت دایرو او موسسو دپاره په مختلفو ساحو کی دیونسکو مرستی دهمدغی څانګی له لاری جلب شوی دی او ددغه وزارت یو شمیر مامورین چه د یونسکو له مرستو څخه په استفادی سره خارج ته دهمدغی څانګی له لاری لیږل شوی دی .

دتیر کال دچنګانی له ۲٦ څخه دروان کال د غبرګولی تر پایه پوری د بلنو په اثر په کنفرا نسونو او سیمینارونو کی ګډون دپاره دوزارت دمربو طو موسسو او دایرو د ٥٠ تنو مامورینو او هنر مندانو دمسا فـرت اسانتیاوی برابری شویدی . په همدغه موده کی ۳٥ تنو مامورینو په رخصتی یا تفریحی توګه یی خارج ته سفرکړی دهمدغه مدیریت له خوا له مربوطه مرجع څخه پاسپـورت

اخيستل شويدي .

**دتشريفاتو مديريت :**

زمونږ هيوادله يوشمير ختيزو اولويديزو **هيوادو نو** سره فرهنگي او کلتوري تړو نونه لري چه دفرهنگي تبادله دپروگرامونو لـه **مخي په تير کال کي ددوستو هيوادونو عالي رتبه دولتي ميلمنو** ، پوهانو او هنرمندانو افغانستان ته مسافرت وکړ ،او په افغانستان **کي ددوی دمسافرت دپرو گرام لەمخي ، وخت** په وخت ، سيمينارونه ، درسامي ، **نقاشي، عکاسي** ، ننداري تونونه او هنري ننداراتو نونه **داير يږي دپروگرا مونو جوړول ، داستو گني دځاي او وسايلو او ترانسپورت برابر ول،** د ميلمه پالني دچارو تنظيم دبلن ليکو نو **او هغو ميلمستياو ترتيب چه ددغه وزارت له خوا دداسي هيئتونو په وياړ ورکول کيږي** دتشريفاتو دمديريت له وظايفو څخه دي .

دغه راز په کـال کـي د اوسيدونکـو کـورديپلوماتيکـو له غـړو سـره د وزارت د مقام دکتني دوخت ټاکل او تنظيـم ، **دداخلي او خارجي هنر مندانو دهنري ننداري** تونونو دبلن ليکونو تنظيـم او ليږل او په **رسمي محافلوکي دعالي‌رتبه مامورينو هرکلي ددغه مديريت د وظايفو په جمله کي دي .**

**دبور سو نو مديريت :**

**خارج ته دزده کړي دپاره ددغه وزارت د** مامو رينو دليږلو اودوي‌ته داسانتياووبرابرولو **چاري ددغه مديريت له خوا اجرا کيږي .**

**دبورسو نو مديريت په روان کال کي د محصلينو دمربوطو دوسيو او کارتنونو لـه** ترتيب او نمره گذاري سر بيره داطلا عاتو **اوکلتور دوزارت له ۱۹۰ تنو څخه** د زياتو مامورينودپاره چه په‌خارج‌کي يې تحصيل‌کړی **او يا اوس په خارج کي په تحصيل بوخت** دي، دتحصيلي سوابقـو ۳۲٦ دوسيي ترتيب **شوی .**

دکانديدانو **په برخه کي دزيات معلومات** دپاره دبور سونو **مديريت** يو شمير معلوماتي **فورمي ترتيب کړي او دغه راز په دغو وختو** کښي دليږل‌شويو شمير فورمي‌له چاپ څخه وتلي تر څو هر محصل خارج ته له ليـږل کيدو دمخه څلور پاڼي يې ډکي او دبورسونو کميټي ته وسپاري . تر څو دباند نيو چارو پلان شووني او روزني ، اوړو زده کړو او ددغه وزارت دنمايند گانو له خوا وروسته لاسليک شي او د پاسپورت اجازه ورکړي شي .

دهغو مامو رينو شمير چه دبور سو نو دنوي لايحي په اساس دسکالر شيپ او فيلو شيپ په توگه په تير کال‌کي باندنيوهيوادو ته ليږل شويدي .

| دتحصيل ځای | څانگه | شمير |
|---|---|---|
| هند | ژورنالیزم | يو تن |
| هند | لرغون پيژندنه | ۱۱ تنه |
| هاليند | ژور ناليزم | يو تن |

| شمیر | څانګه | دتحصیل ځای |
|---|---|---|
| ۱۱ تنه | تلویز یون | جاپان |
| یو تن | کتابداری | مالیزیا |
| یوتن | رادیو ژورنا لیزم | مالیز یا |
| دوه تنه | ژور نالیزم | ایران |
| یو تن | آفسیټ | ایران |
| یو تن | په شخصی لګښت | ایران |
| یوتن | ژور نالیزم | امریکا |
| یوتن | دژبی پیاوړتیا | استرالیا |
| دوه تنه | ژور نالیزم | فرانسه |
| دوه تنه | ژور نالیزم | انګلستان |
| یوتن | موزیم | پولیند |
| یوتن | رادیو | آلمان |
| یوتن | ژور نالیزم | آلمان |
| یوتن | موزیم | ایتالیا |

**د افغانستان تاریخ ټولنه :**

دافغانستان تاریخ ټولنی دتیر کال پــــه اوږدو کی دهیواد دتاریخ دکوټو نو روښانو لو په برخه کی دځپلو خدماتو او څیړنو لړی پراخه او تعقیب کړیده . لکه چه د آریانا دری میاشتنی مجلی پښتو او دری ، علمی سطح ، په ټاکلی سویه ساتل شوی او دهیواد دتاریخی .لوغون پیژ ندنـــی، جغرافیی ، ادبی او کتاب پیژ ندنی له مهمو مطالبو سره پیاوړی شویده ۰

دافغانستان مجلی چه ددغی ټولنی در ی میاشتنی مجله ده په انګلیسی او فرانسوی ژبو خپریږی د تاریخی ، فرهنګی او لرغون پیژندنی دمهمو مطالبو نشر ولو سره ترڅنګ پوری دافغانستان تاریخ دخارجی څیړو نکو علمی او تحقیقی تنده ماته کړیده ۰ دتاریخی ټولنی په موقوته نشراتو سر بیره ځینـــی کتابونه او رسالی هم خپری کړی چه مهــم یی دادی ۰

۱ ــ دسید جمال الدین افغانی دنسب او زیږیدو ځای انګلیسی ترجمه ۰

۲ ــ دافغانستان دتاریخ لنډیز ۰

۳ــ ژب پالهه .

٤ ــ په افغانستان کی دژور نالیـــزم تاریخچه ۰

۵ ــ دتیمور شاه درانی دیوان ۰

٦ ـ داستاد عزیز الدین وکیلی خلـــور سوه صفحی خطاطی آفسیتی چاپ ۰

دتاریخ ټولنی په پوز تنیو خپرونو سربیره دعلامه سید جمال الدین افغانی دمړینی د اتیایم کال دعلمی او مسلکی چارو په تنظیم کی برخه واخیستته ، دپوهانو مقالی یـی له څیړنی وروسته ټایپ او کستدنر کړی .

دتاریخ ټولنی دکال په اوږ دو کښبی له ذیعلاقه هیوادو سره دخپلو خپرو ونو مبادلی ته دوام ورکړ او یو شمیر دویلو وړ خارجی کتابونه او مجلی یی دخپلو خپرونو پهبدل کی دټولنی په کتابتون کی دپـوهانـــو ، نور خینو او څیړونکو داستفادی دپاره غونډ او ترتیب کړی دی ۰

دغه راز دتاریخ ټولنی په دغه کال کی له دری سوه ټوکو څخه زیات علمی کتابو نه پیرودلی چه پوهان او څیړونکی ور څخـــه استفاده وکړی ، همدارنګه دتاریخ ټو لنـــی نشرات په زیاته اندازه دآسیایی ، اروپایی او امریکایی هیوادو کتابتو نونو ته لیږ ل شوی دی ۰

**آریانا دائرة المعارف :**

دافغانستان دجمهوری دولت کلتوری پالیسی په اساس د آریانا دائرة المعارف آمریـت تیرکال دغه چاری سرته رسولی دی .

دآریانا دائرة المعارف شپږم ټوك پـــه شپږ سوو مخونو کی د ۱۳۵۵ کال دغوایـــی په میاشت او اوم ټوك یی په پنځه ســـوه پنځوس مخونو کی دهمدی کال دزمری پـــه میاشت کی له چاپه ووتل او په دی تـــوګه دپښتو آریانا دائرة المعارف د چاپولو کار په اوه ټوکونو او شپږ زره یو سلو پنځوس مخونو کی بشپړ شو ، په پښتو آریانا ـ دائرة المعارف کی دهغو موضو عاتو په پښتو ترجمی سر بیره چه په دری دائرة المعارف کی نیول شویدی په سل ګونو نوی علمی ټولنیز او سیاسی موضوعات اوافاقی معلومات چه په دی کی نه ونیول شوی چاپ شویدی په تیره بیا دپښتو دمخصو صو تورو ټ،څـ څ ، ډ ، ړ ، ږ ، او ښ ارتیکلونه ټولپکښی تازه او نوی دی ۰

**موزیمو نه :**

**پرمختیایی او پراختیا یی خدمات :**

دجمهوری دولت دکلتوری پالیسی پـــه اساس دموز یمو نو لوی مدیریت ، دتاریخی او لر غونی آثارو دساتنی ، ټولونی اوپیژندنی په برخه کی زیار وایست ، او هغه کارو نه چه په ٥٤ کال کی دکابل موزیم دپراختیا او پرمختیا دپاره پیل شوی وو، په ٥٥ کال کی په بری سره پای ته ورسیدل چه شوی کارونه په لنډ ډول معرفی کیږی :

**۱ ـ دکابل موزیم الحاقیه :**

دکابل موزیم دالحاقیی جوړ ولو کار چه په ٥٤ کال کی پیل شوی و پهسلو کی ۹۸ بشپړ شوی۰ دغه الحاقیه دموزیم دپخوانـــی ودانی ختیز اولویدیز دوو څنډو کی جـوړه شوی ده چه ددی تر ځمکی لاندی خونی د تحویلخانی دپاره ، دترمیم او عکاسی دوه

لابرا تواروته ، کتابتون او آثارو دنندارتون دپاره دوه لوی تالارونه لری ۰

**الف ـ تحویلخانی :**

هغه آثار چه دهیواد دلرغونی حوزو لـه کیندنو څخه لاس ته راغلی او دکابل موزیم ته لیږدول شویدی ، دځای دنشتوالی لـه کبله دننداتون په اطاقو نو کی دځای د تنگوالی ستو نزه پیدا کړی وه، ددغی ستونزی دحل دپاره په نظر کی ونیول شول چه لویئی تحویلخانی جوړی شی ۰ دغه راز په مخصوص ډیزاین سره د ۱۳۰ آلماریو فرمایش ورکړ شوچه په روان کال کی بهبرابراودموزیوگرافی پـه نـوی سیستـم بـه ددغـو تحویلخانو دتنظیم کار پیل شی ۰

**ب ـ دآثارو دترمیم مرکز :**

کله چه په ۱۳۴۵ کال کی دترمیم څانگه له پرسونل سره یی دلرغون پیژ ندنی پـه موسسی پوری وتړل شوه ، څرنگه چه د موزیمونو په لوی مدیریت کی دیوی داسی اداری دموجودیت ضرورت احساس کیده له اوس نه لابراتوار یی تکمیل او یوه اندازه مواد پیرودل شوی او دپرسو نل او لوازماتو دپاره یی اقدامات روان دی .دترمیم وړ آثارو فهرست ترتیب شوی او عکسو نه یی آخستل شوی دی ۰

**ج ـ دعکاسی څانگه :**

دغه څانگه هم له پرسونل او موادو سره یی دلرغون پیژندنی په موسسی پوری تړل شوی وه ، څرنگه چه په موزیو لوژیك پلان کی دداخلو آثارو عکاسی مهم وه ، لدیکبله زیار وایستل شو چه دغه څانگه ددوهم ځل دپاره دکابل په موزیم کی بیرته منځ تـه راشی ۰ له ښه مرغه لابرا توار یی بشپړ او یوه اندازه مواد یی پیرودل شوی دکمبودو موادو برابر ولو دپاره هڅه روانه ده ۰

**د ـ کتابتون :**

دخیړونکو او مراجعینو داستفادی او د موزیم دمسلکی غړیو د معلومات دسویی لوړ ولو دپاره په نظر کی دی چه دوی کوټـــی له بشپړ یدو وروسته ددغه مقصد دپاره پیل شی چه یوه کوټه به یی دلرغون پیژ ندنـی انتو گرافی او موز یو گرافی دکتابونو دپاره تنظیم شی او بله کوټه به هغو کتابـونو ته بیله شی چه دافغانستان په هکله نشرشوی دی په دوو لویو تالاروکی چیپه برقی مرکز گرمی سره سمبال دی، دگریك او بـودیـك او هغه آثاردننداری دپاره اینښودل کیږی چه دآی خانم او دهیواد دشمالی دلرغونی حوزو له کیند نو څخه لاس ته راغلی دی ۰ ددغو آثارو دتنظیم او ښودلو دپاره دنویو آلماریو فرمایش ور کړ شویدی ۰

**۲ ـ دشترك دآثارو دننداتون تجدید :**

دشترك لرغو نی حوزه دکابل دشمال ختیز په ۲۰ کیلو متری کی موقعیت لری . دبگرام دمدنیت په ځلانده دوره کی شترك ددغیسیمی دلویو مذهبی مرکزو نو له جملی څخه وو ویل کیږی چه اسا سا دغه صومعه په دوهمه میلادی پیړۍ کی دچینایی شهزاد گانو د

استو گنی دپاره چی دکانشکا سره یرغمل وه جوړه شوی وه . داسی معلومیږی چه دشترك دمعابدو سر پرستی او ساتنه دکاپیسا د شتمنو خلکوله خواکیدله . زیات شمیر مجسمی او نیم برجسته هیکلو نه له ورقه تیږی څخه دکیند نوپه اثر له دغی ساحی څخه په ۱۹۳۷ کال کی لاس ته راغلل .دغه آثار په آلماریو کی په زړه پوری ډیزا ین سره بیا وښودل شول .

**دموزیمو نو په پرمختیاکی دیونسکو برخه آخیستل :**

الف ـ هغه مسکو کات چه داسلا می دوری دتاریخ په اوږ دو کی دافغانستان په قلمرو کی ضرب وهل شوی ، ډول ، ډول دی دغه مسکو کات دافغانستان دپخوانی اسلامی تاریخ دمطالعی دپاره ډیر مهم ماخذ بـلل کیږی ، دکابل موزیم ټول مسکو کات پـه حقیقت کی په دوو مهمو برخو ویشل کیږی چه دهیواد دتاریخ په دوو مختلفو پیږ یو پوری اړه لری .

۱ ـ له اسلام څخه مخکی مسکو کـات.

۲ ـ اسلامی مسکو کات چه په افغانستان کی داسلام له فتو حاتو څخه شروع او د جمهوری تر دوری پوری موجود دی چه د باچا هانو لهخوا ضرب وهل شویدی .اسلامی مسکوکات له مختلفو منابعو څخه لاس تـه راغلی دی . یو شمیر یی دلرغون پیژندنی هیات د کیندنو او هم کله ، کله تصادفی په لاس راغلی او یوه برخه یی پیرودل شویدی.

یو شمیر یی چه دسیلانیانو پواسطه پـه قاچاقی توگه خارج ته وړل کیدل ضبط او د کابل موزیم ته تحویل شویدی چه شمیر یی تقریبا پنځه زرو سکو ته رسیږی . تقریبا یو نیم زر سکی چه دمغولی باچا هانو پـه دوری پوری اړه لری په ۱۹۵۳ کال کی د پروفیسر دو مینیك سوردل پواسطه مطالعه او نشر شوی ، مگرپه هغه وخت کی دکابل په موزیم کی تخنیکی شرایط موجود نه و تر څو نوموړی سکی دموزیو لو ژیکی پلان په اساس تصنیف او تنظیم شوی وای . ټول یی په کڅوړو کی کیښودل شوی ، تر څـو وروسته تصنیف او تشریح شی داطلا عاتو او کلتور وزارت دیو نسکو ما هرانو تـه بلنه ور کړه تر څو دنوموړو سکو په تصنیف او تشریح کی مرسته وکړی . دیو نسکو ماهران دیوی میاشتی دپاره کابل ته راغلل اودوی کولای شول چه داموبانو، عباسیانـو سلجوقیانو ،خوارزمشاهیا نو او غوریا نو د دورو دسرو زرو او سپینو زرو ۱۵۰۰ سکی مطالعه او تشریح او دباچاها نو دسلسلی په اساس یی کرونو لوژیك تصنیف کړی .دغه سکی دمسکو کاتو په مخصو صو الماریو کی کیښودل شوی . دغه راز ۷۹۳ دانی یی د موزیم په کتلاك کی درج کړی . هیله ده د ۱۹۷۷ او ۱۹۷۸ کلونو دپاره د یونسکـو د پروگرام په اساس یو ځل بیا افغانستان ته راشی او دکابل موزیم داسلامی سکـو د کلکسیون تشریح او تصنیف چه دهیواد د

تاریخ مطالعی او روښانه کولو دپاره ډیره ښه گنجینه ده ښشبږ شي ۰

**ب ـ داسلامی برونزو نو دکتلاك تشریح او تدوین :**

زمونږ دهیواد دتاریخ په هره دوره کی لوی مدنیتونه موجود وو اونن افغانستان په اسلامی لوړ کلتور معیار باندی ویاړی مگر دافغانستان اسلامی آثار خارجی نړی ته په صحیح شکل پیژندل شوی نه دی ۰

دغه راز دلیسو او پوهنتون زده کونکی د اسلامی هنر پیژندنی ته ښکاره اړ تیا لری۰ ترڅو چه په دیبرخه کی دکابل موزیم هر اثر تشریح او توضیح او کتلاك یی تدوین نشی ، دهغو په هکله دعلمی معلومات تر لاسه کول گران دی ۰

دهمدغه اصل له مخی وچه داطلا عاتو او کلتور وزارت دیونسکو ماهرانو ته بلنه ورکړه ترڅو ټول اسلامی برونز آثار تشریح کړی۰ داکتوبر په ۲۲ دیونسکو داسلامی هنر ماهر کابل ته ورسید ۰ نوموړی ماهر په کابل کی دخپلی یوی میاشتنی استوگنی په موده کی ټول اسلامی مفرغی او برونزی آثار چه زیاتره یی د غزنویانو دوری په مدنیت پوری مربوط اوله بازار څخه پیرودل شوی تشریـح او اندازه کړل ، نوعیت یی ثبت او عکاسی شو دغه کار چه دکافی وخت نشتوالی له کبله په بیړه وشو، په حقیقت‌کی دداسی اثـارو دکتلاك دتدوین دپاره د موادو برابرول دی

چه نوموړی ماهر زیار باسی په راتلونکـی کیوخت‌کی هغه‌نشر‌کړی. له‌نشریدوسره به‌یی دکابل موزیم ددغی نه پیدا کیدونکی گنجینی اهمیت ، ظرافت او نویوالی علاقمندانو تـه ښه ښکاره شی. ددغو آثارو دساتنی دپاره دیو شمیر مخصو صو الماریو فر مایش ورکړ شویدی ۰

**٤ ـ دکابل موزیم دپست کار تونو بیا نشریدل :**

دکابل موزیم اداری دافغانستان دپخوانی هنر دپیژ ندنی دپاره شپږ ډوله رنگه پست کارتونه په خارج کی بیا چاپ کړل او د اطلاعاتو په‌کړ کی‌کی یی دخرڅلاودپاره‌کیښودل چه دسیلا نیانو ددلچسپی سبب شویدی ۰

**٥ ـ داثارو پیرودل :**

دودی په حال یوه هیواد کی دبشرپیژندنی دموادو راټو لولو ضرورت ، ډیر مهم اوعاجل کارگڼل شویدی ۰ چی باید دلرغونو آثـارو په‌شان وساتل شی ترڅوکلتوری میراث لـه منځه ولاړ نشی ، لدی کبله دکابل موزیم اداری دفرهنگی میراث دساتنی او دکا بل موزیم شتمنی گرځولو دپاره تر ممکن حده پوری زیار ایستلی دی چه دانتو گرافی آثار وپیری .دهمدغه هدف له مخی په ۱۳۵۵ کال کی دختیز هندوکش په مدنیت پوری مربوط دانتوگرافی ۲۵ آثارچه دنورستان دخلکـــو دودانیو له ستنو او آثاث البیت څخه عبارت دی پیرودل شویدی ۰دغه راز داطلا عاتو او کلتوروزارت نورستان ته یوهیات ولیږه دغه

هیات خو دانی ستنی چه ډیره ښکلی هیکل تراشی لری وپیرودلی چه دکابل موزیم تــه رسیدلی دی .

**٦ ــ له‌کندز څخه دیوشمیر آثاروليږدول :**

دلیږدولو وړ ٤٨ قلمه اثار دفهرست لــه مخی ، دیوه موظف هیات پواسطه له کندز څخه دکابل موزیم ته لیږدول شوی چه لدی جملی څخه دیونان یو داسی په ښوونځــی پوری مربوط یوه نیم برجسته لوحه او د بودیس اتوا یوه مجسمه له‌ډېرزړه پوری آثارو څخه یی ده .

**٧ــ په اسلام آباد کــی دځو اســلامــی آثارو ننداز تون :**

داسلامی هیوادونو دجرګی د نمـا ئخنــی او دلاهور ښار دپرانیستل کیدلو په مناسبت ډیر په‌زړه پوری٩ اثرونه‌چه‌دغزنویانودوری په مدنیت پوری اړه‌لری اسلام آباد ته ولیږدول شول اودهغه ځای په ننداز تون کی دننداړو دپاره کیښودل شول. دغو آثارو سره علاقه مندانو ډیره دلچسپی وښودله .

**٨ ــ په جمهوری دریم بختور جشن کی‌د کابل موزیم برخه آخیستنل :**

دکابل موزیم اداره هرکال دجمهوری جشن په ننداز تون کی یو شمیر آثار دننداری د پاره ږدی. د ٥٥ کال دجنګانښ په ٢٦ نیټــه هم نورستانی، دېښتنو او کابل حوزی ګانی دننداری دپاره کیښودل شوی چه دننــداره کوونکو پاملرنه یی‌جلب کړه.دغو ننداړتونونو دکابل موزیم په‌پیژند نه کی ښه نقش درلود.

**٩ ــ دکابل موزیم موجودی :**

٦٣٣ اثرونه په ٥٥ کال کی موجودی‌شوی او دغه روش اوس هم روان دی ،

**١٠ ــ دولایاتو موزیمونه :**

**دغزنی دنوی موزیم جوړیدل :**

دغزنی دنوی موزیم دجوړید لو کار په‌سلو کی لس پرمخ تللی ، سر بیره پــــردی ساختمانی مواد په سلو کی ٩٠ پیرودل شوی چه یوه برخه یی غزنی ته لیږدول شوی ده هیله ده په ١٣٥٦ کال پسی دغزنی نــوی موزیم بشپړ شی .

**افغان فلم :**

دافغان فلم ریاست چه دیوی غیر انتفاعی تصدی په توګه داطلاعاتو او کلتور وزارت په چوکاټ کی فعالیت کوی وظیفه لری تر څو دافغانستان دجمهوری دولت د کلتور ی پالیسی سره سم ، دفلم جوړ ولو صنایع په افغانستان کی تشویق کړی اوهم هنــــری فلمونه چه دافغانی کلتور اوملی ثقافت معرف وی داخبارو او کومنتری فلمونو په څنـګ کی خلکو ته وړاندی کړی . لکه چه لیدل کیږی چه دافغان فلم کوچنی دستګاه چه په حقیقت کی داخباری فلمونو دپروسس یــو لابرا توار دی کولای شی داخباری فلمو نو په څنګ‌کی هنری فلمونه هم‌تولنی ته وړاندی کړی .

افغان فلم سږ کال په لومړی مرحله کی دکمبودو سامان آلاتو دیوی برخی بشپړولو او دفلم جوړولو دچارو دښه تنظیم دپاره‌اقدام

کړی اوزیات اخباری او داکومنتری فلمو نو چی دښار او ولایاتو سینما گانـو تـــه د فلمــونـــو پـــه واردولـو مـوظـف دی او فلم واردول یی په انحصار کی دی دکلتوری پالیسی سره سم هنری ، اروپا ئی امریکایی ختیځو اروپا او ایرانی فلمونه وارد او په سینماگانو توزیع کړیدی ۰

همدارنگه له داخلی او خارجی فلــــم اخیستونکو سره همکاری او مرسته هم ددغی دفعالیتو نو یوه برخه تشکیلوی چه هر یو یی په لاندی ډول توضیح کیږی ۰

**الف ـ داخباری دمستند اوهنری فلمونـو تولید :**

۱ ـ دنیم هنری فلم او په نوی نظـــام کی دپوهنی په بنیادی فعالیتو نو مربوط د سواد دفلم جوړ ول ۰

۲ ـ دکورنی دلار ښوونی ټولنی دنیم‌هنری فلم جوړ ول ۰

۳ـ له‌شوتنگ ځخه‌په پرته دمجسمه هامی خندند دیونیم ساعته هنری فلم دټولو چارو بشپړول ۰

٤ ـ کولمبو ، پاکستان او دبلخ اوجوزجان ولایاتو ته دانقلاب دمشر دمسافرت رنگــه فلمونه ۰

٥ ـ افغانستان ته د ښاغلی بوتو اومیرمن گاندی مسافرت ۰

٦ ـ دجمهوری‌ددریم بختورجشن دمراسمو رنگه او تور اوسپین فلم ۰

۷ ـ دوز لوبی رنگه او تور او سپیـن فلم ۰

۸ ـ دجمهوری دولت‌دلومړنی لویی جرگی د انتخاباتو دجریان رنگه او تور او سپین فلم ۰

۹ ـ دجمهوری دولت ، دلومړنی لویی‌جرگی پرانیستل کیدلو رنگه او تور او سپین فلم۰

۱۰ ـ دهیواد دلومړی جمهـور رئیـس د انتخاباتو فلم په مفصل شکل ، رنگه اوتور او سپین ۰

۱۱ ـ دهیواد دلومړنی جمهور رئیس د تحلیف مراسم ، رنگه او تور او سپین ۰

۱۲ ـ دهیواد دلومړی جمهور رئیس پـه حیث دانقلاب دلار ښود دانتخا بیدو په ویاړ دخلکو دنوی مارش فلم ، رنگه او تور سپین شکل ۰

۱۳ ـ دجمهور رئیس په‌حضور دوسله‌والو قواو دمبارکیو عرض کیدلو دمراسمو اوهمدا رنگه دلوی جرگی دوکیلانوپه ویاړ دننگرهار دخلکو دمارش فلم په رنگه او تور اوسپین شکل ۰

١٤ـ دروز های دشوار فلـم چـــه پـــه شوروی اتحاد باندی پخوا پلورل شوی ددریو کاپیو چاپیدل چه یواځی یوه کاپی یی لیږل شوی وه او اصلاپه ځلورو کاپیوکی پلورل شوی دی ۰

۱٥ ـ دبشر دمیشته کولو او اوبو لګولو رنگه فلم په ۳۵ میلی او ١٦ میلی شکل په دوه نیم ریل کی زر فیتی ۰

١٦ _ دپغمان درنگه فلم بشپړیدل په ١٦ میلی شکل په دریو کاپیو کی په پښتو او انگلیسی ژبو .

١٧ _ دجمهوری بیرغ درنگه فلم بشپړیدل په دریو کاپیو کی ٣٥ میلی او ١٦ میلی .

١٨ _ دعمرانی ،اقتصادی او کلتوری پروژو لکه اوبو او بریښنا ، کانو او صنایعو ،نفت اوگاز ، دپکتیا دپرمختیا پروژی ،کرنی او اوبو لگولو ، دهډی دکیندنو اود غزنی د تاریخی آثارو دکلتوری ننداړتون ، مواصلاتو اونورو پرمختیا یی فعالیتو نو ددیرش ریل زر فیتو توحید او چاپیدل .

١٩_ داوونۍ داتلسو اخباری فلمونو بشپړیدل چه هر یو یی یو ریل زرفیتی احتوا کوی .

٢٠ _ دټاکلی اجرت په مقابل کی ددریو اعلانی فلمو نو جوړیدل .

٢١_ دملی دفاع وزارت دپروژو فلم آخیستل ددغه وزارت له فرمایش سره سم، دغه فلمونه د٣٥ میلی او ١٦ میلی په شکل په دووژبو پښتو اودری او کله په انگلیسی بشپړ ا و ښودل شویدی .

**ب: دخارجی فلمونو واردول اوتوزیع :**

افغان فلم دجمهوری دولت له کلتوری پالیسی سره سم مکلف دی تر څو داسی فلمونه چه روزونکی ، اخلاقی اوټولنیزی جنبی ولری له خارج څخه برابر اوپه سینماگانو توزیع کړی . دهمدغه هدف له مخی، په ١٣٥٥ کال کی یی نه څلویښت پروگرامه هندی فلمونه، اته دیرش پروگرامه ایرانی فلمونه، شپږڅلویښت پروگرامه اروپایی او امریکایی فلمونه چه په فارسی دوبله شوی اوپنځلس پروگرامه دختیزی اروپا فلمونه دخلکو له ذوق اوکلتوری پالیسی سره سم وارد کړل اوپه سینماگانو دښوونو دتنوع په نظرکی نیولو سره دفلمونو دتوزیع پروگرام داسی عیار شوی دی چه دخلکو غوښتنه ده اوننداره چیانو رضائیت یی جلب کړی دی. لکه چه ښکاره ده په تیروخت کی زیاتره بی لزومه فلمونه پرته لەدی څخه چەروزونکی هدف په نظرکی ونیول شی دزیاتی گټی په مقصد دسینمادخاوندانو له خوا وارد اوښودل کیدل. چه دزیان اړخ یی څه له ټولنیز نقطه نظر څخه اوڅه هم داخلاقی اوروزنی له نقطه نظر څخه دگټی تراړخ زیات و. مگر دجمهوری رژیم له منځ ته راتلوسره دفلمونو دواردولو اوتوزیع انحصار په افغان فلم پوری اړه ونیوله اوسینماگانو ته دفلم واردولو او توزیع په چاروکی یو نوی نظم منځ ته راغی . دغه رازهغه فلمونه چه له ١٣٥٢ کال څخه مخکی وارد اوڅو، څوځلی په سینماگانو کی ښودل شوی و، له شخصی سینماگانو څخه راټول اوله دوهم سانسور څخه وروسته یوزیات شمیریی چه دښودلووړنه و اوزاړه او ستړی کوونکی یونړونه یی درلودل دټاکل شوی هیات له خوا وسوځول شول چه شمیر یی دری سوو فلمونو ته رسیدل ددغو فلمونو پرځای ، ښه اخلاقی اوتربیوی هندی فلمونه

شخصی سینماگانوته هم ورکړل شول .

**ج- اداری اوحسابی اجراآت :**

دحسابی دفترونو له بنه تنظیم اودعوایدو کنترول اودفلمونوتوزیع ته له زیاتی پاملرنی سره دافغان فلم عواید دتیرکال په پرتلـه زیات شوی اوزیات خدمات سرته رسیدلی‌دی. دغه رازددغی مؤسسی په اداری چارو کــی سمــی اومنظمــی اسانتیــاوی راغلــی دی . لاس ته راغلی عوایدپه لاندی ډول توضیـح کیږی :

۱- دهندی فلمونو دحق الانحصارله درك څخه ۷۳۰۵۰۰۰- افغانی .

۲- دایرانی فلمونوله عوایدوڅخه کمیشن ۱۹٤۷۰۷۹- افغانی .

۳- داروپایی اوامریکایی دوبله‌شووفلمونو له عوایدوڅخه کمیشن ۷۷۲٦۸۵- افغانی .

٤- دروسی فلمونو د ښودلو عــوایــد ۲۸۵۹۰۳- افغانی .

٥- له خارجی فلمبردارانو څخه کمیشن ۸۷٤۰۰- افغانی .

٦- داخلی فلمبردارانوته داشخاصواوسامان دخدماتوله درك څخه عواید ۲۵۱۹۲۸-افغانی

۷- دواردشووفلمونو دسانسورله درك‌څخه عواید ۱٥٤۲۰۰- افغانی .

۸- دعکاسی څانګی دفعالیت اودعکسونـو خرڅلاو له درك څخه عواید ۱۱٤۹۳۰-افغانی.

۹- د (روزهای دشوار) په‌نامه دافغانی فلم ددریوکاپیوپلورل کیدل ۲۹۳۸۱٤- افغانی .

۱۰- دجمهوری جشن په‌فستیوال کی‌دافغانی فلمونو عواید ۹٥۷۲۰- افغانی .

۱۱- متفرقه عواید ۳۹٦٤٤٤- افغانی .

پدی ډول په ۱۳٥٥کال کی ددغی مؤسسی عوایدودیولس ملیونو افغانیو په‌خواوشاکی‌و. دغه رازله زیات اوبی ځایه لګښت څخه په کلکه مخنیوی شوی اوپه خریداری کی‌عاجل اوزیات اړتیاپه نظرکی نیول شــوی ده .

دهغو سامانانو اوموادو یوه زیاته برخه چه مسلکی څانګوورته اړتیادرلوده، اوڅوکاله نه‌و برابرشوی ددولت له مقرراتوسره سم برابر اوماشینونه بیرته فعال اومربوطی څانګی‌سمبال شوی. ددی ترڅنګه فنی پرسونل هم ددوی دتجربی اوکارله مخی په نوموړوڅانګو کــی موظف شول، اودغه هیله موجوده ده چه په راتلونکی وخت کی ددغی مؤسسی دفعالیت ساحه دموظفو څوانانو اوکارکوونکو په مرسته پراخه شی. دپخوانیو حسابونو دتصفیی په برخه‌کی هم داداری مدیریت په چوکاټ کــی دتصفیی دمدیریت له منځ ته راتلوسره مؤثر ګام اوچت شو په ۱۳٥٥ کال‌کی دحسابــی دفترونو له نیت وپرك اوسپیدوسره، سره‌هغه شمیرڅاری فلمونه چه دافغان فلم له‌تاسیس څخه نه وتصفیه شوی اوپه زرګونو فیتــی اوده فلمونه اوسل ګونو کیلو ګرامه نورمواد دتحویلدارانو اوموظفو مامورینوپه جمع کی قیدو، ټول یی ترتیب اوتنظیم شول اودڅلورو ملیونوافغانیو په خواوشاکی د بــاقیداری حسابونه تصفیه شول . افغان فلم وکړای شول چه‌په ۱۳٥٥کال کی د۱۳٥۱کال بشپړ

کړی . د۱۳۵۲ کال بیلانس به له بشپړیدو وروسته دمالیې وزارت ته وړاندی شی .

**دلرغون پیژندنی اوتاریخی آبداتو ساتنـی لوی مدیریت :**

دتاریخی کیندنو دلمنی پراخولو اودتاریخی آبداتو اوآثارو دساتنی په مقصد دلـرغـون پیژندنی اوتاریخی آبداتوساتنی دلوی‌مدیریت دخدماتو پیمانه په تیرکال‌کی داطلاعاتو او کلتور دوزارت له خواپراخه شویده . دغی اداری خپل فعالیت ته په دوومهمو برخویعنی لرغون پیژندنی اودتاریخی آبداتو ساتنی په ساحوکی دوام ورکړی، ترڅوله یوی خـــوا دکیندنو اوسروی پواسطه دودانیو او لرغونو بنځو آثارو په پیژندنه کـی دګران هیـــواد دتاریخ روښانه‌کولوپه مقصد ونډه ولری او له بلی خوادآبداتوپه ترمیم‌کی دافغـانستان دنجیب ولس دفرهنګی میراث ساتنی او د سیلانیانو جلبولوپه مقصد اساسی مرستـــه وکړی .

دمختلفو کیندنو اوسروی په اثر لـرغون پیژندونکـو، په پخوانیو زمانو کی د برونز له‌دوری څخه ترتاریخی دورو پوری دهیواد دخلکـو داصیل هنر او ژوندانه د طـــرز دزیاتی پیژندنی دپاره ډیرکوښښ کړی دی چه البته ددوی دڅیړنو نتیجی دلرغـونی او ځلانده تاریخ دګوټونو له نشریدو وروسته دونړتنویروی . له دغو څیړنو څخه داســـی معلومیږی چه زموږهیوادنه یواځی دمدنیـت ځلورلاری و بلکه دلویو اومشهورو تمدنونو زانګوهم وه چه دفرهنګ دپراخولو، دهنـــر درواجولو اودټولنیز اواقتصادی ژوند دطـرز دساتنی رسالت یی په تیره بیابه کوشانــی دوره‌کی په غاړه درلود . دآبداتو له ترمیـم سره په ارتباط باید وویل شی چه دزمانی پیښنی، دوخت تیریدل اونه توجه ددی‌سبب شوچه زموږ دهیوادډیر غوره آبدات، دوخت په‌تیریدو سره طبیعی اوقصدی زیان ووینی اوخپل ماهیت اوکمیت کم کړی. له دی‌کبله دآبداتو دترمیم په برخه‌کی دلرغون پیژندنی دلوی مدیریت دکارپروګرام داسی تنظیم شو چه، ترڅودتاریخی آبداتو دترمیم په برخه‌کی پراخ‌کامونه اوچت شی .

دکیندنو او دآبداتو ترمیم په دووساحوکی دلرغون پیژندنی دلوی مدیریت داجراآتولنډیز په لاندی ډول دی :

**کیندنی :**

کیندنی په لاندی ډول په دریوبیلو، بیلو برخوویشل شوی دی :

**الف- دلرغون پیژندنی افغانی هیات :**

دلرغون پیژندنی دلوی مدیریت د لـرغون پیژندنی هیات له یولسوکلونو څخه راپدیخوا دهډی داوبښ په غونډۍ کی کیندنی کوی د۱۳۵۵ کال په ژمی‌کی دکیندنی یو لسمـی دوری ته اقدام کړی اودترمیم او تـاریخـی څیړنوپه برخه‌کی یی دویلووړ نتیجی ترلاسه کړی دی .

دهډی داوبښ دغونډۍ ودانۍ په‌یوه بودایی

معبدپوری اړه لري چه‌له میلادی دوهمی پیړی. څخه ترشپږمی پیړی پوری څونسله دراهبی ژوند هلته تیرشوی اودمختلفو دوروودانیو یودبل په څنګ کی داسی ځای نیولی چه اکثرا له مجسمه لرونکو رواقونو سره ښکلی شویدی . سربیره پردی د اوښ غونډی د(تعمق او تفکر) مغاره په ۱۳۵٤ کال کی کشف شوه، څرنګه چه له آنی خطرسره مخامخ وه، د۱۳۵۵ کال په ژمی کی ترمیم ته یی اقدام وشواوپدی ترتیب دیوه ډیرمشکل ترمیم کارپه ډیرښه شکل بشپړشو .

دغه رازپه یولسمه دوره‌کی، سر بیره پردی چه‌کیندنوته دوام ورکړشو ، دریسرچ په برخه‌کی دسنولیکلوپه مقصد، امتحانی کیندنی وشوی چه نتیجی یی ډیرارزښتناکه دی. په‌دی دوره‌کی ډیری ودانی ترمیم او پوښول شوی .

**ب ـ ګډی کیندنی :**

ددی دپاره چه دلرغون پیژندنی‌دنمایندګانو فعالیت په ثابته توګه روښانه وی ګډی موافقت نامی ترتیب شوی چه دچارو پرمخ بیول په ګډه اومساوی توګه سرته‌ورسیږی.

**۱ـ افغانی اوشوروی ګډهیات :**

دغه هیات له څوکلونو راپدیخوا دهیوادپه شمالی سیموکی په‌سروی بوخت دی اوزیاتره فعالیت یی ددولت آباد دولسوالی تاریخی ځایونوته متوجه دی چه لدی جملی څخه‌یی ددلبرجین په غونډی اوجفه غونډی‌کی په ۱۳۵۵کال کی کیندنی کړی دی . دکیندنو په اثرمهم آثارلاس ته راغلی دی . همدارنګه دډیری دوری دساحودسروی په اثردبرونز دوره اونوری ساحی یی‌کشف کړی دی چه شمیری یی سل ګونوته رسیږی پد غو کیندنو کی دلرغون پیژندنی دلوی مدیریت شپږو تنو نمایندګانوله شوروی نمایندګانو سره همکاری کړی ده .

**۲ـ افغانی اوفرانسوی ګډ هیات :**

د ۱۹۲۲ کال دموافقت نامی دروحییی په اتکاء په افغانستان کی دفرانسی دلرغون پیژندنی هیات غوښتنه وکړه چه دکوکچی او کندز دسیندونو اودهغو دمعاونینو دساحو د لرغون پیژندنی نقشی برابری کړی ، چه ددوی پیشنهاد دساحو دسروی او ژغورنی په مقصد دواکمنومقاماتوله خوا ومنل شو . پدغه اساس فرانسوی اوافغانی ماهران یودبل په همکاری دنقشو برابرولو او په تیره بیا دهغو ساحو پیژندنی اوژغورنی اقدام وکړی‌چه د ډبولګولو دنووپروژوله کبله په خطر کی دی .

په همدغه اساس یی د۱۳۵٦کال په‌پسرلی کی دشورتوغی دلرغونی ساحی په مقدماتی کیندنوپیل وکړ. له لاس ته راغلو آثاروڅخه داسی ښکاری چه دشورتوغی لرغونی ساحه دهیوادشمالی صفحاتو دبرونز ددوری یو ډیره پخوانی ساحه ده اودپخوانی هنرله‌تمدن په تیره بیادهریه‌له تمدن سره دهغه ارتباط په قاطع صورت او پرته له تردید څخه ثابتوی .

**ج- دموافقتنامو له مخې دخارجي هیأتونو کیندنې :**

پدغو کیندنو کې دلرغون پیژندنې دلوی مدیریت نمایندګان دفنی غړو په توګه فعالیت کوی چه له یوی خوا دچاروډیر مختګ څارنه کوی او له بلې خواله فنی نقطه نظرڅخه له خارجي ماهرانو سره دمرستې او همکاری په نتیجه کې زیات شیان زده کوی .

**۱- دفرانسې دلرغون پیژندنې هیات کیندنې په افغانستان کې :**

دفرانسې دلرغون پیژندنې هیات په افغانستان کې د۱۳۵۵ کال په منی کې ددشت قلعې په سیمه په تیره بیا دګریکوباختری په پخوانی ښارکې چه آی خانم نومیږی . کیندنوته دوام ورکړچه ډیری ګټوری اوعلمی نتیجې یې لاس ته راوړی دی . د۱۳۵۶کال په پسرلې کې یې په ښاراودهغه خواوشا ځایونوکی کیندنې وکړی اولرغون کیندنو څخه یې هم ښې نتیجې لاس ته راوړی دی

دافغانی لرغون پیژندنې نمایندګان په کیندنو کې په فعاله توګه برخه لری اوپدغه ترڅ کې یې دآی خانم دلاس ته راغلو آثارترمیم ته هم اقدام کړی دی .

دآی خانم ښار دګریکوباختری په تمدن پوری مربوط دی چه له میلادڅخه مخکې په دریمه اودویمه پیړی کې پدی حوزه کی داسیا له لویو ښارونوڅخه شمیرل کیده اودهغه وخت له اصیل هنرڅخه نمایندګی کوی . په دغه ښارکې دګریک پدیدی دمحلی ژوندا وساختمانی طرزپه قیدکې په داسی شکل سره راغلې دی چه دهغو مطالعه دګریکو باختری آرت ډیـر مسایل روښانه کوی .

**۲- دایټالیې داسیمو دمؤسسې دلرغون پیژندنې دهیأت کیندنې :**

دایټالیې داسمیو د لرغون پیژندنې هیأت چه له څوکلونوڅخه راپدیخوا دغزنی دسردار په غونډۍ کې فعالیت کوی په ۱۳۵۵ کال کې هم دهمدغه فعالیت په لړکې کیندنوته اقدام وکړاوددغوکیندنوپه نتیجه کې یې دلیدووړآثار کشف کړی دی .

د لرغون پیژندنې دلوی مدیریت نماینده دسردارغونډۍ په کیندنوکې مهمه او ګټوره برخه لری . دغزنی دسردار غونډۍ پخوانۍ ودانۍ په یوه بودایی معبد پوری اړه لری چه دکوشانیانوله دوری څخه ترمیلادی اتمی پیړۍ پوری په هغوکې څونسله دراهبـی ژوند تیرشوی دی .

**۳- دجاپان دکیوتوپوهنتون دلرغون پیژندنې دهیات کیندنې :**

دجاپان دلرغون پیژندنې هیأت د ۱۳۵۵ کال په دوبی اومنی کې هم د کابل ولایـت دمیربچه کوټ په ولسوالۍ کې دسکندر پـه غونډۍ کې دتیروکلونوپه شان فعالیت کړی چه په دغه هیات کې دلرغون پیژندنې دلوی مدیریت دنماینده موجودیت، له هرنقطه نظر څخه مؤثرګڼل شوی دی .

داسکندرو غونډۍ دکابل دجوزي دهندوشاهی ددوری دساحوله جملې څخه شمیرل کیـږی

چه ودانۍ یې دکوشانیانوپه دوری پوری اړه لري .

**٤- دبرتانیې دافغان پیژندنې دمؤسســــې دلرغون پیژندنې دهیات کیندنې :**

دبرتانیې دلرغون پیژندنې هیات دکندهار دزاړه ښارپه سیمه‌کی چه په اغلب گمان دافغانستان له پخوانیو اسکندریو څخـه ده د۱۳۵۵ کال په منی علمی فعالیت کړی اود زاړه ښارپه خوځایونوکی کیندنی کړی دی دلرغون پیژندنې دلوی مدیریت نمایندگانو په دغوکیندنوکی فعاله برخه آخیستې او دفنـی کیندنودسیستم په باب یې ځیل معلومـات زیات کړی دی . دکندهار دزاړه ښارکیندنی څرنگه چه نوی پیل شوی، نودغه مساله چه آیازوړښار دهیواد یوه سکندریه ده اوکه نه، حل اوروښانه شوی نده .

**دآبداتو ترمیم :**

دآبداتوترمیم هم دکیندنوپه شان په دریو برخوویشل کیږی :

**الف- دلرغون پیژندنې دلوی مدیریـت دترمیم کارانوپواسطه دآبداتو ترمیم :**

پوشمیرودانۍ او آبدات چه فوری ترمیم‌یې ایجاباوه ، له سروی او مطا لعې نه وروسته داسې تجویز ونیول شوچه دلرغون پیژندنې دلوی مدیریت دگار کوونکو او ددولت پـــه پرمختیایی بودجه‌کی له‌منظورشوو پیسو سره ترمیم شی .

**۱- دهرات دجامع جومات ترمیم :**

له شوگالوڅخه را پدیخوادلرغون پیژندنې دلوی مدیریت ترمیم کارانو، دهیواد له‌ډیرو لویوجوماتونوڅخه دڅغورلو دپاره اقدام‌کړی، چه د۱۳۵۵ کال له دوبی څخه د۱۳۵٦ کـال تردوبی پوری ددوی اجراآت قناعت بښوونکی دی . ددغه جومات ترمیمات زیاتره دجومات له دننه څخه بهرته دواوری اوباران داوبـو ایستلو سیستم اوهم دجومات دبامونو ترمیم ته‌متوجه دی. اوددی دپاره چه اوبه په‌گنبدکی دننه نفوذونکړی له کانکریټی موادوڅخه هم استفاده شویده . جامع‌جومات‌دغوری پاچاهانو په دوره‌کی ودان اودتیموریانوپه پیړۍ کـی بشپړشوی دی . دساختمان طرز اوتزئیناتویې دجومات ښایست نورهم زیات کړی دی .

**۲- په هرات‌کی دگازرگاه شریف ترمیم :**

دگازرگاه شریف آبده چه دهیواد نامتـو عارف اوفاضل خواجه عبدالله انصاری پکښی ښخ دی دتیموریانو ددوری د مهندسـۍ او تزئیناتو شهکار گڼل کیږی څرنگه چه‌دغه غوره‌ودانۍ له‌انی خطرسره مخامخ شوی وه دهغې دترمیم دپاره اقدام وشو .

لومړنی هځی دختیز رواق دبنه ټینگولو دپاره وشوی . د۱۳۵۵ کال په دوبی، منی او ژمی کی دختیزرواق یعنی دآرامگاه دمدخـل دترمیم‌کارپیل شو، چه شوی کارونه قناعت- بښوونکی دی . چه دروان کـال دغبرگولی په میاشت‌کی کارته دوام ورکړشو .

**۳- دبست دکلادکمان اوځاه ترمیم :**

دبست‌کمان دهغو درزونو له کبله چه پکی پیداشوی ، دترمیم وړدی، ترڅو له چټکـو



ماسك تیار مکشوفۀشهر گریکوباختر درآی خانم



رواق شرقی گازرگاه شریف ـ هرات



یکی از مینار های هرات



برج تیموری قلعهٔ اختیارالدین ـ هرات



تزئینات کاشی دروازه شرقی روضه مزار شریف .



روضهٔ مبارک مزار شریف ـ جزئیات هندسی تیموری در قد میر برکت .

مقبرهٔ باباحاتم واقع چمتال ولایت بلخ

تزئینات و خطوط برجسته داخلی مقبره بابا حاتم



مسجد نه‌گنبد بلخ جزئیات تزئینات یکی‌از ستون ها



مسجد خواجه ابونصر پارسا دربلخ درمرحله آخر ترمیم



بودای ۵۵ مترهٔ بامیان

ترمیماتوسره دغوریانو ددوری دغه مشهوره آبده دزمانی له ضررخخه وژغورله شــی . څرنګه چه داستنادی پایوله جوړیدو دمخه دترمیم کارامکان نه درلود، نود ۱۳۵۵ کال په دوبی اومنیکی لهکلکو او مقاومت لرونکو موادوڅخه داستنادی پایو جوړولو کار پیل شوچه پهسلوکی اتیابشپړشوی، دپاتیبرخی کار د۱۳۵٦ کال دغبرګولی په میا شت کی پیل شو .

دبست شاه چهدبست دکلاپهپورتنیبرخهکی ایستل شوی په اغلب ګمان دمغولوپه دوری پوری اړه لری. څرنګه چه اوسنی وضعیی دردونکی ده، بایدترمیم شی .

دشاه دپاکولو کار د۱۳۵۵ کال په منـی اوژمیکی پیل اوسږکال هم دوام وکړداساسی ترمیمکاریی، دبست دکمان له پروژی سـره یوځای دروان کال دغبرګولی په میاشت کی پیل شویدی

**٤ـ دغزنی دمنارو، ددریم غزنوی مسعـود دقبر اوپه غزنی کی دمحمد شـریـف خـان دقبرترمیم :**

دغزنی دغه مشهوری څلوری آبدی تریوه پروګرام لاندی دلرغون پیژندنی لویمدیریت د۱۳۵۵کال ددوبی اومنی دترمیماتو پهپروګرام کی داخل شوی، چه له د ی جملی څخـــه دمحمدشریف خان قبرچه دمغولو ددوری یوه آبده ده . اوددریم مسعوددقبر دترمیم کار پیل شو. دمسعود دقبرپه ترمیم کی، دمقبری دداخلی برخی داساسی ترمیم په مقصــد، پاککاری ته زیاته پاملرنه وشوه. همغه شه چه دغزنوی دریم مسعود او بهرام شاه پــه مناروپوری اړه لری دترمیممقدماتیمطالعاتدی. د۱۳۵٦ کال دچنګابښ دمیاشتی په سر کـی ددغو ابدو دترمیم کاربیاپیل شو .

**٥ـ په غزنیکی دخواجه بقال دقبرترمیم :**

دلرغون پیژندنی دلوی مدیریت کارکوونکو تریوه بیل پروګرام لاندی دخواجه بقال دقبر دعاجل ترمیم اوساتنی دپاره اقدام وکـــړ. داساسی ترمیماتو کاردروان کال دچنګـــابښ په میاشتکی پیل کیږی .

**٦ـ په غزنی کی دخواجه لایخوردقبرترمیم:**

دلرغون پیژندنی دلوی مدیریت کارکوونکی دلوړی ځل دپاره دخواجه لایخورپه نامـــه دیوه قبردترمیم کارد ۱۳۵۵ کال دچنګابښ له سرڅخه پیلکړی . ترڅودغه ابده په څــو میاشتوکی بشپړه شی دخواجه لایخور قبر دمعماری دطرزاوداخلی تزئیناتوله نقطه نـظر څخه دغزنی له مهمو ابدو څخه دی .

**په مزارشریفکی دحضرت (علی)کرماللهوجهه دآرامګاه ترمیم :**

پهمزارشریفکی دحضرت (علی)کرماللهوجه دمزار آبده، څرنګه چه لهتیرووختونو څخــه په غیرفنی ډول ترمیمکاری شویوه، دودانــی وضع. په باموتو باندی د تږاو شوو خاورو دزیات درندوالی په اثرمخ په خرابیدو وه اودبی پروایی لهکبله ورته خطرونه متوجه و. ترڅوچه دلرغون پیژندنی دلوی مدیــریــت کارکوونکو د۱۳۵۵کال په دوبی ، منی اوژمی کی په بولړفنی ترمیماتولاس پوری کـــړ .

چه دغه ممتازه ابده له زیاتوخطرونوڅخه وژغورله شی .

دلرغون پیژندنی کارکوونکو دترمیم په لومړۍ مرحله‌کی په بامونوباندی پرتوخاورو حجم کم کړ اوددغی پاك کاری په نتیجه کی یی دبامونو، گنبدونو اونورو برخو سا ختمانی وضعی په باب معلومات ترلاسه کړ. ددغه معلومات له مخی دترمیم کار تیرکال پیل‌شو اوپه روان کال کی هم له پیش بینی شوی پروگرام سره سم دوام کوی .

**۸ـ په بلخ‌کی دنه‌گنبد د جومات گـاډری پوښښ :**

دنه گنبد جومات چه‌په (حج پیاده) مشهور دی، دافغانستان اومرکزی اسیاله ډیروپخوانیو جوماتونو څخه دی . ددغه جومات د گـاډری پوښښ کار، دلرغون پیژندنی، دلوی مدیریت په لگښت ، دمزار شریف دحرارتی بریښنا اوکیمیاوی سری‌دفابریکودریاست دکارکوونکو له خوارو‌ن دی چه په ۱۳۵٦کال‌کی به بشپړ شی .

**دنیم په نامه دخلم دسرتړلی بازارترمیم :**

دخلم سرتړلی بازار دهیواد د تـاریخـی بازارونو یواځینی نمونه ده چه دوخت‌دخلکو داقتصادی ژوند طرزښیی. څرنگه چه یـو مخصوص ساختمان لری بایدپه عاجل توگه ترمیم شوی وای دلرغونودرودودانیودمعرف په حیث ددغه سرتړلی بازار دساتنی دپاره دلرغون پیژندنی‌لوی مدیریت په ۱۳۵٦کال‌کی دجوزاپه میاشت کی دهغه اساسی ترمیـم پیل کړچه په دووکلونوکی به بشپړشی .

**بـ دگڼووهیاتونوپواسطه دابداتو ترمیم :**

**۱ـ دبامیان د۵۵ متریزه بودا او خواوشا مغارو ترمیم :**

دبامیان ۵۵ متریزه بوداچه دنړی یـوه ډیره لویه اومشهوره مجسمه ده ، پرله‌پسی پیړیوکی له ډول، ډول خرابیو سره مخامخ شوی وه چه فنی ساتنه او ترمیمات یـی ایجابول ، دبیاجوړولو کاریی، دیوه بیل گډ موافقت له مخی دافغانستان په لگښت دهند دلرغون پیژندنی سروی دمؤسسی‌کارکوونکو ته سپارل شوی، په‌دی موافقت لیك کـی په لومړۍ مرحله‌کی د۳۸ متریزه بوداترمیم ته هم ځای ورکړشوی وچه دبیا جوړولـو کاریی پخوابشپړشویدی .

دغه ترمیمات دبـودا دمجسمـی او رواق دلاټینگښت اواستحکام دپاره دی، چه دهمدی مقصدپه غرض درواق په پورتنۍ برخه کـی دواوری اوباران داوبوفرعی کانال ایستل‌شوی ترڅوددا سی زیانونو مخه ونیسی. له‌بلی خوا دمجسمی اورواق نړیدلو اودرزونو چاره هـم دکانکریټی موادو پواسطه له‌برمه‌کاری‌وروسته سنجش اوعملی شوی ده .

همدارنگه دبودا دراهبی دجاموډبرجسته‌گیو تثبیتول اوپښی هم دترمیم په پروگرام کی داخل دی، چه پښی یی بشپړشـوی دی . له بلی خوادرواق ددیوال اودخواوشا مغارو دبرجسته تزئیناتو پـاك کـاری او تثبیـت دلابراتواری موادوپواسطه پیل‌شوی چه‌کاریی سږکال بشپړ یږی .

**۲ـ دهرات دمصلی اواختیار الدین دکـلا ترمیم :**

دترمیم پروژه په دووبرخو ویشله کیږی، لومړی داختیار الدین دکلاترمیم داحیا او د هرات دښارموزیم ته ځای ورکولوپه مقصـد، دوم دهرات دمصلی په تیره بیادمنارو ترمیم.

ددغی لویی پروژی کـار دیونسکـو پـه همکاری دملګروملتو اوافغانی ترمیم کارانو لهخوااجراکیږی چه دلومړنیو اړتیاو لګښـت یی په افغانستان پوری اړه لری .

د۱۳۵۵ کال په منی اودهمدغه کال پهژمی کی داختیارالدین دکلا دځینو برخو دترمیـم اودکلا دلاندنیو ځایونو دترمیم بشپړولودپاره چه دښار حربی موزیم ته پهکی ځایورکول کیږی، کاروشو، ددغو ترمیماتو په څنګ کی، دکلادداخلی اوخارجی برخودوضعی معلولودپاره پاككاری هم وشوه .

دغهرازدمطالعی اوترمیم پهمقصد.دمصلی دمنارو په لاندنیو برخوکی هم پاككاری پیل شوه چه دسږکال دپاره په لومړی مرحلـه کـی دمصـلی دشمالی ختیزمنار او داختیارالدیـن دکلادتیموری برج ترمیم نه دلومړیتوب حق ورکړشویدی چه له سږنی کار سره بـــه دعمومی پروژی دکارپه سلوکی ٤٥ یی بشپړ شی .

**۳ـ دبلخ ولایت په چمتالکی دبابا حاتم دقبرترمیم :**

دغه مهمه ابده چه دسلجوقیانو له دوری څخه ده، له هرحیثه دڅیړنی اوترمیم وړوه، ترڅوچه بالاخره دترمیم کاری دیوه نوی ګډ موافقت لیك له مخی، دفرانسوی دلرغـــون پیژندنی هیات ته وسپارل شوچه تراوسهپوری کاریی ندی پیل شوی، مګردسږوی په برخه کی یی د۱۳۵۵کال په ژمیکی اقدام وشو .

**ج ـ دخارجی هیات پواسطه دابداتوترمیم:**

**۱ـ پهبلخکی دخواجه ابـو نصـر پارسـا دجومات ترمیم :**

دتیموری دوری دغه ډیرښکلی اوارزښتناکه آبده دزمانی له ضرراوورانیو سره مخا مـخ وه، چه داطلاعاتو اوکلتور وزارت په خاصه پاملرنه اودهمندی ترمیمکارانو په مرسته او لګښت دترمیم کاری د۱۳۵۵ کال په منی کی بشپړشو .

دغه ترمیمات دمغهګډ موافقت لیك پـــه اساس وشول چهپه هغهکی دبګرام دکیندناو اودفراه دسیمودسروی چارو ته همځای ورکړ شویدی، اوکاریی دهنددلرغون پیژندنیدسروی مؤسسی لهخوااسرته رسیږی. په دغوترمیماتو کی کوښښ وشوچه له یوی خوا دابدیدرزونو اونړیدلوبرخو ته یوثابت اوټینګ ساختمانی شکل ورکړشی اولهبلی خوانهدمخیتزئینات یی پرته دتصرف څخه پخپلو اصلی ځایونو کی نصب شی. یواځی دګنبدی په برخهکی یی داایجابولو چه کاشیکانی له خپلو اصلـی ځایونوڅخه پورتهاودګنبدی لهترمیم اوخښتـ کاری اودساختمانی وضعی له ټینګښت څخه وروسته. نویکاشیګانی په عین اندازه او هماغه رنګ پرته زیاتوالی اوکموالی څخـه

په پخوانی شکل نصب شی .

**۲ـ دچکری دمنار ترمیم :**

دچکری منار دشاخ برنتې په لوړوسطحوکی چه دکابل ولایت دلوګرله ولایت څخه بیلوی واقع دی اودهیواددااسلامیت نه مخکی آبداتو له جملې څخه شمیرل کیږی چه جهانیشهرت لری .

دغې آبدی ته دجوی اوضاع په اثرزیات زیان رسیدلی و، که دترمیم دپاره یې اقدام نه‌وای شوای بیخی به‌له‌مینځه تللې وای . لدی کبله ددغی آبدی ترمیم کارته داطلاعاتواو کلتوروزارت دلرغون پیژندنی اوتاریخـــی آبداتو ساتنی دلوی مدیریت او دبرتـانیـی دافغان پیژندنی موسسی ترمینځ موافقت لیك کی ځای ورکړ شوچه دلرغون پیژندنی د لوی مدیریت په‌مرسته دبرتانوی موسسی دترمیم‌کارانو پواسطه دترمیم کار د ۱۳۵۵ کال ددوبی په پای کی بشپړشو .

**۳ـ دګلدری دستوپې معبد :**

دګلدری دمعبد اوستوپی ترمیم هم‌دبرتانیی دافغانستان پیژندنی دموسسی په موافقتلیك کی داخل دی، چه په دوومرحلوکی اجراکیږی لومړی دستوپې ترمیم، دوم له پاك‌کاری‌څخه وروسته دهغی دبودادمعبد ترمیم .

دستوپې ترمیم د۱۳۵٦ کال دغبر ګولـی په‌میاشت کی پیل شو. دګلدری ستوپـــه دفرانسی دلرغون پیژندنی دهیات دڅیړنو او ریسرچ په اساس په میلادی پنځم اوشپږم پیړۍ څخه پاتی ده چه دچکـری د منـار او شیوه‌کی له ستوپې سره یې بڼه یوه ده .

**دپښتو پرمختیا اوپیاوړتیا آمریت :**

دغه آمریت خپل تحقیقی فعالیتونه دپښتو مطالعاتوداِنکشاف په لیاره‌کی تنظیم اوتوسعه ورکړ .

دپښتو دانکشاف دپاره په دی موده کـی په‌وروستیو دووبیړیوکی دپښتو دچاپ شویو آثارو دسمینار دمقدماتو برابرولو د پښتـو دپرمختیا اوپیاوړتیا آمریت ته د سیمینار د مرکزی دفترپه توګه‌ددی موقع په لاس ورکړه چی دپښتوژبی دپرمختیاپه لارکی ځینی‌داسی چاری سرته ورسوی چی هره یوه یې ځانګړی علمی ملی اوبین المللی ارزښت لری‌دسیمینار مقدماتی چاری چی داطلاعاتو اوکلتور دوزارت له خوا دهیواد دعلمی اوفرهنګی موسسو او پوهانو په مرسته روانی وی سرته رسیدلی دی او'وس دسیمینار په مناسبت دچاپیدونکو کتابونو دچاپونی چاری داطلاعاتو او کلتور دوزارت دپښتو دپرمختیا اوپیاوړتیا دآمریت دتاریخ دټولنی دفولکلور دآمریت، بیهقـــی دکتاب چاپولو دمؤسسی ، همدارنګه دپښتو ټولنی دهیواددنشراتی مؤسسی دانیس‌نشراتی مؤسسی د کابل پوهنتون ، حربی پوهنتون اودښوونی اوروزنی دوزارت دتالیف اوترجمی دریاست له خواروانی دی .

په اټکلی توګه (۳۵) ټوکه کتابونه ددغه سیمینارپه مناسبت چاپیږی چی په دی‌جمله کی (۱) کلیدافغانی دپادر هیرزاثر (۲)ګلشن روه درواړي ټولونه (۳) دیونس خیبردیوان (٤) پښتوموقوته مطبوعاتو پیژندنه دبناغلی

رفیع اثر (٥) دافغانستان نومیالی دریم ټوک ښاغلی بینوا دغه کتابونه دپښتو دپرمختیا او پیاوړتیا دآمریت له خوا چاپیږی .

دپښتو چاپی آثارو په سیمینار کی نسبتا زیاتوفرهنگی اوتعلیمی موسسو برخه اخیستی ده دپښتوبین المللی څیړنو مرکز حربی پوهنتون اودننګرهار پوهنتون هغه فرهنگی اوتعلیمی مؤسسی دی چی دلومړی ځل دپاره په دی سیمینار کی برخه اخلی .

په دی سیمینارکی پهچی د٥٦کال دژمری دمیاشتی په ١٥ نیټه جوړیږی (٤٠) تنه افغانی پوهان برخه واخلی همدارنگهسیمینار ته دبیلوبیلو هیوادونو (٣٩) تنهپوهان رابلل شویدی .

یوه په زړه پوری موضوع داده چی دپښتو دلومړنی چاپ شوی اثریعنی دګولډن شتیت دژبنی اولهجوقاموس دپښتوبرخی میکرو فلم چی په (١٧٨٧م) کی چاپ شویدی .

اوتراوسه دپښتو لومړنی چاپی اثر بلل کیږی دپښتودپرمختیا اوپیاوړتیا دآمریت په هڅه دشوروی اتحادڅخه دفرهنگی همکاریوپه لړکی داحمدشاه باباديوان دخطی نسخی دمیکروفلم سره یوځای رارسیدلی دی .

لکه څنګه چی دخط اختراع تاریخی دوره تاکی دیوی ژبی ادبی تطورتاریخ کی لومړنی ټوندل شوی چاپی نسخه هم داسی یوتاریخی اهمیتلری په دی لحاظ دګولډن شتیتدقاموس پښتو برخه دهغوپه زړه پوری چاپی آثارو څخه ده چی پههغی باندی دعلمی کارکوونکو وروسته به چاپ شیاودپښتودچاپی آثارو په هغه نندارتون کی به وښودل شی چی دسیمینارپه مناسبت جوړیږی .

نوری هغه نادری چاپی نسخی چی دعلمی کتنواو څیړنونه وروسته په آفسیټی تو گـه دمربوطو تعلیماتوسره یوځای خپاره شی .

دپښتو نخوا شعر هارو بهارد (دارمستـر فرانسوی اثر) کلید افغانی (دپادرهیوزاثـر) دپښتومنتخبات(ددورن‌اثر)گلشن روه د(راورتی اثر). داکتابونه چی دکم پیداکیدو له امله یی دنادروقلمی نسخو اهمیت پیدا کـړی دی پښتوپوهانوته دڅیړنی پراخی زمینی برابروی اوپه وروستیو دووپیړیوکی دپښتو د پـاره دچاپ دحروفو دبرابرولوپه لویوهڅوړڼاچوی.

ددی کتابونوپه جمله‌کی دپښتونخوا او شعر دهاراوبهار کتاب دهغه دمحتویاتوپه سبـب دڅیړنی یوه ځانګړی پروژه راپیدا کړی ده چی دیوشمیر نامتو اوتکړه افغانی څیړونکو اوپوهانو له خوااوربانډی کارروان دی .

لهدی پروژی څخه څینی لاس ته راغلـی اطلاعات څرګندوی چی افغان پوهانو دنامتو ختیځ پوهانو دنویو څیړنوپه استنادپه‌آریائی ژبوکی پښتومهم مرکزی‌موقعیت تثبیت‌کړیدی.

همدارنگه دغه سیمینارموقع لری چی‌دنادرو چاپی نسخوترڅنګ یوشمیر قلمی نسخـی (داحمدشاه بابا دیوان د سرباني قصیــده داحمدشاه باباداشعارو پښتو شرحه . معرفت افغانی) دتعلیقاتو سره یوځای چـاپ کړی .

ددی کتابونوپه برابرښت اومربوطو ځانګو ته دهغودسپارلو په برخه‌کی دپښتو دپرمختیا او پیاوړتیاآمریت دسیمینار دمرکزی دفتر پـه

توکه خپلی وظیفی سرته رسولی دی .

یوه بله موضوع چی دپښتو دپرمختیا او پیاوړتیادآمریت یوه پرمختیایی مرحله یی تثبیت کړی ددی آمریت له خواد (جمهوری پلوشه) په نامه دیوی نوی دوه میاشتنی مسلکی مجلی تاسیسول دی .

ددی مجلی لومړنی گڼه د٥٥کال دتلی په میاشت‌کی خپره شوه اوتراوسه پوری یی څلورگڼی راوتلی‌چی هره‌گڼه‌یی په سلومخونو کی خپره شویده .

«معیاری پښتواوپه پښتوکی معیاری ادب» ددی مجلی دهدف لنډیز دی چی دمجلی په لومړنی گڼه‌کی د اطلاعات اوکلتوردوزیرپوهاند دوکتورنوین په پیغام‌کی په لاندی ډول‌څرگند شویدی .

«دپښتوژبی ته خدمت کول زموږیوه مهمه ملی وظیفه ده، یوی ژبی ته خدمت‌کول دوه مهم اړخونه‌لری، لومړی داچی ژبی ته‌دملی غایی په حیث اهمیت ورکړل شی . په دی صورت‌کی لازمه ده چی دژبی دتعمیمولو په لاره‌کی دژبی دگرامرلغوی اوادبی خصوصیاتو په باب دیوی انقلابی هڅی په‌توگه دهغی دلیك دوداوفونیتیك دسمون په باب کار وشی اوپه‌دی توگه دژبی دلهجو اواملائی وحدت‌چی دملی وحدت دپاره اساسی وظیفه ده سرته ورسوی، دوهم اړخ یی دادی چی ژبه‌دافهام اوتفهیم دوسیلی په‌حیث په سمه توگه په ټولو تعلیمی، اطلاعاتی، ارشادی او کلتوری ساحوکی په‌کارواچوله شی» .

دجمهوری پلوشی مجلی کارکوونکودهمدغو هدفودترسره کولو دپاره خپلی هڅی نه دی سپمولی لکه چی ددی هڅوپه جریان کی دپلوشی مجلی دپښتودفونیټیك په عامواو کی چی یوه نوی ضروروی اوگټوره موضوع د ه یوځه وړاندی گامونه اخستی دی .

دپورتنیوچارودسرته رسولوترڅنگ دپښتو دپرمختیا اوپیاوړتیا دآمریت له خوالاندینی کتابونه نوی چاپ شویدی :

١ـ لوی پیرغوث الاعظم .

٢ـ دشرق نابغه سیدجمال الدین .

برسیره پردی دغه آمریت دپښتو ټولنی اودپښتوڅیړنو دبین المللی مرکزاوڅینونورو فرهنگی موسسو سره دخپلی همکاری سلسله جاری ساتلی ده .

### دعامه کتابخانو آمریت :

په یوه تیرکال کی د٧٧ـ١٣٩١٣٧ـ افغانیو په معادل (٤٧٢١) ټوکه کتابونه ددغه آمریت دپلان او احصائیی مدیریت دزیارپه اثر له کورنی نشراتی منابعو څخه دعامه کتابتونو دپاره لاس‌ته راغلی‌دی . ټولی‌جریدی، مجلی اونوری خپرونی دمرکزاوولایاتو عامه‌کتابخانو ته لیږل شویدی .

دکتابتونونودښه سمبالیدوپه مقصدضروری وسایل لکه الماری، دمطالعی میز، څوکی اودعامه کتابتونونو دضرورت وړنور ضروری موادچه زیاتره یی فلزی دی برابرشویدی . دبدخشان، میرېچه کوټ اوبادغیس عا مه کتابتونونه اود مرکز دعامه کتابتون یودوی څانگی له یوشمیرعلمی اوگټورو کتابونو،

المارۍ، ميزاوڅوکۍ سره سمبال اوتقويه شويدي .

په ولاياتوکې دکونړدولايت اوکاپيسا دلوی ولسوالۍ اوداندخوی دولسوالۍ کتابتونونه اوپه مرکزکې دزرنګارپارك ښاري کتابتون پرانستل شو. ددغو ولاياتوکتابتونونه هريو له دوو زروټوکو زيات کتابونو، دورځپاڼواو مجلوله کلکسيونونو اوضروري وسايلو سره تاسيس شوي، چه داوس دپاره ددغو دريو کتابتونونو له پرانيستل کيدوسره په ولاياتو کې دعامه کتابتونونو شمير ديرشـــو تـــه رسيدلی دی .

دعامه کتابتونونو دپاره (٥٤١٧٧٨) افغانيو په بيه (٢٦٣٢) ټوکه خارجي‌کتابونه پيرودل شوي دي .

(١٥٩) ټوکه خطي کتابونه په (٢٤٩١٥٠) افغاني او (١١٥٨) قطعي آرشيفي اسناد په (١٤٢٠٠) افغـــاني پيرو دل شـــويـــدي . پيرودل شوي کتابونه او دعامه کتابتونـــونـــو عمومي آمريت ته بښپل شوي آثار دکتلاك او تصنيف دمديريت دلاري کارت اوکتلاك شوي اوشعبوته توزيع شويدي . چه ددغو کتابونو شميرله (٦٠٠٠) ټوکوڅخه زيات دی . پــه مرکزکې دمطالعې د زياتې اسانتيا د پـــاره دکتابونو دشميرکارتونه نوي کړی شوي دي اوهم دخپنونورو مؤسسو کتابتونونه ددغـــه مديريت دمؤظفينو له خواتنظيم اوکتابونه يې کارت اوکتلاك شوي دي .

يوشمير کورنی اوخارجي پوهانو دخطـــي کتابتون له خطي کتابونوڅخه استفاده‌کړيده، دغه رازدخطي‌کتابتون‌مديريت دسيدجمال‌الدين افغان په سيمنار کې برخه درلوده اودپوهانو دضرورت وړموادي برابرکړل . دمسلکـــي کسانو ترنظرلاندي دخطي کتابونو دفهرست برابرولو کارپيل شويدی اوهيله ده چه ډير ژردخطي نسخوفهرست يوه برخه برابره او چاپ ته آماده شي . همدارنګه د سنايـــي غزنوي دکلياتوکتاب چه يونادر اثردی، پـــه مطبعه کې عکاسي اوپه افسيتي توګه چـــاپ شويدی اوهم دځينوخطي آثارو مکرو فلم چه خارجي اوداخلي څيړونکو ورته اړتيادرلودله، هغوی ته برابرشوي دي .

دريفرنس، مطالعې، افغانستان پيژندنې او مجلودخانګو دمراجعينو شمير (١٣٤٢٨٧)تنو ته رسيدلی دی . دخوانانودکلپ اودزرنګار پارك دښاري خانګې مراجعين په يوه‌کال کې (١٩١٦٨) تنوته ورسيد. دتوزيع دخانګـــي دګډون کوونکـــو شمير (١٦١٥٥) تنه‌دی . دتاريخي آرشيف دترميم‌کارپه سلوکې (٩٠) بشپړشوي، اوکله چه دايرکنديشن اوشلف سامان او لوازمات ورسيږي اونصب شـــي تاريخي آرشيف به هم افتتاح اوپه فعاليـــت پيل وکړي .

دپروان دعامه کتابتون کار بشپړ شوي او نوي ودانۍ به‌يې ډيرژر پرانستله شـــي . دجمهوري دولت دفرهنګي اوکلتوري پاليسۍ په پيروۍ اودخلکو په تيره بيا دپوهانو او زده‌کوونکو دورځ په ورځ زياتيدونکې فرهنګي اړتياپوره کولو په مقصد، داطلاعاتو او کلتور وزارت په نظرکې لري چه دشهرارا بـــرج

ته نژدی په ۱٤ جریبه ځمکه کی چه جمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد عامه کتابتونونو او ملی تیاترته ببښلی ده، ددولت دپرمختیایی اوه‌کلن پلان په‌چوکاټ‌کی یوعصری اوسمبال کتابتون ودان کړی، دپیش بینی شوی پلان له مخی په‌دغه کتابتون کی بایدله دوومليونو ټوکوځخه زيات کتابونه ځای شی، سربیره پردی به دمطالعی لوی سالونونه، دکنفرانس کوټی، سینمااودکتابونو دصحافت او ترمیم اومکروفلم ځانگی اوهغه ټول شیان ولری چه باید په یوه عصری کتابتون کی دی .

ددغه علمی مرکزجوړیدل دغه‌موقع برابروی ترڅودیوی خوانه دعامه ازهانو روښنانه کولو په لارکی دخدمت مصدروگرځی اوله بلی‌خوا نه دجمهوری دولت لوړواهدافوته پـراختیـا ورکولوپه برخه‌کی چه بنسټ یی د چنگابښ د۲٦ نیټی‌دانقلاب په‌کلتوری اوعرفانی‌پالیسی باندی ولاړدی، بریالی گامونه اوچت کړی .

**دمطبوعاتی اوکلتوری جوایزوآمریت :**

دمطبوعاتی او کلتوری جوایزو آمریـت د۱۳۵۵ کال دوړی په میاشت کی دجوایزو دمطالبو فهرست چه‌په هغه‌کی داقتصادی او ټولنیزی ودی، فرهنگـی او سیاسی ودی، تاریخی مطالعاتو، ادبی څیړنومربوط موضوعات اودښځواو ښکلو هنرونو مربوط موضوعـات مشخص شوی وترتیب اودجوایزو دعلاقمندانو دخبرتیا دپاره چی غوښتل یی پدی برخه‌کی آثار تدوین اود ۱۳۵۵کال دجوایزو د پاره کاندید کړی، دمرکز اوولایاتو په ورځپاڼوکی نشرکړترڅو دهیواد لیکوالان، څیړونکـی او هنرمندان هغه موضوعات چه‌دوی یی په نظر کی لری له‌دغه فهرست انتخاب اوتر هماغه عنوان لاندی دموضوع په باره کی څیړنـی وکړی اوخپل آثارله‌تدوین اوبشپړولووروسته دجوایزو دپاره کاندید کړی .

له هغه ځایه‌چی‌دکوچنیانودښوونی اوروزنی دکوچنیانودخلاقه استعداددروزنی اودکوچنیانو دذهنی اوروحی روزنی مربوطو مسایلو پـه برخه‌کی اساسی ریسرچ اوڅیړنه نده شوی اوپه اوسنیو شرایطو کی زمونږ ټولنه په‌دغو موضوعاتوکی لازم موادوته ډیره اړتیا لـری دهیواد لیکوالوته په‌دی ساحه کی په ۱۳۵۵ کال‌کی مشخص جوایز په‌نظرکی ونیول شول اودهیواد په ورځپاڼوکی له مختلفو اعلانونو سره دلیکوالانوپاملرنه جلب شوه .

ددی دپاره چه پوشمیر هغو کوچنیانوته چه دښکلو هنرونوپه ځانگوکی استعداد لری موقع ورکړی شی ترڅوپه هنری ځانگو کـی خپل استعداد ښکاره کړی دجوایزو آمریت په ۱۳۵۵ کال‌کی دکوچنیانو دپاره په هنری ځانگوکی مشخص جوایزپه نظرکی ونیول او له څلورم ټولگی ترشپږم تو لگـی پوری دښوونځیو د سلوتنو شاگردانو آثاریـی، دکوچنیانو دجوایزو دپاره کاندیدکړل .

دهغو کوچنیانو داستعداد تثبیتولو د پـاره چه خپل آثاریی د۱۳۵۵ کال جوایزو تـه کاندید کړی عملی ازموینه واخیستـل شـوه اوالرونه یی دجوایزودامریت له خوا مربوط کمیسیون ته وړاندی شول .

همدارنگه دجوایزو آمریت دښکلوهنرونوپه څانگه کی دهیواد دهنرمندانو تقریبا (۲۵۰) اثرونه په ۱۳۵۵ کال‌کی ومنل چه دواکمنو کمیسیونونو له خوادنوموړو اثرونوله‌ارزیابی‌ وروسته دهغوکسانو نومونه تثبیت اواعلان شول چه جوایز یی گټلی و .

دمطبوعاتی اوکلتوری جوایزو آمریت په ۱۳۵۵کال‌کی دداستان‌نویسی، ژورنالیزم، ادبی څیړنو، فولکلور اودکوچنیانو د ښوونـی او روزنی دتاریخی موضوعاتو په څانگو کـی دتالیف او ترجمی تقریبا (۳۰) اثرونه چه دهیواد دلیکوالانو او مترجمینو له خوا تدوین شوی و، ومنل اونوموړی کتابونه، دارزیابی دپاره مربوطو کمیسیونونو ته وړاندی شول چه له ارزیـابـی څخـه وروستـه ډیروښو آثاروته دجمهوری نیکمرغه جشن په دریم تلین‌کی جایزی ورکړی شوی .

(گفتار دل انگیزاز صفحات شمال کشور) فولکلوریك اثردخوشحال خان دگروپ دوهمه جایزه، (تلویزیون) دژورنالیزم په څانگه‌کی دسیدجمال الدین افغانی دگروپ دریمه درجه (ابومسلم خراسانی) تاریخی‌اثردامیرعلیشیر‌ـ نـوائـی د گـروپ دریمـه درجـه جایـزه (پـه افغـانستـان کـبی د څـارویـو مهـم رنځونه) زراعتی اثردابن سینای‌بلخی دگروپ دریمه درجه جایزه .

(رهنمایی مادر) دکوچنی په ښـوونی او روزنی پوری مربوط دابن سینـای بلخـی دگروپ دریمه درجه جایزه، یوه جـایزه . (حقوق اطفال دراسلام) حقوقی اثردسیدجمال‌ـ الدین افغانی دگروپ دریمه درجه جایزه ، یوه جایزه .

**هنری آثار چه په ۱۳۵۵ کال یی جایزی گټلی :**

**دمیناتوری په څانگه کی :**

۱ـ دبهزاددگروپ لومړی‌درجه یوه‌جایزه.

۲ـ دبهزاددگروپ دوهمه درجه‌دوی‌جایزی.

۳ـ دبهزاددگروپ دریمه‌برخه دوی‌جایزی .

**دروغنی نقاشی په څانگه‌کی :**

۱ـ دجامی دگروپ لومړی درجه‌یوه جایزه.

۲ـ دبهزاددگروپ دریمه درجه یوه‌جایزه.

**نوری هنری څانگی :**

درحمان بابا دگروپ دریمه درجه، پنځه جایزی .

**دکوچنیانو هنری آثار :**

۱ـ دنقاشی هغه آثارچه دجامی دگـروپ جوایزیی گټلی څوارلس جایزی .

۲ـ دخطاطی آثارچه درحمان بابا دگروپ جوایزیی گټلی دوی جایزی .

۳ـ دشبکه‌کاری آثارچه درحمان بابادگروپ جوایزی گټلی دوی جایزی .

٤ـ دستنی گنډلو آثارچه درحمان بابا د گروپ جایزه یی گټلی یوه جایزه .

پدی څانگه‌کی دجوایزو وړونکو دجوایزو ټولی پیسی دوه سوه اوپنځه څلویښت زره افغانیو ته رسیږی .

**په ۱۳۵٦ کال‌کی دجوایزو اجراآت :**

دجوایزو آمریت د۱۳۵٦ کال دمطبوعاتـی اوکلتوری جوایزو فهرست چه داقتصادی او ټولنیزی ودی مسایل، فرهنگی ، سیاسی ،

تاریخی، ادبی، دکوچنیانو دښوونی اوروزنی موضوعات، دلویی جرگی اومحلی جرگو تاریخچه اوډیشخو مسایل په کی شامل دی ترتیب اودهیواد دلیکوالانو دخبرتیا دپاره د۱۳۵۵ کال دتلی په میاشت کی دمرکز اوولایاتو په ورځپاڼوکی نشر کړچه دهغه په اثر (۵۰) تنو لیکوالانو، څیړونکو او مترجمینو دخپل نومونه دجوایزو په دفترکی ثبت کړل .

دغه راز دهیواد (۱۰۰) تنو، د نقاشی، خطاطی، میناتوری، مجسمه جوړولو، حکاکی اودښکلو هنرونو په نوروڅانګوکی خپل نومونه ثبت کړل .

د(۵۰) تنو لیکوالانو له جملی څخه چه پخوایی خپل نومونه ثبت کړی و، (۳۰) تنو خپل اثرونه چه په اقتصادی، تاریخی، ادبی، زراعتی اوحقوقی موضوعاتوکی څیړنو څخه عبارت دی ښیږاو دجوایزو آمریت ته یی وسپارل .

دهغو هنرمندانو له جملی څخه چه دښکلو هنرونو په څانګوکی یی خپل نومونه ثبت کړی و، (۸۰) تنو دنقاشی، خطاطی، میناتوری، حکاکی مجسمه جوړولو، موزائیك اونورو څانګو کی خپل ډیرآثار دجوایزو اداری ته وسپارل چه دغه آثار په فورموکی درج اودغوراو ارزیابی دپاره دجوایزو کمیسیونوته راجع شول .

دجوایزو امریت دهغو کوچنیانو داستعداد دتشویق لپاره چه په هنری څانګوکی دروزنی وړاستعداد لری، له آزموینی وروسته د(۳۵) تنو آثار په ۱۳۵٦ کال کی دکوچنیانو دجوایزو دکاندیدی دپاره ومنل .

دجوایزو آمریت دهغو آثارو دتصنیف له مراحلو وروسته چه د۱۳۵٦ کال دجوایزو دپاره منلی شویدی دواکمنو کمیسیونونو پواسطه دهغود تشخیص اوارزیابی په برخه کی اقدام وکړ .

دجوایزو آمریت دهغو هنرمندانو دآثارو پیژندنی په مقصد چه په ۱۳۵٦ کال کی مطبوعاتی اوکلتوری جوایزو دپاره کاندیدی دی، ددغو آثارو نندارتون چه شمیر یی (۳۰۰) ته رسیږی اودنقاشی، میناتوری، خطا طی او مجسمه جوړولو ډیری ښی تابلوګانی دی، دغوایی له ۱۷ څخه دغبرګولی تر ۱۲ نیټی پوری په کابل نندارې کی دایرکړ. له دغه نندارتون څخه مقصدله یوی خوانه دهیواد دهنرمندانو تشویق اوله بلی خوانه تولنی ته ددوی داستعدادونو پیژندنه ده .

هغه کسان چه د۱۳۵٦ کال مطبوعاتی او کلتوری جوایز یی ګټلی دی، دواکمنو کمیسونونو له خوادآثارو له ارزیابی وروسته دجوایزو دعالی دکمیسون په غونډه کی چه د۱۳۵٦ کال دچنګاښ په ۲۰ نیټه داطلاعاتو اوکلتوردوزیر په مشری وشوه، انتخاب اودجمهوریت دجشن دخلورم تلین په مناسبت اعلان شول .

**دفولکلور اوادب آمریت :**

دفولکلور اوادب دهنراوولسی ادبیاتو مدیریت چه وظیفه یی دخلکو دهنری پدیدو څیړنه، ټولونه، تحلیل اومطالعه ده، دپخوا په شان خپلو مطالعاتوته دوام ورکړ .

دغی څانګی وکړای شوچه دکابل پوهنتون دیوشمیر استادانو په همکاری دپوهانو او

خیړونکو پاملرنه دولسی ادب تحلیل اوتړولنی تهجلب اودفولکلوری فرهنګی اوتړولنیزوپدیدو دپیژندنی زمینه دراتلونکو مطالعاتو د پاره چمتوکړی . دفولکلور داختصاصی کتابتون دپاره دکتابونو دلست برابرول او دکتابونو پیرودلو چاری دهمدغه مدیریت له خواترسره شویدی، چه پدی توګه بهپه راتلونکی وخت کی یومجهزکتابتون دفولکلوردمحترم خیړونکو دخدمت دپاره چمتو وی .

**ددود اودستور مدیریت دعادی وظائفـــو له سرته رسولو سربیره دغه مواد بـرابـر کړیدی :**

۱ـ لنډی ها نمایانګر نقش د ر ادبیـات عامیانه است .

۲ـ اصطلاح فولکلوریك سیاهسر .

۳ـ پخته تکانی یاندافی .

٤ـ (ولسی پوهه کتاب) ترنشرلاندی دی.

٥ـ تاوه خانه .

٦ـ نمد، برك، شال، لباس های پشمـی محلی .

۷ـ مراسم عروسی درغزنی .

۸ـ طرزتهیه فالوده .

۹ـ دخدرانو دولسوالی فولکلوری طبابت، لکه دنامه وتل اونیول .

۱۰ـ زخه، شینی، غولنګی .

۱۱ـ دوژنی (پوستکی) اغوستل .

۱۲ـ غنډی، ژبی، اډی، سیغی .

۱۳ـ ولسی لوبی لکـه ډای ډی، بیبوی ، مردکی .

۱٤ـ دشپیتو (٦۰) متلونه .

۱٥ـ ولسی دودونه کتاب .

۱٦ـ دخولنډیو ټولول .

نوموړی مطالب چه دوه ټوکه کتاب اوپاتی یی مقالی دی په تیرکال‌کی برابرشوی چه ځینی یی نشراویوشمیر یی ترچاپ لاندی‌دی.

**دفولکلور مجله :**

دهیواد دفولکلوری او فرهنګی مطالبوپه‌باب ددغی مجلی دچاپ لړی دوام‌لری. دغه‌مدیریت په عین حال کی یوزیات شمیر مضامین پخپل آرشیف کی راغونډوکړی چه دضرورت په‌وخت کی به ورڅخه استفاده وشی، دفولکلورمجلی هره ګڼه په (۱۰۰) مخونوکی چاپیږی .

**افغان ننداری :**

دغی موسسی دهنری ښوونو او فلمـونـو ښودلو اودهنری استعدادونو روزنی په برخه کی خپل خدمات په تیرکال‌کی په لاندی ډول تعقیب اودخپلو امکاناتو په حدود کی پراخه کړیدی :

۱ـ د (کورخود بینای مردم) په نامه ډرامه په ٤ر۱ر٥٥ کی شروع اوپه ۱٤ر۳ر٥٥ ختم کی شوه، ټوله پنځه اویاځله .

۲ـ دخواجه عبدالله انصاری دسیمینـــار افتتاحیه غونډه دکابل ننداری په تالار کـی د۱۳٥٥ کال دغوایی په ۹ نیټه .

۳ـ درادیو افغانستان دهنرمندانو کنسرت دافغان ننداری په همکاری له ۲٤ر۳ر٥٥څخه تر۱۸ر۱ر٥٥ پوری .

٤ـ دخارجی هنرمندانو ډرامی اوکنسرتونه.

الف: په جمهوری ارګ‌کی د خـارجـی هنرمندانو دافتتاحیه ښوونو په مراسمو کی

همکاري . د۱۳۵۵ دچنگابن له ۲۷ نیټې څخه دزمري تردوهمې نیټې پورې دخارجي هنرمندانو ښوونې، دشپې له خواپه غازي ستدیوم کې چې ښوونویې دزمري تردویمې نیټې پورې یې دوام وکړ .

ب: دشوروي هنرمندانو ښوونې په ۱ر۵ر۵۵ نیټه .

ج: دچینایي هنرمندانوښوونې له ۳۱ر۵ر۵۵ څخه تر۴ر۶ر۵۵ پورې .

۵ـ د(خارهای صلح) ډرامه چه ښووونویې له ۲۸ر۶ر۵۵ څخه تر ۱۷ر۷ر۵۵ پورې دوام دراود، دپوهنتون دمحصلینو دبلنې په ګډون ټوله ۲۱ څله . د یوګـوسلاوې د ټروپ دکنسرتونو دایریدلو په برخه کې همکاري .

۶ـ د (دووبنو) ډرامه، چه ښوونـو یــې له ۲۲ر۹ر۵۵ څخه تر۲۰ر۱۰ر۵۵ پورې دوام وکړ، دپوهنتون دمحصلینو اواستادانو دبلنې په‌ګډون ټوله ۲۷ څله . سربیره پردې‌درادیو دذهني مسابقو پروګرامونه هره سه شنبـه په کابل ننداري‌کې دایر کیږي اودستیج‌ټولې مربوطې چارې یې ددغې مؤسسې دفنـي او مسلکي ادارو له خوانرسره شوي دي .دکال په‌اوږدوکې دافغان ننداري دهنرمندانوله خوا مختلفې ښوونې، دمیرمنو ټولنه، ښوونځیو، پوهنتون اوعسکري قشلوکې ښودل شوې او دنارنج‌ګل په میله‌کې ددغې مؤسسې دخانګو اوپرسونل له‌خوامرسته شوې‌ده . دافغانستان دجمهوري دولت دلومړني لويي جرګې پـه منـاسبـت د (دوی بنـی) (طـلسم ازدوج) (هیپي ها) او (وارخطا خسر) په نامه څلور ډرامې په ترتیب سره د۱۳۵۵ کال‌په ۱۲ او ۱۸ نیټه دلويي جرګې دمحترمو نمایندګـانـو دپاره ښودل شویدي . څلورفلمونه هم‌دلويي جرګې محترمونمایندګانوته وښودل شـول . سربیره پردې‌دکابل ننداري دوڅانې په‌لومړۍ اودوهم پوړکې‌دپلان دوزارت له خوادمربوطو وزارتونوپه همکاري په جمهوري بختوره دوره کې دهیواددپرمختیایي پروژو اوخدماتومعرف ننداړتون ترتیب اوتنظیم شوی و، دغه راز د‌اطلاعاتو اوکلتور دوزارت له خوا کـلتوري ننداړتون ترتیب شوی وچه د لويي جرګـې محترمو غړودغه دواړه ننداړتونونه وکتـل . وروسې د(شربت غیرت) په‌نامه کمیډي ډرامه په ۱۹ر۱۲ر۵۵ کې شروع شوه دداخلي او خارجي ښوونو اوډراموله ښودلو څخه‌سربیره د۱۳۵۵ کال له پیل څخه ترپایه پورې (۳۶) ایراني نوي اوتکراري او (۵) هندي فلمونه په‌کابل ننداري کې ښودل شویدي . دغه‌راز په‌کابل کې د دوستو هیوادونو سفارتـونـو دخپلوملي ورځوپه مناسبت خپلې ښوونې په کابل ننداري کې وښودلې اودایټالوي فلمونو فستیوال دیوې هفتې دپاره په‌کابل ننداري کې ترتیب شوی و .

**دمستظرفه صنایع آمریت :**

دمستظرفه صنایع آمریت یوه هنـری موسسه ده چه خپل هنري فعالیتونه دډیزاین، فریم جوړولو، نمایشونو، دنقاشۍ کورسونو اومجسمه جوړولو له لارې په مخ بیایي . ددې موسسې هنري خدمتونو په لاندې څلورو ساحوکې تنظیم اوتوسعه موندلې ده :

۱ـ دځوان او باذوقه هنرمندانو تربیه چې دنقاشۍ او مجسمه جوړولو په څانګه کې لاس ولري .

۲ـ دهنري آثارو نمایش .

۳ـ دهنري تابلوګانو او کلاسیك هنر ی مجسمو تولید اوتهیه .

٤ـ دفریم تولید اودمختلفو مدرنوجوکاټونو جوړول .

ددې موسسې اساسي هدف دیوه کلتوري اوتربیوي مرکز په مختلفو څانګوکې لکه دنقاشۍ مجسمه جوړول اوفریم جوړولو کې برخه اخیستل چې دتاسیس له ورځې څخه تراوسه پورې نه یواځې دباذوقه شاګردانو تربیه دنقاشۍ اومجسمه جوړولو په څانګوکې په نظرکې و، بلکه ددې ساحې فعالیت یې دامکان ترسرحده پورې غزولې یا پراختیا ورکړېده .

دلومړي ټولګي دنقاشۍ په کورسونو کې شاګردان په اوله‌کې پنسلي اوپه‌دوهم ټولګي کې دآبي رنګ اوپه دریم ټولګي‌کې دروغني رنګ کارول وروسته د عمومي ازموینې له اخیستلووروسته څخه دمربوطو استادانو ترپاملرنې لاندې تعقیب اووروسته لوړټولګي ته موفق کیږي .

تراوسه‌پورې اضافه له‌پنځه سوه‌وپنځوسو تابلوګانو او د(۵۰۰) په شاوخواکې مجسمې دمجسمه سازۍ دکورسونو دشاګردانوله خوا تولید اودنمایش دپاره آماده شویدي چې‌پس له درې کلونو څخه نوموړي زده کوونکي دمستظرفه آمریت دتربیوي کورسونو فارغان شمیرل کیږي .

دا مؤسسه د مشهورو او تاریخي څیرو په ترسیم اودسیدجمال الدین افغاني مولانا جلال الدین بلخي، امیرخسرو بلخي، دقیقي بلخي، فارابي، خواجه عبدالله انصاري دتابلوګانې جوړ اوله چوکاټ کولو څخه وروسته هغه دسیمینارونو په دیوالونو کې نصب کړي .

همدارنګه دافغانستان نندارتون په‌بنګلاکې په جمهوري جشن‌کې زیاته همکاري کړېده. اوهم په ۱۳۵۵کال‌کې دویزاین یابنګلادڅانګې په واسطه درنګه تابلوګانو په ترسیم کې زیار ایستلی و، اودخواجه عبدالله انصاري دکالیزې په مناسبت چې په‌کابل ننداري کې دهغه دیزاین برخوکې چې دافغانستان د جمهوریت دپاره یې په نندارتون‌کې ښودلې دي مرسته کړې ده .

دآزمویني اخستل چې د (۵۵) مطبوعاتي جوایزوپه هکله ددې موسسې له خوا شوي خوکوم نمایشونه چې په‌دې اداره‌کې سرته رسیدلي دي هغه د هغو کورسونو ښودنه‌وه چې دنقاشي آثاريې دښاروالۍ درستورانت په نوي ماني‌کې ایښودل شویدي او دننګرهار دښاروالۍ دغنمنوي میلې‌دپاره چې دنارنج‌دګل دیوې هفتې دپاره په جلال آبادکې وشوله .

۲ـ دافغانستان اوهند دکلتوري معاهدې په اساس دهندې هنرمندانو بوټیك آثار دایرول اونمایش دکابل ننداري په دریم پوړ دلس ورځوپه موده‌کې د۱۳۵۵کال دجوزا په میاشت کې .

۳ـ دمستظرفه آمریت دکورسونو دآثارو دایرول اونمایش ددریم بختور جشن په مناسبت داطلاعات اوکلتور دوزارت په معینه غرفو کی .

٤ـ دپامیرورونو دنقاشی اولاسی صنایعو دآثارو دایرول اونمایش داماتور هنرمندانو دتشویق اوترغیب په خاطر دکابل ښاروالی په سالون ددواونیو په موده‌کی د۱۳۵۵دقوس په میاشت کی .

٥ـ دمیناتوری او سرامیک د هرات هنرمندان دایرول اونمایش دکابل ښاروالی په سالون کی دتشویق اودمملکت باستانی هنردلس ورځو په موده د۱۳۵۵ کال دقوس په میاشت کی .

٦ـ دتجسمی اوسرامیک آثارو دایرول او نمایش دلومړی لویی جرگی په‌مناسبت دکابل ننداری په‌دویم پوړکی دددواونیودپاره د۱۳۵۵ کال دسلواغی په لسمه .

۷ـ دنقاشی آثار دایرول دافغانستان او شوروی دکلتوری‌قرارداد‌په اساس په تاشکند اومسکوکی .

**دموسیقی آمریت :**

دموسیقی آمریت دافغانی اصیل موسیقی دپرمختیا په خاطردیوه تربیوی مرکز‌په‌حیث کوښښ کړیده چی‌دموسیقی‌دپرمختیااو پیاوړتیا اودخوانانو اونوی هنرونو خیرو‌په روزنه کی یی دقدروړ خدمتونه وکړی ، ددی مقصد دپاره یی هڅه کړیده چی دیوه هنری منظم پلان په لرلوسره گټور فعالیتونه په لاندی توگه سرته ورسوی :

دموسیقی داونیزی دپروگرامو ترتیب او تنظیم چی په‌اونی کی شپږ نوی آهنگونه چی دجمعی په‌ورځ داوریدونکی غوږته‌رسیږی. چی داپروگرام د (کاروان سرود) او (یک شاخه گل) ددی مدیریت له خواتقدیم‌کیږی. اوهم (پروگرام کاروان سرود) چه دشرقی آرکسترله خوا په زړه خوښوونکی سازونو، رباب، آرمونیه، کلارنت، طنبور، دروی (توله) او ډول (طبله) یکښی شامل ده .

دموسیقی آمریت دهنرمندانو دتکړه هنرمندانو آوازونه اونوی خیری آهنگونه دهنرعلاقمندانو ته وړاندی کیږی آرکستر هره ورځ په مشق اوتمرین دنوی آهنگونو کی پنځلس ورځی‌کار کوی اوپه‌دی پروگراموکی کوښښ کیږی چه ترخواکثرآهنگونه نوی اوتازه وی. موسیقی اوتصنیفونه یی دتکړه آهنگ جوړونکی او معاصر شاعرانوله خوابرابر شی .

دموسیقی دآمریت بل پرو گرام چی د (یک شاخه چندگل) په نامه نشر کیږی اماتور آرکستر پکښی شامل ده چی دغزل موسیقی له آلاتو څخه دخوانو هنرمندانو په واسطه استفاده تری کیږی .

دهیواد اماتوران زړه وړونکی اوخوښوونکی آهنگونه گران اوریدونکی ته‌وړاندی کوی اودکار طرزیی شرقی آرکسترته ورته ده اوپه یوه اونی‌کی شپږ پښتو اودری آهنگونه‌جوړ اونشرته یی سپارلی دی .

دموسیقی دآمریت دشرقی آرکستر اواماتور آرکستر تولیدی اوهنری کارونه درادیو یی پروگرام په نشرولو کی خاص موفقیت لری.

نوی آهنگونه چی پەروان کال‌کی دموسیقی دآمریت له خوالبت اودراډیو په آرشیف کی موجود دی .

۲۴۰ نوی پارچی چی په پښتو او دری آهنگونه اودجمهوری ترانی اوبهاری پارچو شخه عبارت دی دپخوانی او نوی سندر غاړو اوهنرمندانو له خوا ویل شویدی . نوی څیری ۲۱ تنه دی چی دموسیقی آمریت له‌خوا روزل شویدی اونوی آهنگونه ورکړشویدی .

۲ــ دکنسرتو ترتیب دملی ورځوپه خاطر په مرکز او ولایاتوکی جوړ شوی چی‌عبارت دی دنارنج‌گل میله په ننګرهارکی اوپه مرکز کی دمعلم دورځی په مناسبت، دمور ورځ ، سره میاشت دپوهنتون دمحصلینو اودمعارف شاګردانو دپاره کنسرت اجرا شویدی .

دااداره یوخاص‌پروګرام دجمهوری دلومړنی لویی جرګی په مناسبت ترتیب او دنمایش دپاره وړاندی کړ .

۳ــ دموسیقی آمریت، تربیوی کورسونــــو دایر کړیدی چی یو شمیر دزده کـوونکـی په هغه‌کی جذب اودتربیی لاندی نیول‌شویدی. داکورسونه دیوشمیر د موسیقی علاقمنـــدان اوبااستعداده خوانان تربیه‌اواجتماع ته‌وړاندی کړی چی داکورسونه دداخلی او خـــارجـــی استادانو له خواتدریس کیـــږی او۳۸ کسه دموسیقی په زده‌کړه مشغول دی .

۴ــ دموسیقی آمریت‌دافغانی اصیل‌موسیقی دمعرفی کولوپه خاطر مواد ترتیب اودضرورت په وخت‌کی یی دداخلی اوخارجی مراجعینوپه اختیارکی ورکړیدی .

**اداری ریاست :**

**اداری خدمات :**

ددغه وزارت اداری چاری اوخدمات داداری ریاست دمربوطو مدیریتونوله خوایه تیرکال کی په لاندی ډول اجرا شویدی :

**دخدماتو مدیریت :**

دوزارت ددایرو دضرورت وړموادوبرابرول اوپیرودل، دمیلمستیاو مقدماتی ترتیبات اود پیسوانتقال ، دترانسپورتی وسایلو ترتیب اوتنظیم ، ددفترونو اوتحویلخانو ترتیب او تنظیم، دودانیو اودنورو املاکو ثبت اونـوری مربوطی چاری ددغه مدیریت له لاری ترسره شویدی .

**دماموړینو مدیریت :**

دماموړینو دمقرری، تبدیلی، حاضری او نوری مربوطی چاری، داستخدام، سوانح او حاضری دمدیرتونو له خوا اجراشوی دی په تیرکال کی دادبیاتو پوهنځی دژورنالیزم دخانګی ۵۳ تنه فارغان، ددولسمو ټولګیو(۶۱) تنه فارغان، او (۴۴) تنه هغه ماموړین چه عسکری خدمت یی سرته رسولی، (۱۲) تنه دموافقی په اساس له نورو وزارتونو شخه او (۱۱) تنه نورچه په خارج‌کـی یـی خپل تحصیلات پای ته رسوی استخدام شویدی . دغه راز (۱۱۲) تنه تاییستان اومستخدمین مقرر شوی دی .

**دبودجی اوپلان مدیریت :**

دبودجی اوپلان مدیریت له دووبرخو شخه تشکیل شوی چه‌یوه برخه‌یی په‌عادی بودجی اوبله برخه‌یی په پرمختیایی بودجی پوری

اړه لري .

**الف ـ دبودجې څانګه :**

۱ـ په فورموکي دوزارت دعادي بـودجـې ترتیبول، دمالیې دوزارت دپاره .

۲ـ دمرکز اوولایاتو دټولو واحدونو ترتیب اوتشکیل .

۳ـ دمالیې له وزارت څخه درېع دتخصیصو غوښتنه اودهغې تعدیلات .

**ب ـ دتصدیو دارتباط څانګه :**

دکالني بیلانس سره دتصدیو دبـودجـو کنترول اوتعقیب اودغه رازدمالیې له وزارت سره دهغو ارتباط .

**ج ـ دپلان څانګه :**

داطلاعاتو اوکلتور دوزارت دټولو مربوطـو پروژو دکالني پرمختیایي بودجې ترتیب، او دمالیې وزارت ته دهغې لیږل .

۲ـ دمالیې له وزارت څخه دپروژو دهرې ربعې دتخصیصو غوښتنه، تعقیب اومربوطـې پروژې ته خبرورکول .

۳ـ دپروژو څخه دهغو داجراآتواوفعالیتونو دراپور ونو غوښتل اودپلان وزارت ته ددغو راپوروونو لیږل .

**د ـ داحصائیې څانګه :**

۱ـ دټولو مربوطو واحدونو داحصائیـوي ارقامو راغونډول اومرکزي احصائیې ته دهغو لیږل .

۲ـ دهغې احصائیې دشاخص راغونډول چه لەمرکزي احصائیې څخه رسیږي، اومربوطـو څانګوته ددغې احصائیې لیږل .

**دحواله جاتو اومحاسبې مدیریت :**

الف: دوزارت دټولو دایرو دلګښت‌حوالې، دمصرف دڅانګې له خواترتیبیږي .

ب: د وزارت اوټولو مـربـوط واحدونـو معاشونو، پیشکیو ، اضافه کارۍ حـوالې دمعاش دڅانګې له خوااجرا کیږي .

**ددفتر داري مدیریت :**

دکال منظور شوي عادي اوپرمختیایي‌بودجه دمالیې له وزارت څخه دکال په څلورو ربعو کې دمالیې له وزارت څخه رسیدلې په دفتر کې معامله اودبودجې له منظورۍ سره سـم دوزارت دمرکز اومربوطو موسسو حـوالې تصنیف اواجراشوي دي .

**دتصفیې اوتحصیلي مدیریت :**

دغه مدیریت د۱۳۵۵ کال له پیل څخـه ترختمه‌پورې‌څوارلس ملیونه ویوسل‌واته‌دیرش زره اودوه سوه اوڅلوراویاافغانۍ لەاشخاصو اودولتي دایرو څخه تحصیل او د هغـوي حسابونه یې تصفیه کړي دي او په یوسـل دري دیرشو محاکماتي اوحسابي دوسیوباندې نوي‌کتنه شوي اومربوطو مراجعو تـه لیـږل شویدي .

**دآرشیف مدیریت :**

له وزارت څخـه مـؤ سسو او نــورو مراجعوته دلیکونو رسول، اودمرکز دآرشیف مدیریت دایروته درسیدلو لیکـونو لیـږل ددغه مدیریت وظیفه ده .

# دسید جمال الدین افغانی دمړینی اتیایمه کالیزه

ځرنګه چې جمهوری دولت د افغانی ټولنې عرفانی ، کلتوری ، تاریخی ، او سیاسی افتخاراتو اودهغو بانیانو او دهغو کسانو اوپوهانو چې پښتنې ټولنې، ثقافت، کلتور اوخپلې خپلواکۍ دلاس ته راوړلو دپاره یې زیارونه اوبړونه ګاللي دي دژوندانه دحالاتو دخېړنې ستاینې اویادونې لړۍ پیل کړیده .

نودادی پدې لړۍ کې دجمهوری په بختور نظام کې داخل دهیواد دستر او نومیالی مجاهد اوفیلسوف کلك مسلمان، سترسیاست مدار، متفکر ،عالم ،مبارز شخصیت ، انقلابی خوان اونابغه شخصیت دعلامه سیدجمال الدین افغانی دمړینې اتیایمې کالیزې دیادونې اوستاینې غونډه د ٥٥ کال دکب دمیاشتې په اتلسمه نیټه دسهار په لسو بجو د اطلاعاتو او کلتور دوزارت لخوا دراډیو ا فغانستان په سترتالارکې پرانستله شوه .

دسید جمال الدین افغانی دمړینې اتیایمې کالیزې یادونه د دې ځرګند ونه دی چه دسید ملي اوبین‌المللي شخصیت ددې خاورې زامنو او دوستو هیواد دیاده تندې وتلی او دده لوړ شخصیت او درنښت تل دخلکو په زړوکې ژوندی‌دی اوواړه په واړه دعلمي غونډو په جوړیدو سره دجمهوری بختور په پراخه لمن کې په احترام سره ونمانځل شي .

سید جمال الدین افغانی په ۱۲٥٤هـ کال کې دګران ا فغانستان په ختیځه خواد کونړ په اسعدآبادکې دسیدصفدرپه‌کورکې زیږیدلی اوپه ۱۳۱٤هـ ق کال په‌ترکیې‌کې مړشویدی

په ۱۳۲۳ کال کې د افغانستان او دوست هیوادترکیې په‌موافقه دسید عظام رمیم کابل ته راوړل شول چې‌په خاص درنښت سره دکابل پوهنتون په باغ‌کې، دعلومو پوهنځي په خواکې خاوروته وسپارل شول .

د سیا جمال الدن افغانی د مړینې دیادونې کالیزه لومړی دقرآن عظیم الشان دځومبارکو ایاتوپه لوستل کیدو اودملي سرود له‌خپریدو وروسته دانقلاب د لارښود د جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد په‌هغه پیغام سره چې پدې مناسبت یې صادر کړی ؤ دبهرنیو چارو دوزارت معین ښاغلي وحید عبدالله په‌لوستل کیدو پیل‌شو. د انقلاب‌لارښود جمهور رئیس ښاغلي محمد داؤد په‌خپل پیغام کې ویلي دي .



ښاغلی وحیدعبدالله دبهرنیو چارو دوزارت معین پداسی حال کښی چه دجمهور رئیس ښاغلی محمدداؤد پیغام دعلامه سیدجمال الدین افغانی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی دغونډی

«دختیځې خاوری دستر تولنیز شخصیت سیدجمال الدین افغانی لـه مړینـې څخـه د اتیاکلونو دتریدو له‌امله دزیاتې خوښـې ځای دی دهغه ستر مصلح دزیږیـدنې پـه هیوادکې دکورنیو اوبهرنیو پوهانو په‌ګډون علمی سیمینار جوړ یږی .

سید جمال الدین افغانی له هغو مبـارزو اوجګړه مارو میړونو څخه‌دی چه دخپل ژوند محتوای یې دختیځې خاوری رنځور او خپلـو ولسونو ته‌په خدمت کولوکې لګاوه .

په‌هغه تکه توره زمانه‌کـې چه مسلمـــان ولسونه له‌خپلې هستې اوطاقت څخه غافـل اودخپلو نیکونو له پرتمنې او ویاړونو څخه لرې‌پاتې اودژوند له‌شور څخه وتلی‌د استعمار په منګولوکې ایسارؤ سید جمال‌الدین افغانی په ایمان اوهغه شورسره چی‌دتیرو پیړیـــو مسلمانان راپه زړه‌کوی راپورته شو اود نا- پوهی، نفاق له‌تیارو اوله استبداد او استعمار سره‌یې مبارزه وکړ .

د دغه افغانی نابغه مبارزی اوجګړی دهغو آزادی غوښتونکو او وطنپالودپاره چه پـــه بیلابیلو اسلامی هیواد کښې یې‌د استعمـــار اوظلم په‌خلاف دمبارزی‌بیرغ اوچت‌کړه‌دیرښه سرمشق شو.

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد دخپـل پیغام په‌پای‌کې دعلامه سیدجمال الـدیـن افغانی د علمی سیمینار برخه والوپه باره‌کې دارنګه یادونه کړیده .

امید لرم افغانی څیړونکی او میلمانه‌پوهان چه پدغه علمی غونډه کې یې برخه اخیستې ده دسید جمال الدین افغانی دعقاید و راپور او ژوندانه په شاوخواکې په خپلو څیړنوکې بریالی شي » .

وروسته بیا د مصرعربی جمهوریـــت د جمهور رئیس ښاغلی محمد انور السادات پیغام د دوی دخاص استازی استاد توفیـق عویضه له‌خوا ولوستل شو .

د مصر جمهوررئیس ښاغلی انورالسادات د حضرت سید جمال الدین افغانی دنمانځنې د غونډی په مناسبت پخپل پیغام کې ویلی دی .

«وروڼو اوخویندو ! السلام علیکم ورحمة- الله وبرکاته دذغـــه بختـور پـه مناسبت په غنیمت بللوسره چی تاسی دستر پیشقـدم لاربښودسیدجمال الدین افغانی یادونه نمانځنې زما ورور د افغانستان د جمهوریت رئیـــس ښاغلی محمدداؤد اودافغانستان دروند حکومت اود افغانستان دوست ملت تـه ډیـر پـاك دردونه اوزیات سپیڅلی دوستی او نیکـی هیلی وړاندی کوم له‌شکه پرته زما دخوښی او دمصر دولس د خوشحالی سبب دی چی دسیدجمال الدین افغانی دیادونوپه نمانځنې اوپه مصرکی دده دستـرو آثـارو یـادونـه اوپه ټوله اسلامی نړۍ کی له تاسو سـره ملګری شم. دی په‌زښتیا سره‌په مصـر او اسلامی نړۍ کی دسیاسی او ټولنیز نهضت دپیشقدمانو څخه ؤ دنولسمی پیـړۍ لـــه ورو ستیو وختو نو څخه‌یی په سرلوړی‌مناعت

اوعزت سره ډیوه ولګوله دزړور زړه، دروغ عقل، ګوياژبې اوډېر خپل دين باندی لهټينګی عقيدې څخه پرته بلهوسله نه درلوده لهدی امله د هيڅ واکمن څخه ونه ويريده اولـه تبعيد باشړلو ياد ازولو او تهديد څخهونه ويريده اوهغه وخت چی انګليسانو ده تــه دسوډان دتخت وعده ورکړه دده زړوورتوب کیکمی رانغی په خپل جذاب شخصيت پراخی پوهی اونيکو هيلوسره يی دمصر زيــات ځوانان اومشران ځانته جلب کړل چی د ده په شاوخوا کی راغونډ شول اود ده لهفيض څخه يی ګټه واخيستله او هغوی هريو پدی باب داصلاح په برخهکی يوقايد شو .

علامه سيد جمال الدين افغانی پهمصرکی اته کاله تيرکړل چی پدغه مودهکی يی پـه سياست اوغير سياست کیخپل نظر خپورکړ اودهغه پوزيات شمير بچيانو د ده دمعرفت لهپاکی چينی څخه ګټه واخستله .

دا کفايتکویچی د احمد عرابی او عبدالله النديم او محمد عبده او مصطفی کامـــل او سعدزغلول اونورويه شان د مصــر ديــــو شمير زامنو نومونه واخلو .»

وروسته لههغه چیدمصر دښاغلی جمهـور رئيس پيغام واوستل شو وروسی د عــراق د جمهور رئيس ښاغلی احمد حسن البکـــر پيغام پهکابل کیدعراق دلوی سفير استـــاد ناصر عبد القادر الحديثی له خوا ولوستـل شو .

دعراق ښاغلی جمهور رئيس په خپل پيغام کیدد علامه سيد جمال الدين افغانی د مړينی د اتيامی کاليزی دیادونی په مناسبت ويلی دی: «داستبداد او استعمار دهغه سر سخت دښمن او د اسلامی تفکر د يوهستر مشــر د داصلاح او تجدد او آزادی او ټولنيز عدالت د د احيانو ديوه ډير زړور يعنی سيد جمال الدين افغانی ديادونی لهامله ستاسی دزيار منه اوشکريه اداکوم پدغه تاريخی مناسبـت تودهرکلی اونمانځنه په ښه کــار بــاندی د اعتراف رښتيانی او صادق تعبير بلل کيږی چی د وست افغانستان يوه ورځ اسلامـــی نړی اوعربی خاوری ته دختيځ ستــر نابغــه او مصلح وړاندی کړ .

اسلام ولسونو اوعرب ملت ته ارز ښتناك سوغات چی عقلونه د آزاد او شريفانه ژوند په لارهکی روانکړی داسی ژوند چی استعمار نولسمی پيړی په وروستيو وختوکښی دختيځ لهخلکو څخه پټ کړیؤ زمونږ دمسلما نانو اوعربو وجيبه ده چی پدغه وخت کی چـــی ديوويشتمی پيړی په درشل کــی ولاړ يــو دمسلطی لټونی پهخلاف دسيدجمال الديـــــن افغانی دعزم او تعميم پرمعيارونو مبارزهوکړو او دسيد افغانی دطاقت او ثبات په شان د صيهونست په مقابل کی خپلی جګړیتهدوام ورکړو اودسيد افغانی په شان پهپوهه او عقل سره پولاس يوموټی شو .

د عراق ښاغلی جمهور رئيس دخپل پيغام پهپای کی دغونډی برخه والو اوټولنهکوونکو ته ددغه جاودان مصلح ديادولو په باره کی

دکامیابی اوبر یالیتوب هیله وکړه .

کله چې د جمهوریت د موسسس ښاغلی محمد داؤد، او مصر دعربی جمهوریت اود عراق دجمهوریت د ښاغلو جمهور رئیسانو پیغامونو ولوستل شول وروسته بیاد ښهرنیو چارو دوزارت معین ښاغلی وحید عبدالله د خپلی وینا په ترځ کی وویل : داطلاعات او کلتور وزارت ډیر زیات خوښ دی چې د جمهوریت په بختوره دوره کی د علمی‌سیمینار په جوړلو دعلامه سید جمال الدین افغانی دلوړ مقام د ختیځی خاوری دستر ټولنیز مصلح او سیاسی لوړ شخصیت نمانځنه کوی .

ښاغلی وحیدعبدالله دهیواد ددغه نومیالی زوی دکارونو په شاو خواکی داوږدی وینا په ترځ کی وویل :

سید جمال الدین افغانی خپلی مبارزی په خپل ټاټوبی افغانستان پوری منحصری نکړی بدی لیږکی شوچی دخپلواکی غوښتنی او آزادی غوښتنی خپل سپیڅلی رسالت لمن په ټول عالم کی خپره کړی افغانی سید ددغه مقصد دترسره کیدو دپاره هند، ایران، مصر ترکیی او شوروی اتحادته سفر وکړ او اصلاحی او دآزادی غوښتنی خپل نبوغ په یوخاص ولس خلکو اوقوم پوری محدود اوانړوند نکړ په‌هر هیوادکی‌یی دسعد الزغول د مصری شیخ محمد عبده او عبد القادرمغربی په شان یی نامتو پوه مبارز وطن پال اواتل شاگردان و روزل چې تاریخ د هغوی‌نومیالی نومونه په پوره ویاړ سره‌په خپله سینه کی ساتلی او ثبت‌کړیدی.

ښاغلی وحید عبد الله، دسید افغانی په افکارو آثارو او مبارزو باندی رڼا واچوله اودخپلی وینا په پای‌کی یی وویل : هغو درندو اوښاغلو پوهانوته دزړه له کومی ښه راغلاست په ویلوسره چې دسفرربړی یی گاللی اوله لری اونږدی هیوادو څخه زمونږ هیوادته راغلی دی امیدلرم هغه علمی غونډی چې‌د کورنیو اوبهرنیو ماهرانو په گډون کیږی د افغانی دغه سید نابغه بچی په افکاروعقاید او آثاروباندی دخیړنی په‌کارکی بری وموی همدارنگه د دغی علمی غونډی په تالارکی د کابل پوهنتون رئیس پوهاند ډاکتر غلام صدیق محبی، دپښتو ټولنی رئیس خیړنوال محمدصدیق‌روهی اوهم‌دیونسکواستازی ډاکتر مکند اودهیواد د دغه‌بصیراونو میالی‌شخصیت دژوندانه آثارو اوتفکر په‌باب ویناوی‌وکړی .

وروسته افغانی پوه ښاغلی عبدالوهاب طرزی دهیواد دپوهانو په نمایندگی یوه وینا وکړه اوپه هغې‌کی یی وویل :

د علامه سید جمال الدین افغانی دنمانځنی دغونډی جوړیدل چې دهیوادنومیالی زوی او د لومړی جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد په تجویز او اراده په‌کابل کی کیږی دهغی مینی او ویاړنښه ده‌چې د افغانستان ملت یی دوطن د دغه ستر او نو میالی زوی‌د اسلامی نړی له خدمتگار دختیځی نړی له خدمتگار او دبشریت له خدمتگارسره په زړونوکی لری.

دغه راز دمصر د اسلامی شئونو داعلا مجلس په نمایندگی په ختیځ کی دسید جمال الدین رئیس ښاغلی توفیق عویضه دمیلمنو پوهانو افغانی دمبارزو په باب دخپلی وینا په ترځ کی وویل :

پدی کی شك نشته جمال الدین افغانی یو داسی سړی وچی په هری ممکنی وسیلی سره یی د استعمار اوسلطه غوښتنی په خلاف مبارزه کوله. ده د استبداد رژیم په غندنی سره عقیده درلوده چی باید خلك دشورادلاری د خپل هیواد چاری ترسره کړی. جمال الدین افغانی په هندکی دهمغه وخت د استعمار په خلاف خلك راوپارول .

سد جمال الدین افغانی دمصر خلك دملی حکومت دجوړ یدو دپاره وهڅول .

ښاغلی عویضه دخپلی وینا په پای کی و ویل :ختیځ خلك د دغه شان نومیالی مننه کوی .چی دختیځ او اسلام دنهضت اودتمدن د انقلاب دلار ښود په توگه یی اسلامی ولسونه یووالی یو لاس اویو موټی کیدوته راو بلل.

استاد توفیق عویضه دخپلی وینا په پای کی وویل : لکه څنگه چی عربی او اسلامی نړۍ دحق او عدالت دلاری د دغه مبارزیه شخصیت باندی ویاړی پدی کی شك نشته چی ورور افغا نستان د دغه ستربچی ا و نومیالی په نامه باندی چی په همدی ځای کی روزل شوی اوافغانستان ته منسوب دی ویاړو کړی .

په ننی ټولنه کی دسیدجمال الدین افغانی خومعقولی او دغه رازدسید شعرونه اودهغه په باب داستادانو قصیدی دغونډی په جریان کی د راډیو افغانستان دنطاقانو اویوه پوه له خواولوستل شوی . همدارنگه په دغه ټولنه کی دسیدجمال الدین افغانی دستایلو په باب دیوشمیر افغانی لیکوالو اوشاعرانو شعرونه اومقالی ولوستل شوی .

دهیواد دنومیالی زوی علامه سیدجمال الدین افغانی دنمانځنی افتتاحیه غونډه دپای ته رسیدو وروسته ددوستو هیوادو پوهانو هیاتونه ترغرمی وروسته په دوه نیمو بجو د پوهنتون په انگړکی دهیواد دنومیالی فیلسوف سید جمال الدین ا فغانی قبرته ولاړل پدغه وخت کی دبهرنیو چارو دوزارت معین ښاغلی وحید عبـــد ا لله د جمهـــو ر ر ئیس ښا غلـــی محمـــد داؤد لـــه خـــوا د علامه سید جمال الدین افغانی په قبرباندی دگلوگیډۍ کیښودله وروسته بیا د دوستوهیوادو او افغانی پوهانو دستر مجاهد روح ته یی له دعا کولو وروسته دسید افغانی پرقبر باندی دگـــلانو گیـــډۍ کیښودی .

دغه راز د اطلاعات اوکلتور اوپوهنـــی د وزارتو له خوا دسیدپه قبرباندی دگلانواميلونه واچول شول. دعلامه سید جمال الدین افغانی دقبر سیمه په ملی بیرغونو او دهغو دوستو هیوادو په بیرغونو باندی چه دسید دنمانځی په غونډه کی د هغوی استازو برخه اخیستی ښکلی کړی شویده .

پدغه وخت کی له استانبول څخه ترکابل پوری دعلامه سید جمال الدین افغانی دتابوت

دراوړ لو د جریان رساله چه دکابل پوهنتون چاپ کړی وه پهحاضرینو باندی و ویشــل شوه . دغه ز از دغوپوهانو ترغرمی وروسته په دری نیموبجو دکابل موزیسم آثار هــم وکتل دسیدجمال الدین دمړینی داتیایم کال دنمانځی په غونډهکی برخه وال بیگاه شپهپه هغه میلمستیا کی برخه در لوده چـــــی د اطلاعاتو او کلتور وزارت د دوی په ویاړپه انترکانتی ننتال هوټل کی کړی وه .

# دسید جمال الدین افغا نیدسیمینار علمی غو نډی

**لومړی غونډه ۱۹ر۱۲ر۵۵**

د هیواد دنومیالی فیلسوف علامه سیـــد جمال الدین افغانی دمړینی داتیاکلونودتیریدو د بین المللی سیمینار علمی غونډی دسهار په نهو بجوپه انترکانتی ننتال هــوټل کــی پیل شوی .

لومړی د سیمینار د غونډی دکړ نــلاری پهباب دیوه افغانی پوه لهخوا رڼا واچـــول شوه وروسته لههغه چی د دوستو هیـــوادو پوهان معرفی شول درائیو په اتفاق افغانی پوه ښاغلی محمدعثمان صدقی ترغرمی دمخه دغونډی درئیس په توگه وټاکل شو .

دغه رازافغانی پوه ښاغلی اشرف غنـــی دعلامه سد جمال الدین افغانی دنمانځـــی دغونډی دبین المللـــی سیمینار دمنشـــی او ښاغلی حبیب الرحمن جدیر د دایمی راپورتر په توگه وټاکل شول .

وریسی افغانی پوهانو پوهاند عبدالحـــی حبیبی او خیرندوی عبدالله خدمتگار دحضرت سید افغانی دنسبت تاتوبی اوژبو پهبارهکی خپلی مقالی ولوستلی اودغه راز ترکی عالم پرو فیسورعبدالقادر قره خانپه ترکیه کـــی دسید جمال الدین افغانی دتولنیزو فعالیتونو په باب خپل مضمون واوراوه .

ترغرمی په دمخه غونډهکی دحقوقواوسیاسی علومو دپوهنځی په چوکاټ کی دسید جمال الدین افغانی دپیژندنی دکرسی د جـوړیدو پهباب دکابل دپوهنتون ددغه پوهنځـــی پیشنهاد مطرح شو چی دغه پیشنهاد پــه اساس کی دغونډی دغړیو له خواتائید شــو د سیمینار ترغرمی په وروسته غونډه کیچی دهغی مشر پاکستانی پــوه پروفیسور حسام الدین راشیدی ؤ دعراقی پوهانو دهیات غړی استاد عبدالحمید العلوچی اوهم افــغا نــی پوهانو حبیب الله رفیع ،پوهاند غلام صفدر ډاکتر قیام الدین راعی او ښاغلی عبـــدالله سمندر په وارسره په عراقکی سید جمـــال الدین خدمتونه د اسلام دین اوعلم په باب له فرانسوی ارنست رینـــان ســره دحضرت سید جمال الدین ا فغانی قلمی مناظری له عثمانی دولت سره دسید جمال الدیندااړیکو اوپه رد نیچریه باندی خوخبری تر عنوانــو لاندی خپل مضمونو نه ولوستل .

په غونډهکی برخه والو دشویدوینناو په

باب پوهنتنی ټولنه کولی شی چې د دغو پوهانو له څو په دغه برخه کې د ښانا ځول وکړي او هم په دغه باره کې خبرې اترې وکړي .

د غونډې په جریان کې دیوه لړ مقالو کتابونه په سیمینار کې به برخه والو پوهانو باندې و ویشل شول چې د اطلاعاتو او کلتور وزارت، کابل پوهنتون او پښتو ټولنې له خوا د افغاني علامه سید جمال الدین د ګمانځنې د غونډې له امله چاپ او خپاره شوي دي .

دغه راز دجمهوریت، انیس، هیواد، کابل تایمز، ورځپاڼې او دنورو جریده چې د ختیځې خاورې دنابغه سیدجمال الدین افغاني دلوړ شخصیت او ژوندانه په باره کې یې یو لړ مضمو نونه درلودل په حاضرینو باندې و ویشل شوې .

دویمه غونډه ۲۴ر۱۲ر۱۳۵۵ ه

په نننۍ غونډه کې چې ترغرمې د مخه دترکیې پوه پروفیسور عبدالقادر قره خان په مشرۍ په انترکانتي ننټال هوټل کې وشوه پروفیسور دوریا نکولی دعلامه سیدجمال الدین افغان دمړینې داتیایم کال د نمانځنې په علمي سیمینار کې د یوې وینا په ترځ کې وویل: سید جمال الدین نه یوازې د افغانستان په خاورې کې زیږیدلی او نه یوازې دپښتنې مور به شیدو روزل شوی بلکه هغه پدې محیط کې لوی شوی او دافغانۍ کرکټر غوره تاریخي خصوصیات یې په خټه کې اخښلی شوی و . وروسته بیا پوهاند عبد الشکور رشاد، افغاني پوهانو ډاکټرسیامیه عبادي او ښاغلي رضامایل د سید جمال الدین دمانا ګانو او دهغه د پلار

دعلامه سید جمال الدین افغانی دمړینې داتیایم کال د نمانځنې دعلمي سیمینار یوه ځنده .

[۲۱/۱۲/۵۵]



کورنی د آزاد وعقایدو اومفکورواوافغانستان دادبیاتو پرمختیا دخصوصیاتو سیدجمال‌الدین افغان او دروسی ژبی آثار او دسیدجمال‌الدین په نظر مدینه فاضله ترعنوانونو لاندی خپل مضمونونه ولوستل .

دغه راز دسیمینار ترغرمی وروسته غونډه کړیچه دمصر مشر الجزایری پوه شیخ الحمد ... او افغانی پوهانو ښاغلی سید قاسم رښتیا، ښاغلی محمد گلاب ښنار، ډاکتر ... الحکیم طبیبی او استاد علی اصغربشیر ... جمال الدین فکری ، سیاسی ،اودینی ... سید جمال الدین افغانی یا دخشیخ او اسلام ستر سیاست مدار له‌اسلام سره د سید جمال الدین افغانی روابط ترعنوانونو لاندی خپل مضامین ولوستل

په سیمینار کښی برخه والوپه پرونیو غونډو کی دلوستل شویو مضمونو او مقالو په شاو خواکی پوښتنی وکړی او پدغه برخه کی مناظره اوخبری وشوی .

دریمه غونډه ۲۲ر۱۲ر۵۵

تر غرمی دمخه غونډه کی چی مشری شوروی پوه پروفیسور دور یانکوفو افغانی عالم مولینا عبدالله، پاکستانی پوه پروفیسور حسام الدین راشیدی، ترکی پوه ډاکترنظیف خواجه او دکابل پوهنتون استاد ډاکتر اسد الله حبیب دسید جمال الدین افغانی د عروت الوثقی په اهمیت باندی د یونظر او دهند او پاکستان دنیمی وچی په سیاست او ادبیاتوکی دهغی اغیزی دهغو خپلو آثارو په باب چی سید جمال الدین افغانی لاسلیک کړی او دغه راز ددری په اوسنیو ادبیاتو باندی دسید افغانی دافکارو داغیزی په باره کی خپل مضمونونه ولوستل دسیمینارترغرمی وروسته غونډه‌کی چی دښاغلی سید قاسم رښتیا په مشری وشوه ترکی پوهانو پروفیسور قایا بیکلگیل، ډاکتر نظیف شاهین او ډاکتر سعید افغانی او ونسی عالم پروفیسور علی الشابی ترکیه باندی د سید جمال‌الدین افغانی اغیزه په تننی ترکیه کی دسیدجمال‌الدین افغانی په نظرکی خوشبختی اونیکمرغی اوله حضرت سید سره دتونس داصلاح غو ښتو نکو مشرانو روابط او عروت‌الوثقی په نامه نهضت کښی ددوی درول ترعنوانونو لاندی پراخی وینااوی وکړی .

په سمینار کښی‌برخه‌والو وروسته غونډو کی دلوستل شویو مضمو نونو په‌باب‌دپوهاند له خوا پو ښتنی وشوی اوپه دغه برخه‌کی خبری اتری وشوی .

په غونډوکی یوشمیر هغه کتابونه ورسالی چی د اطلاعات وکلتور او پښتو ټولنی له خواچاپ او خپاره شویدی په سیمینار کی‌په برخه والو کسانو باندی وویشل شوی اوهم دفلکلور او ادب دمجلی اومرکز دورځپاڼو بیلابیلوگڼی حاضرینوته ورکړی شوی. دستر فیلسوف علامه سید جمال الدین افغانی د مړینی د اتیایم کال دنمانځنی د غونډی په بین المللی علمی سیمینار کی برخه والو کسانو بیگاه شپه په هی میلمستیا کی برخه



گوشه ای از سیمینارعلمی بین المللی بزرگداشت علامه سید جمال الدین افغانی درهوتل انترکانتیننتال . ۲۲ر۱۲ر۵۵

واخیسته چې د کابل ښار د ملي لیسې خوا په کابل هوټل کې ددوی په ویاړ شوې وه .

د علامه سید جمال الدین افغاني د نمانځنې د بین المللي علمي سیمینار ترغونډې وروسته غونډه کې د مصر د عربي جمهوریت بانکونو بیمو او مالي موسسو د کنفدراسیون د سکرتر جنرال ښاغلي محبوب او د عمان د پوهنتون د پروفیسور ښاغلي زعیتر او د متحده عربي اماراتو د عالمانو او پوهانو له خوا ګرارسیدلو تیلګرامونو متنونه د غونډې د منشي له خوا ولوستل شول .

په دغو تیلګرامونو کې د سید افغاني د آثارو او افکارو د خپرولو په برخه کې د دغې سیمینار علمي غونډې ډېرې هیله ښودل شوې چې د علامه سید جمال الدین د نمانځنې د غونډې د بین المللي سیمینار په پرونیو غونډو کې د دوستو هېوادو افغاني پوهانو د هیواد د نومیالي په لیکنې جمال الدین افغاني د سجایا او تو لنیزو مبارزو په باب خواکي په وار پسې خپلې مقالې او مضمونونه ولوستل

دغه راز په پرونیو غونډو کې د ډاکټر عبد الحکیم طبیبي په مشرۍ د سید جمال الدین افغاني د نمانځنې د غونډې د علمي سیمینار د قطعنامې د تدوین په مقصد یوه جرګه وټاکل شوه .

**څلورمه غونډه ۲۳ر۱۲ر۵۵ م**

د علامه سید جمال الدین افغاني د نمانځنې د غونډې د بین المللي علمي سیمینار په غونډوکې د دوستو هیوادو او افغاني پوښتونو پوهانو د هیواد د نومیالي بچي حضرت سید شخصیت او د هغه د ځانګړو خواو سجایا تو په باره کې خپلې مقالې او مضمونونه و لوستل.

ترغرمی دمخه غونډه‌کی چه مشریی فرانسوی پوه پرو فیسور ژان بل شارنیږ د شوروی اتحادپوه پرو فیسور غفاراف، افغانی پوهاند ډاکتر بها الدین مجروح او ډاکتر روان‌فرهادی د اقبال اوجمال الدین افغانی او دختیځ او لویدیځ اخوت او سیدجمال الدین او محمود طرزی ترعنوانو لاندی‌خپل مضمونونه ولوستل دسیمینارترغرمی وروسته‌غونډه‌کی چه‌دشوروی اتحاد پوه پرو فیسور غفار اوف په مشری وشوه الجزایری پوهانو شیخ احمد حمانی او ډاکتر حنفی بن یحیی ډاکتر محمد ا کرم عثمان او پرو فیسور ژان بل شارنی دختیځ په بیداری او د مسلمانانو نهضت کی‌دسید جمال الدین رول د الجزایر او المغرب په خاوره کی دسیدجمال الدین اغیزه له‌استعمار او استبداد سره دسید جګړی ماهیت اودسید دتګ لاری ترعنوانونو لاندی اوږدی مقالی و لوستلی د ختیځ دعلامه سید جمال‌الدین افغانی د مړینی د اتیایم کال دنمانځنی د مجلس تر غرمی دمخه او اوروسته غونډو کی په سیمینار کی برخه والو کسانو په هری یوی لوستل شوی مقالی او مضمون باندی خبری اتری وکړی . دغونډی په ترځ کی یو شمیرهغه کتابونه چه د‌اطلاعاتو او کلتور دوزارت له خوا چاپ شوی اوهم‌دمرکز ورځپاڼی په حاضرینو باندی وویشل شوی . د افغانی علامه حضرت سید جمال الدین د نمانځنی په بین المللی علمی سیمینار کی برخه والو په هغی ملمستیاکی برخه‌واخیستنه چه دکابل پو هنتون له خوا د دوی پهویاړ په انټر کانتی ننتال هوټل دپامیر په‌رستوران کښی شوی وه .

دختیځی خاوری دنابغه سید جمال الدین افغانی دمړینی داتیایم کال دنمانځنی د غونډی د بین المللی ،علمی سیمینار په غونډوکی یوشمیر میلمنو پوهانو ا و افغانی پوهانو د افغانستان د دغه نومیالی بچی د آثارو او احوال په‌باره‌کی خپل مضامین او څیړونکی مقالی ولوستلی .

ترغرمی دمخه غونډه کښی چی دعراق پوه پرو فیسور عبد الحمید العلوچی په مشری وشوه پاکستانی پوه ډاکترضیاء الدین‌راشیدی د کابل پوهنتون استاد ښاغلی اشرف غنی اتریشی عالم ډاکتر ماکس کلمبورګ دادبیاتو اوبشری علمو پوهنځی استاد ښاغلی محمد کاظم آهنګ او استاد محمد امین دنو لسمی پیړی له اسلامی نړی څخه دسیدجمال الدین افغان دپولنیزی اوسیاسی نمانځنی دحضرت سیدپه باره‌کی دختیځ پیژندونکی په آثارو باندی متوده یکی څیړنی دبشر پیژندنی له نظره سید جمال الدین افغانی دسید په‌احوال باندی یوه تبصره اوسید افغانی او د ډله ایز ارتباط مفاهمی تر عنوانونو لاندی خپلی مقالی او مضمو نونه په‌وار سره ولوستل دغه راز دهیواد دنومیالی بچی علامه سید جمال الدین نمانځنی دعلمی سیمینار ترغرمی

وروسته غونډه کې چې مشريې دهيواد پوه پوهاند عبدالحی حبيبی ؤ ليبيايي پوه ډاکتر ياسين العربی ،هندی ډاکتر پوهاند شري واستوا پاکستانی عالم پرو فيسور وزير الحسن عابدی، افغانی پوهاند پو هنيار محمد حسين يمين ا وښاغلی محمد انور نير د سيد جمال الدين افغانی دتفکر داتحاديې او پروگرام ، افغانی سيد يا دختيځ نړۍ ستر مفکر ا نسانی آزادی دعلامه محمد اقبال په اشعارو کې دحضرت سد جمال الدين افغانی د افکارو انعکاس په افغانستان کښې دسيد جمال الدين ا فغانی پوشمير معاصر عالمان ترعنوانونو لاندی ويناوی وکړی. تر غرمې وروسته غونډه وکې دښځو په باره کې دحضرت سيد افغانی دنظر ترعنوان لاندی محترمې نجيبې سکندری مقالې لنډيز دمحترمې رابعه صديقی لخوا ولوستل شو .

دسيمينار تر غرمې دمخه اوروسته غونډو کې يو شمير هغه کتابوه اورسالی چې د اطلاعاتو او کلتوراودښوونې اوروزنې دوزارتونو لخوادسيدجمال الدين افغانی دمړينې داتيايم کال په مناسبت چاپ شوی دسمينار پهغړو باندی و ويشل شوی .

همدغه راز دعرفان فوق العاده مجله او دمرکز ورځپاڼی دغونډ وپه ترځ کښې وويشل شوی .

د افغانی علامه سد جمال الدين دنمانځنې ترغرمې وروسته غونډه کې هغه مدالونه چې دختيځ دستر فيلسوف او دهيواد دنوميالي بچې دمړينې د اتيايم کال په مناسبت د اطلاعاتو اوکلتور دوزارت له خوابرابری شوی دپوهاند عبدالحی حبيبی له خوا ددوستو هيوادو په هغو پوهانو باندی وويشل شول چې پدغه سترعلمی غونډه کې يې برخه اخيستې ده دغونډی په پای کې ترکی پوه ښاغلی عبدالقادر قره خان ددوستو هيوادونو دپوهانو په نمايندگی ويناوکړه اودغې ستری علمی غونډی دجوړيدوله امله يې خوښی ښرگنده کړه.
پوهاند حبيبی دختيځ دعلامه په علمی سيمينار کې ددوستو هيوادوله گډون څخه مننه وکړه اووی ويل : دډيری خوښی ځای دی چې دنيکه مرغه دجمهوری نظام په رڼاکښی او د هيواد اودوستو هيوادو دپوهانو او ليکوالو په مرستې چې دخپلو ژوراوعلمی څيړنو او ليکونو په اورولو سره يې دهيواد نوميالي بچی علامه سيدجمال الدين افغانی دژوندانه پربيلابيلو اړخونو شخصيت اودتولنيز او سياسی جگړو پر ځانگړتياو رڼا واچوله همدارنگه داطلاعاتو اوکلتور دوزارت دخپرونو درياست وکيل دوکتور محمداکرم عثمان ددغه وزارت په نمايندگی دعلامه سيدجمال الدين افغانی دنمانځنې په علمی سيمينارکی دميلمنو اوافغانی پوهانو لهگډون څخه مننه وکړه اود علامه داتيايم تلين په نمانځنه کې يې دبهرنيو چارواوپوهنې وزارتونو اوپښتوتولنې همکاری وستايله .

دسیدجمال الدین نړیوال علمی سیمینارچی دکب په اتلسمه دراډیو افغانستان په لوی تالار کی پرانستل شواود دوستو هیوادو او همدارازدهیوادپوهانو پکی برخه اخیستی وه دکب د۲٤ دماښام په اتو بجودسیمینار دغړو له خوادیوه پریکړه لیك په وړاندی کـولـو سره په‌انترکانتی ننټال هوټل کی پای ته ورسید.

## دسیدجمال الدین افغانی دمړینی داتیایمی کالیزی دغونډی اعلامیه :

دختیځ دستر علامه سیدجمال الدین افغانی دمړینی داتیاوم کال په مناسبت دافغانستان دجمهوری دولت دکلتوری پالیسی‌اوددغه هیواد دنامتوبچی دنمانځنی له امله د ۱۳۵۵ کـال دکب داتلسمی نیټی د۱۹۷۷ کال دمارچ له ۹ له چارشنبی نه د۱۳۵۵ کال دکب ترپنځـه ویشتمی نیټی د۱۹۷۷ د مارچ تر۱٦ نیټـــی دچارشنبی پوری دافغانستان په مرکز کابل کی علمی غونډی جوړی شوی . دنمانځنـی دغونډی برخه والوپه زیاته مینه دافغانستان دجمهوریت دمؤسس اوددغه هیواد د لومړی جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد پیغام چی ددغی غونډی دپرانستلو له پاره یی استولی واورید. همدارنگه په‌دغه غونډه‌کښی هغــه پیغامونه چی دلمانځلوله امله دمصر دجمهور رئیس ښاغلی انورالسادات دعراق دجمهـور رئیس ښاغلی احمدحسن البکر په گــــډون ددوستو دولتونو مشرانو له خوا دافغانستان دجمهور رئیس ښاغلی محمد داؤدپه نامــه رارسیدلی ؤ واوستل شول .

دبهرنیو چارو دوزارت معین ښاغلـــی وحیدعبدالله داطلاعات اوکلتور وزارت پـــه نمایندگی په دغه مناسبت وویناوکړه دغونډی برخه‌وال دافغانی مقاماتو له دغه قدردانـــی څخه دخپلی مننی مراتب څرگندوی .

ددغه سیمینار په علمی غونډوکی په‌افغانی پوهانو برسیره دهغودوستو هیوادو پوهانـو چی سیدجمال الدین افغانی دهغوی په‌هیوادونو کی سفراواستوگنه‌کړی اویایی دهغو په باره کښی علمی، دینی، اوسیاسی فعالیتونه سرته رسولی ؤ لکه دشوروی اتحاد ، اطـریش، الجزایر، ایران، پاکستان، ترکیی، تـونس، عراق، فرانسی ، مصراودهند دهیواد پوهانو اودیونیسکواستازی برخه اخیستی ره اوخپلی مقالی اوتحقیقی وینا وی ولوستل برخه والو دافغانستان دجمهوری حکومت دارزښتناکـــو هڅو اوبهرنیو چارووزارت داطلاعاتو اوکلتور وزارت دپوهنی وزارت اودپوهنتون دریاست دکارکوونکو نه خوښی وکړه اودلاندینو موادو په باره‌کی‌یی موافقه وکړه .

دلمانځنی دغه ټولنه اوعلمی غونډه دعلامه سیدجمال الدین افغانی چی دختیځ نړیـوال بشری انقلابی ملی خدمتونو دافکارو، آثاروپه پیژندنه‌کی چی دافغانستان دنامتوبچـی او د ختیځ ستر مبارز داسلامی نړۍ او بشریـت څلاند څیره ده اودختیځوهیوادو دخپلواکـــی

اولوړتیا په لاره کی یی خپل ټول ژوند وقف کړی ژ ډیره ګټوره ثابته شوه . دغونړی برخه والودعلامه سید جمال الدین افغانی مربوطه کتابونه اوتحقیقی آثار اودآثاروترجمی چی دافغانی مؤلفینواو ژباړونکوله خوا چاپ شوی اودسید دملیت پیژندنی اوپه سیاسی دینی، عرفانی، اوثقافتی فعالیتونو اوخدمتونو رڼاچوی ګټور اوارزښتناك وبلل اودافغانی مؤلفینو څخه یی هیله وکړه چی خپلو څیړنو اوخپرونو ته دوام ورکړی چی دختیځ او بشری نړی ددی ځلانده څیری اوسترمجاهدپه پیژند ګلوی کی زیات خدمت وکړی . څرنګه چی دلمانځنی پدغه غونډه کی دسیدډژونداوخدمتونو په بیلوبیلو برخوکی یولړګټوری مقالی اوعلمی څیړنی چی دکنفرانس دبرخه والوله خوا وړاندی شوی اووینناوی وشوی هیله کیږی‌چی ډیرژرزارسیدلو پیغامونو، خطابو اودلوستل شویو مقالو اویاهغه مقالی چی په خپل وخت سره ونه لوستل شوی د علمی سیمینار دبرخه والودعکسونو اوسلم تلین ونمانځنی دکابل پوهنتون دسید جمال الدین افغانی دڅیړنی مرکزدی په بیلابیلو ژبو اودبیلا بیلو هیوادو دمؤسسو اوپوهانو په همکاری پدغه مناسبت علمی مواد برابرکړی او پدغه برخه کی دپوهانو دڅیړنونتیجی دی دعلمی کتابونو رسالو دترجمو په وسیله دعلاقمندانو په واك کی ورکړی .

څرنګه چی دسیدژوند د اسلامی ملتونو دتاریخ بدلون یوحساس پړاوته نژدی دی له دی امله داسلامی اوختیځوهیوادوداقتصادی اجتماعی، سیاسی، اوفرهنګی احوال دڅیړنی اوپه بیلابیلوهیوادوکی دسیدژوند پرچاپیریال باندی یی داغیزواوهم دهغه وخت دفکری اوفرهنګی نهضتونو په‌باب دغه سیمینار تصویب وکړ . چی داسلامی اوختیځو هیوادو دعلاقی وړتولو هیوادو دپوهانو تر مینځ ددغو هیوادو فکری اجتماعی اوسیاسی جریانونو په برخه‌کی دپرله پسی غونډواوجرګو اودلازمو اطلاعاتو مبادله اوعلمی څیړنی له لاری د ی پرله پسی څیړنی اومطالعی وشی .

غونډی موافقه وکړه څرنګه چی ختیځه‌خاوره نن ورځ له‌بل هروخت څخه دلویدیځ له‌تمدن څخه فکری اونظری زیاتی څیړنی او علمی اوانتقادی ارزیابی ته اړه لری اوددی له‌پاره چی دختیځی خاوری متفکرین اوپوهان پـه اسلامی نـړی سره راغونډ شی دلویدیـځ پیژندنی بین المللی کانګرس په نامه یـوه غونډه وشی افغانی پوهانودمیلمنو پوهانو په مشوره تصمیم ونیوچی دغه‌کـانګـرس دی دسیدجمال الدین افغانی دزیږیـدوپه هیواد کی چی په خپله دختیځی خاوری دنویوفکرونو محرك اودخصوصیاتو او دودونو مدافع د ی

غونډه دی دافغانی واکمنو مقاماتوپام دی سترتکی ته واړوی چی په راتلونکی لومړی غونډی کی دهغی دنیتی دټاکلو اوکـړنلاری له پاره تصمیم ونیسی .

میلمنو پوهانو دافغانستان دولس اورسمی مقاماتو له تاوده هرکلی څخه مننه وکړه .

# حوادث سیاسی جهان

هر لحظه از زند گی فرد ی یا اجتماعی بشر هموار ه با حوادث و اتفاقا تی توا م بوده و هریك از ین حوادث وپیش آمد ها یامقدمه حوادث بعدی است ویا بقایای حواد ثی می باشد که قبلا رو نما گردیده است ۰

همچنانکه لحظا ت زود گذر زند گی بشری بهم پیوسته و با گذ شت تدریجی وحتی بعضا غیر قابل درك دقایق، ساعات شب وروز وبالا خره ماه و سالها ، قرو ن واعصار را به وجودمی آورندحوادث کوچك وبی ار زش نیز دست بهم داده و با مرور ایا م ولیا لی به شکل حوادث بز رگ ویا خاطرا ت خو ب و بد عرض اندا م کرده وعاقبت الامر بهشکل نقشس پای ایام بر چهره ز مان باقی می مانند۰

اینك کمی به عقب بر می گردیم واین لحظات حادثه آفرین را ازدیدگاه وسیع تری یعنی از لحاظ جهانی برای یك دورهٔ محدود یك ساله (البته سالی که پشت سرگذاشتیم ، بصورت اختصار باز گومی کنیم)، تاببینیم که در جهان کهن مادراین محدوده یکسا له چه اتفا قاتی رخداد ه و البته تمیز بین خوب و بد آن را به قدر ت برداشت خوانندگان بالارج می گذاریم ۰

در دورا ن یکسالی که گذشت درجهان ما حوادث خورد و بزرگ امید افزا ومایوس کننده و تلخ و شرین ز یادی به سو یه ملی وبین المللی رخداده که ذکر آنها بصورت فهرست وار و یا بشکل کرونولوژی طوریکه شاید وباید به درك وقایع واتفاقات در طول یك سال کمکی نه خواهد کرد . ژوی این ملحو ظ وبرای این که علاقمند ا ن محتر م مسایل سیا سی جهان را بصورت منسجم وموجزی آگاهی یابند رو یداد های یك سال گذ شته را ازلحاظ مناطق ویا موضو عات مهم دسته بندی کرده هریك از آنها رابصور ت جدا گانه باشرح کو تا هی قرار آتی عر ضه می داریم ۰

**شرق میانه :**

اولین حادثه مهمی که از ماه سر طا ن سال گذ شته باینسو رخ داده وبه حوز ه شرق میانه ارتباط مستقیمی دارد ربو د ن یك طیاره بو ئنگ خط هوا یی ایرفرانس می باشد که در ماه سر طان سال گذ شته توسط فلسطینی ها و حا میان شان ربو د ه شده بود ۰

این طیاره حامل دو صدو پنجاه نفر مسافرو عمله بوده وهنگامی که در میدان هوا یی انتبی بی واقع یو گندا در انتظا ر برآورده شدن پیشنهاد ها ی خود برای رهایی فلسطینی های محبوس از طر ف اسرائیل بودندیك دسته از کو ماند و های

اسرائیلی که توسط طیاره به این‌میدا ن هوایی انتقال داده شده‌بودند پس از گشتن عد ه‌یك صدو د ه‌نفر بقیه را کبین طیاره را نجات دادند .

در جمله سایر مسایل عمد ه‌که در طول یکسال گذشته در شرق میانه ر خـداد ه ملاقات هایی است . که ر هبرا ن کشو ر های عر بی‌و اسرائیل باجیمی کارتر رئیس جمهور امریکا انجام داده اند .

این مذاکرات که هدف آن حـل بحران ـ های شرق میانه وباز سا ختن راه برای‌انعقاد مجدد کنفرانس ژینو بوده قسما دراشنگتن وقسما در ژینو صور ت گر فته است .

اسحاق رابین صدراعظم و رهبر سابـق حزب کار گر اسرائیل قبل ا زینکه‌حز ب وی در انتخابا ت پار لمانی اسرائیل از طرف حزب لیخود شکست بخو رد و هــم قبل از آنکـه پای وی وخـانمش در افتضاح باز کردن حساب غیر قانو نی بانکی درامریکا کشانیده شود. در واشنگتـن بـا رهبـران امریکا ملا قات‌ومذاکرات انجام داد .سپس انور السادا ت رئیس جمهور مصر در حالی برای مـذاکـره با جیمی کارتر بـه واشنگتن مسافرت کرد که مرد م مصر در ریفراند م ماه سنبله به وی رای اعتماد داده و او را مجدداً به حیث رئیس جمهور مصر انتخا ب کردند .

سادات که به تعقیب باز دیـد ی ا ز جمهوریت اتحادی آلمان وفرانسه بـــه واشنگتن مسافر ت کرده بود با کار تـر درباره روابط دو کشور ، او ضاع عمو می شرق مانه ، انعقاد مجدد کنفرا نسـس ژینو وامکان فروش طیارا ت جنگی‌و مر می های ضد تانك امریکایی به مصر مذاکر ه کرده است .

در مورد کنفرانس ژینو که او لین‌جلسه آن در ماه اکتوبر سا ل۱۹۷۳ انعقاد یافته وموافقتنا مه های موقتی مربوط به عقـب نشینی عساکر اسرائیل در محاذ سینــا (متعلق به مصر) وارتفاعا ت جولان(مربو ط سوریـه) امضاء شده بـود ودر حال حاضر مر عی الاجرا می‌باشد یکی ازثمره ها ی نیکوی آن می باشد .

در حالی که هم عربها و هم امریکــا واتحاد شورو ی به حیث روسا ی مشتر ك کنفرانس ژینو واسرائیل خواستار انعقا د مجدد کنفرانس ژینو می باشند کشور های عربی واتحاد شورو ی اصرار دارند کــه موسسه آزادی فلسطین درین کنفرانس‌بحیث یك جانب کاملا مستقل شر کت نموده واز تمام حقوق و مزایا ی سایر شر کـت کنندگا ن کنفرانس‌بر خورد ار باشداسرائیل باشر کت کاملا مستقل نماینده مو سسـه آزادی فلسطین در کنفرانس ژینو مخالفت نموده ونظریه داده کـه باید نماینده موسسه مذکور در جمله هیات اردبی یا کـدام کشور عربی دیگر درین کنفرانس شر کت کند .

حکومت موجوده امریکا هنوز کدام مـوقف

واضحی را درین زمینه در پیش نگر فتــه ولی طوریکه از قراین بر می آید حکو مت مذکور سیاست واقع بینانه تری رانسبــت به حکومت سابق امریکا درموردفلسطینی ها درپیش گــرفته است . یکـی از دلایلـی که می توان درین زمینه به آن اشاره کـرد. اظهارات اخیـر جیمی کـارتـر مـی باشـد که برای اولین بارمتذکرشده بایدفلسطینی‌ها سرزمینی بـرای خـود داشته بـا شنـد .

ایـن اظهـارات کـارتـر با استقبال نیکی از طرف کشور های عر بی ومو سسه آزا دی فلسطین مواجه گردید ه و حتی گفته میشود باسیاست واقع‌بینانه که حکو مت کار تر درپیش گر فته ممکن است را هی بر ای ملاقات بین ر هبرا ن‌مو سسه آزا دی‌فلسطین وحکومت امریکا که البته او لین ملا قا ت مستقیم بین‌طر فین خواهد بود باز گر دد ۰ در مقابل‌مقاما ت اسرائیلی رو ش جد یـد حکو مت امریکا را درقبال مساله فلسطیـن موردانتقاد قرار داده وو زیر خار جــه حکومت کار گر ی اسرائیل در مسا فر تی که بعدا به امریکانموده عد م رضا ئیــت رهبران اسرائیل را درین باره بـــه اطـلاع کارتروسایرو س وانس وزیر خار جه امریکا رسانید .

ملك حسین پادشاه ارد ن دو میـــن شخصیـت عربی بود که در واشنگتن باکارتر ووانس و سایر مقاما ت عالی رتبه امریکایی ملاقات و مذکراه کرد.طبعا این مذاکرا ت نیز شامل روابط دو جانبه و اوضاع‌شر ق میانه مخصوصا انعقاد مجدد کنفرانس ژنیو باشر کت موسسه آزادی فلسطین بوده وهر دوطرف مذاکرا ت ملك حسین و رهبرا ن امریکا را مفید خوانده اند ۰

حافظ الا سد رئیس جمهور سو ریــه باجیمی کارتر هنگام مسافر ت ماه ثور رئیس جمهور امریکا به ارو پا درژینو ملا قا ت نموده طرفین نه تنها در باره روابط بیـن دوکشور مذاکر ه کرده اند بلکه آنها اوضاع عمو می شرق میانه را درپرتو انعقـــا د مجدد کنفرانس ژینو با درنظر داشت اظهار نظـر های کارتر در مـورد فلسطینی هـا و سرزمین شان مذاکره کرده اند .

مـلاقا ت رو سای جمهور سو ریه و امریکا به تعقیب مسافر ت حافظ الا سد به مسکو ومـذاکـرات وی بـا رهبران اتحـاد شورو ی صور ت گر فته است ۰ اگر چه ظاهرا در مذاکرا ت رهبرا ن شورو ی و سوریه روابط دو جانبه واوضاع عـمومـی شرق میانه مطرح بحث قرار گر فته بازهم نـا ظـر یـن عقیـده دارنـد کـه اسد در مذاکرا ت خود باسران اتحاد شورو ی‌زمینه رابرای مصالحه بین مصر واتحاد شورو ی نیز فراهم سازد زیرا از عر صه دوسا ل باینسو مناسبا ت بین این دو دوست‌دیرینه شکر آب شده بود . روی همین دلیـــل ناظرین می گویند که مصر و اتحادشوروی با ملاقاتی بین‌وزار ت خار جه دو کشو ر

موافقه کردند .

اولین دور مذاکرات آنها که بیشتر از همه درباره تهیه اسلحه از طرف اتحاد برای مصر ، تعیین تاریخ جدید ی برا ی باز پرداخت قرضه هایی که شورو ی به مصر داده وتقریبا به چهار ملیارد دالر بالغ می گرد دوجریان فعلی او ضاع شرق میانه در مسکو مذاکره کرده و طر فین نتایج این مذاکرا ت را مفید خوانده و درعین حال موافقه نموده اند که مر حلـه دوم این مذاکرا ت آنها در آینده نزد یکی درقا هره دایر شو د.

هر گاه دو مین دور مذاکرا ت و زرا ی خارجه مصر واتحاد شورو ی با مو فقیت توام باشد زمینه برای تدویر ملا قا تی بین انور السادا ت و لیو نید بریژ نف زعیم حزب کمو نیستت اتحاد شورو ی فراهم خواهد شد وطبعا این امر کمك موثر ی در بهبود مزید روابط دو کشور خوا هد نمود.

پس از اسد نوبت ملاقات بین فهد ابن عبدالعزیز معاو ن اول صدراعظم عربستا ن سعودی و جیمی کارتر در واشنگتن رسید.

رهبرا ن عربستا ن سعو دی و امریکا علاوه بر سایر امور طر ف دلچسپی دو کشور که طبعا مسایل مربو ط به شرق میانه درصدر آن قرار داشت راجع به مسایل مربو ط به نفت نیز مذاکره کرد .وفهد در دورا ن این مذاکرات به امریکا اطمینا ن داد که عر بها بار دیگر علیه امریکا به مقاطعه نفتی خود دست نخواهند زد .

اولین باری که عربها از اسلحه نفت استفاده کردند درسا ل۱۹۷۳ یعنی و قتی بود که عربها می خواستند امریکا رامجبور سازند تابر اسرائیل برای حل بحرا نهای شرق میانه فشار وارد کند .

اگر چه بعدا در اثر فعالیت های امریکا که زمینه رابرای امضای موافقتنا مه ها ی موقتی جهت عقب نشینی عساکر اسرائیل از محان سینا وارتفاعات جولان فرا هم آورده بوداین مقاطعه نفتی ازبین‌رفت بازهم اثرات سوء آن در اقتصاد کشور ها ی عمده صنعتی جهان وهمچنان سایر کشور ها هنوز بشدت مشهود است .

فعالیت برای حل بحرا نهای شر ق‌میانه تنها منحصر به مسا عی عربها و ایالات متحدهٔ امریکا نبوده بلکه خود عر بها نیز کوشیده اند تا از راه اتحاد بیشتر ی بین خود سیاست و موقف مشتر کی را در قبال بحرانهای عربی پیشس بگیر ند . یکی ا ز اقداما ت موثری که د رین‌راه از طر ف کشور های عربی اتخان شده رفع اختلافات بین مصر و سو ریه بود .

امضای دو مین موافقتنا مه مو قتی بین مصر و اسرائیل در مورد عقب نشینی مزید عساکر اسرائیلی در محان سینا که در ما ه سنبله ۱۹۵٤ صور ت گر فت با مخالفت جدی از طر ف سوریه موا جه گردید . و بمرور زما ن‌روابط بین‌این دو کشور عر بی

که در جبهه مقدم با اسرائیل قرار گرفته تیره ترگردید .

ولی در ماه قوس ۱۳۵۵ حافظ الاسد به قاهره ( البته با وساطت عربستان سعودی وکویت) ومذاکراتی که بین وی وانورالسادات صورت گرفت طرفین نه تنها اختلافات خود راحل کردند بلکه به تشکیل یك قوماندانی سیاسی بین دو کشور نیز موافقه کردند.

سپس حکومت سودان نیز توافق خود رابرای شرکت درین قوماندانی سیاسی اعلام نموده واکنون این قوماندانی صرف همین سه عضو را دارد .

درین ضمن بعضی از کشور های خارجی نیز مساعی رابخرچ داده اند ، که هدف آن باز کردن راه برای حل بحران های شرق میانه از راه انعقاد مجدد کنفرانس ژینو وشرکت مساویانه فلسطینی ها بوده است .

سایروس وانس واندری گرومیکو وزرای خارجه امریکا واتحاد شوروی یعنی دو کشور رؤسای مشترك کنفرانس ژینو در مورد شرق میانه می باشند در اواخر ماه ثور سال ۱۳۵٦ در ملاقاتی که برای غور در باره تمام مسایل مورد علاقه در ژینو نمودند راجع به امکان انعقاد مجدد این کنفرانس مذاکراتی انجام دادند .

کذا وزرای خارجه جمهوریت اتحادی آلمان وفرانسه ودوکتور کورت والدهایم سر منشی موسسه ملل متحد نیز ضمن مسافرت هایی که به کشور های عربی و اسرائیل نمودند کوشیدند تا راه برای انعقاد مجددکنفرانس ژنیو باز گردد .

انور السادات وبعضی از سران عربی واسرائیل نیز درین ضمن به بعضی ازکشور های اروپای غربی مسافرت کرده واوضاع شرق میانه را از زاویه سیاست های خود بارهبران کشور های مذکور مطرح بحث قرار دادند .

موضوع قابل تذکر دیگر در مورد شرق میانه مسالــه لبنان میباشد کـه نزده مـاه تمـام تا اواخـر مـاه عقـرب سـال گذشته دستخوش جنگ های داخلیخونیـــن بود .

این نابسامانی هاکه باتمرکز سی هزار نفر از عساکر قوای عربی در لبنـــان تا اندازه مهار گردید هزارها نفر رابه خاك و خون کشانیده و ملیون ها دالر خساره مالی به این سر زمین که زمانیبهتریـــن مرکزتجارت وسیاحت در شرق میانه و حتی جهان بشمارمیرفت وارد کرد .

باتمرکز قوای صلح عربی که در اثر تصمیمات کنفرانس های اواخر ماهمیزان سال ۱۳۵۵، سران کشور هـای عـربی در ریاض وکنفرانس اوایل ماه عقرب همان سال در قاهره در لبنان صورت گرفته اوضاع عمومی درین سر زمین جنگ زده متدرجاً به آرامش گرایید .

شروع زمامداری الیاس سرکیـــس به حیث رئیس جمهور جدید لبنان در ماه

یې‌دغه مادې تائید او تصویب کړې .

**دسلواغې ۲۰ـ۱۳۵۵ :**

د چار دهې غور بند د ولسوالې دخښناک داوبو دشبکې دوهم پړاو بشپړ شوی او د ګلیان دکلې خلکو ددغې شبکې داوبو په ښځبلو پیل وکړ .

**دسلواغې ۲۰ـ۱۳۵۵ :**

د دولت رئیس او صد را عظم ښاغلی محمد داود دجمهوری دولت لومړۍ لویې‌جرګې دغونډې جریان چه په زړه پوری آزاده او دیمو کرا تیکه فضا کې وشوه ولید اوواوريد.

**د سلواغې ۲۰ ـ ۱۳۵۵ :**

د جمهوری دولت دلومړۍ لویې جرګې غړیو تر غرمې وروسته په هغه تولنه کې برخه واخیسته چه دمیرمنو دټو لنې له خوا د زینب ننداری په تالار کې ددوی په ویاړ شوې وه .

**د سلواغې ۲۳ ـ ۱۳۵۵ :**

د دولت درئیس او صد را عظم ښا غلی محمد داود خاص استازی ښا غلی محمد نعیم تر غرمې دمخه په لسو بجو دهند دجمهور رئیس اروا ښاد فخرالدین علی احمد دمړی دښخولو په مراسمو کې دبرخې اخیستو دپاره په اریانا الوتکه کې نوی ډیلی ته لاړ .

**د سلواغې ۲۳ ـ ۱۳۵۵ :**

دجمهوری دولت دلومړۍ لویې جرګې غړیو بیګا شپه په کابل ننداری کې پښتو او دری دوی ننداری وکتلې چه دافغانستان ننداری هنر مندانو وښو دلې .

**د سلواغې ۲۳ ـ ۱۳۵۵ :**

د جمهوری دولت لویې جرګې په خپلو غونډو کې دهیواد دملي وثیقې دمسودې دانتقالي احکامو او عمومي احکامو له فصلونو څخه لس مادې تصویب کړې .

**دسلواغې ۲۳ـ۱۳۵۵ :**

د افغانستان د جمهوری دولت دلویې جرګې غړیو ماښام هغه کنسرت واوريد چې دراډیو افغانستان په ستره ستډیو کې ددوی په ویاړ داطلا عاتو او کلتور وزارت دموسیقې دآمریت دهنرمندانو له خواجوړشوی و .

**د سلواغې ۲٤ ـ ۱۳۵۵ :**

دهیواد داساسي قانون مسوده دکل په توګه درایو په اتفاق تصویب شوه .

**د سلواغې ۲٤ ـ ۱۳۵۵ :**

د جمهوری دولت دلویې جرګې غړو دهیواد دریم جمهوری جشن مستند فلم او همدارنګه یو هنري فلم په کابل ننداری کې وکوت .

**د سلواغې ۲۵ ـ ۱۳۵۵ :**

د افغانستان د جمهوری دولت دجمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد خاص استازی ښا غلی محمد نعیم تر غرمې وروسته په‌دری نیمو بجو له نوی ډیلی څخه کابل ته راغی.

**د سلواغې ۲۵ ـ ۱۳۵۵ :**

د افغانستان د جمهوری دولت دلومړی لویې جرګې دخاطری مدالو نه دلویې جرګې تر غرمې وروسته غونډه کې دملي ستری غونډې په غړیو باندې وویشل شول .

**د سلواغې ۲۵ ـ ۱۳۵۵ :**

دجمهوری دولت دلومړۍ لویې جر ګې

غږیو تر غرمی وروسته په دوو بجو په کابل کـــی په ۵۱ـ۵٤ کلــونو کښــی دهیـــواد پرمختیایی فعالیتو نو او له ۵۵ تر ۱۳٦۱ کال پوری دجمهوری دولت په اوه کــلن پلان کی دشاملو پرمختیایی پروژوداتکل ښکارندوی نندار تون او دغه راز کلتوری او اطلا عاتی نندار تون ولید ۰

**دسلواغی ۲٦ـ۱۳۵۵ :**

دانقــلاب مشر ښــا غلــی محمــد داؤد دافغانستان د جمهوری دولت دلومــړی جمهور رئیس په توګه دجمهوری دولت دلومړی لویی جرګی دغړیو په وړاندی دلوړی مراسم پــه ځای کړل ۰

دجمهوریت موسس چی دملت داستــازو له خوا دراېو په اتفاق دافغانستان دلومړی جمهور رئیس په توګه ټاکل شوی و دلوړی دمراسمو له سرته رسیدو وروسته دلویی جرګی پرنګیدل اعلام کړل ۰

**دسلواغی ۲٦ـ۱۳۵۵:**

د جمهور رئیس ښا غلی محمد داود لخوا دافغانستان د جمهوری دولت دلومړی لویی جرګی دغړیوپه ویاړپه انترکانتی‌ننتال هوټل کی درنده میلمستیا شوی وه ۰

**د سلواغی ۲۷ ـ ۱۳۵۵ :**

دنهــر سراج دولسوالــی دمرکز ګــرشک دنوی ښار دکرښو اچولو کار دفواید عامی د وزارت دښار او کور جوړولو دریاست د انجنیرانو له خوا پیل شو ۰

**د سلواغی ۲۹ ـ ۱۳۵۵ :**

د ننګر هار د ولایت دشپی لیسه دجلال آباد په ښار کښی پرانستل شوه ۰

**د سلواغی ۳۰ ـ ۱۳۵۵ :**

جمهور رئیس ښا غلی محمد داود مازیګر په څلور نیمو بجو د جمهوری دولت داساسی قانون په مسوده باندی دغور او څیړنی د جرګه ګی او رئیس او غړی دجمهوری ریاست په ماڼی کی ومنل ۰

**د سلواغی ۳۰ ـ ۱۳۵۵ :**

د افغا نستان جمهوری دولت په لومړی اویه جرګه کی دملت زیــاتــره استــازی د جمهوری دولت دلومړی اساسی قانون لــه تصویب څخه وروسته خپلو اړوندو ولایاتو او ولسوا لیو ته روان شویدی ۰

**د سلواغی ۳۰ ـ ۱۳۵۵ :**

د اوبو او برېښنا د وزارت دپرمختیا یــی پرو ګرا مونو دتطبیق په لړ کی دشمــال لویدیځ سب ستیشن پرا ختیا یی برخــه دپنځه ویشت زره کیلو ولټو امپیر پـــه ظرفیت د دوهم ترانسفار مر په در ولو او فعالیدو سره چی داوبو او برېښنا د وزارت دافغانی ما هرانو لخوا مونتاژ او درول شوی تر غرمی ورسته په داسی حال کی چی دهغه وزارت یو شمیر منسو بین او ماهران حاضر وو پرانستل شوه ۰

**د کب لومړی ۱۳۵۵ :**

دکجکی ددستګاه داوبو بریښنا دکند هار دبریښنا په شبکه کی او دلښکر ګاه دښار دبریښنا په شبکه کی جریان ومونډ ۰

**د کب لومړی ۱۳۵۵ :**

دننګرهار او لغمان په ولایتونو کښـــی

داوړو رسولو دیو شمیر کوچنیو پروژو په بشپړ یدو سره دپنځه اتیا زرو شخه زیاتو کسانو ته دخښلو روغتیایی اوبه برابری شویدی .

**د کب ۲ ـ ۱۳۵۵ :**

د انقلاب مشر ښاغلی محمد داود هغه وخت چی د افغانستان دلومړی جمهور رئیس په توګه یی ددوی دټاکل کیدو لهامله دافغانستان د جمهوری دولت دوسله وال پوځ دزړه دکومی مبارکی ومنلی .

**دکب ۵ ـ ۱۳۵۵ :**

جمهور رئیس ښاغلی محمد داود دلسوی خدای په نامه دخلکو دآرامی او د ګران افغانستان دلوړتیا دپاره د جمهوری دولت اساسی قانون لاس لیک کړ .

**دکب ۵ ـ ۱۳۵۵ :**

شه دپاسه خلور زره کورونوته دبریښنا رسولو په مقصد دخیر خانی مینی د دوهمی برخی دبریښنا شبکی دجوړ ولو کار پیل شو .

**د کب ۵ ـ ۱۳۵۵ :**

د روغتیا یی اوبو دبرابر ولو دپرو ګرام په لړ کی دکندز او تخار ولا یاتو خلکو ته په ډکو سیمو کی اوه شپیته څاګانی ویستل شویدی .

**دکب ٦ ـ ۱۳۵۵ :**

دکرنی یوکوپراتیف دنادعلی د ولسوالی دمارجی په سیمه کی پرانستل شویدی .

**دکب ٦ ـ ۱۳۵۵ :**

د بلخ په ولسوالی کی دټیلفون یو سوچبورډ چه دیرش مزی لری ودرول شو او پکار واچول شو .

**دکب ۷ ـ ۱۳۵۵ :**

د جمهوری دولت اساسی قانون لهلاسلیك وروسته چه دجمهور رئیس ښاغلی محمد داود له خوا دپنجشنبی په ورځ دکب په پنځمه نیټه لاسلیك او نافذ شو د جمهوری دفتر ریاست د ۱۳۵۵ کال دکب داومی نیټی د ۲٦٤۲ ګټی فرمان له مخی او د هیواد دملی وثیقی دیوسلو در ویشتمی مادی دحکم په پیروی دغه اعلامیه نشر ته وسپارله .

**دجمهوری ریاست دمقام اعلامیه :**

داچه د ۱۳۵۲ کال دچنګاښ په ۲٦ نیټه په هیواد کی ستر انقلاب مینځ ته راغی د دولت رئیس او مرکزی کمیټی دعامه نظم اوکراری دساتنی دپاره خپل ځان مکلف وباله چه په هغه نیټه په هیواد کی عسکری حکومت اعلام کړی . اوس چه دافغانستان نجیب خلك په لویه جرګه کی دخپلواستازو په وسیله بریالی شول چه د ورور ګلوی اوبرابری په ډیره صمیمی فضااوآزاده محیط کی دجمهوری دولت اساسی قانون تصویب کړی او ددولت روانی چاری په طبیعی حال خپله قانونی لاره وهی او دغه راز دافغانستان جمهور رئیس د ۱۳۵۵ کال دکب په پنځمه نیټه اساسی قانون لاس لیك او اعلام کړ نو له دی امله په لوی خدای باندی په اتکاء او په هغه بشپړ باور سره چه جمهور رئیس یی دافغانستان دخلکو په پوهه لری ټول وطنوال په دغو ټکیو باندی خبروی .

۱ ـ هغه عسکری حکومت چه د ۱۳۵۲ کال

**دمرغومی ۳ ـ ۱۳۵۵ :**

دلوگر دولایت دمحمد آغې د ولسوالۍ دگمران پل دهغه ځای والي پرانست ۰

**دمرغومی ۳ ـ ۱۳۵۵ :**

دپلخمرۍ د ولسوالۍ دزمانخیلو دکلي سړك په اوږدو کي کانکریټي پلکيو د جوړ ولوکار پای ته رسيدلی او دترافيکی وسايطو او هغی سيمی دخلکو په تگ راتگ کښي اسانتياوې برابرې شويدي ۰

**د مرغومی ٤ ـ ۱۳۵۵ :**

دکيمياوی سرې‌دزيرمې دگودا مونو دبنسټ ډبره دکرني وزير ښاغلي عزيز الله واصفي دننگرهار دولايت دهډې دفارم په سيمه کښي کيښودله ۰

**دمرغومی ٦ ـ ۱۳۵۵ :**

د دولت دمامو رينو او اجيرانو دکوپراتيف درياست دکوپوني موادو دويشلو لومړۍ لويه مغازه په ميرويس ميدان کښي پرانستل شوه ۰

**دمرغومی ٦ ـ ۱۳۵۵ :**

دهرات دولايت دکرخ ، کهسان دولسوالۍ او د چشت دعلاقه دارۍ په مرکز ونو کښي دتيلفون لس لينه نو ی دری سوچبوردونه درول شوی اوپه کار اچول شويدي ۰

**دمرغومی ٦ ـ ۱۳۵۵ :**

دکنگك دولسوالۍ دلومړني ښوونځي نوی ودانۍ دنيمروز دوالي له خوا پرانستل شوه۰

**دمر غومی ۷ ـ ۱۳۵۵ :**

درادیو يوه اخيستو نکی دستگاه دراډيو افغانستان لخوا دمقر په ولسوالۍ کي په کار واچول شوه

**دمر غومی ۷ ـ ۱۳۵۵ :**

دفراه دولايت دمرکز دتپه شيران دلومړني ښوونځي دودانۍ دبنسټ ډبره دهغه ځای والي کيښودله ۰

**د مرغومی ۸ ـ ۱۳۵۵ :**

د دولت دهدايت په پيروی او دعدليه وزارت په زيار دهيواد دمدني قانون روستی متن په خلورو ټوکو نو دولس بابو نو او دوه زره خلور سوه شپا ړسو مادو کښي تدوين اوپه زياتو غونډو کښي دوزيرانو دعالي مجلس له تصويب څخه وروسته د دولت د ښاغلي رئيس او صدرا عظم له خوا منظور شو ۰

**د مرغومی ۸ ـ ۱۳۵۵ :**

دسردې داوبو لگولو دپروژې د ۱۳۵۵ کال دکار پلان ددې ټکي په نظر کي نيولو سره چه دهغې دکار حجم د ۱۳۵٤ ټول کال د سرته رسيدلو دچارو په پرتله په سلو کي دوه ويشت او د ۱۳۵۳ په پرتله په سلو کښي پنځوس زيات وو په تيرو نهو مياشتو کښي بريالي تطبيق شو ۰

**دمرغومی ۱۰ ـ ۱۳۵۵ :**

دځه دپاسه يوو لسو مليونو افغانيو په لگښت دهيلمنددولايت دکجکي‌واشير اوسنگين دعلاقه داريو دصحي مرکزو نوودانۍ جوړېدې دعامې روغتيا دوزارت دپرمختيا يې‌پروگرامونو له مخی ددغو ودانيو دبنسټ ډبره ايښودل شوی او ټاکل شوی دهغو کار د ۱۳۵۷ کال

له خوا پرانستله شوه ۰

د کب ۱۸ ـ ۱۳۵۵ :

د جمهور رئیس ښاغلي محمد داود دپیغام په لوستلو کیدو سره دهیواد دستر اونومیالي مجاهد او فیلسوف دنما نځنی غونډه ترغرمي دمخه دراډیو افغانستان په لوی تالار کی د یوی درندی ټولنی په ترڅ کی پرانستله شوه

د کب ۱۸ ـ ۱۳۵۵ :

د فیض آباد دهوا پیږ ندنی دماموړینو له پاره اوسیدو لو دوه ودانۍ دملکی هوایـــی او ګر زندوی دلوی ریاست په لګښت جوړی شوی دبدخشان والی پرانستلی ۰

د کب ۱۸ ـ ۱۳۵۵ :

دهیوادنومیالی زوی علامه سیدجمال‌الدین افغانی دنمانځنی دغونډی له امله دجمهـور رئیس ښا غلی محمد داود له خوا دګلو ګیډۍ دبهرنیو چارو دوزارت معین ښا غلي وحید عبدالله دسید په قبر باندی کیښودله ۰

د کب ۱۸ ـ ۱۳۵۵ :

د جمهوریت دپارک په نامه نوی پارک دخوست دلویی ولسوالی په مرکز کـــی جوړ شوی او په یوه غونډه کی دنیالګیـــو ایښودل پکی پیل شول ۰

دکب ۱۹ ـ ۱۳۵۵ :

دهیواد دنومیالی فیلسـوف علامه سیـدـ جمال الدین افغانی دمړینی داتیا کلونو د تیریدو دبین المللی سیمینار علمی غونډی د سهار په نهو بجو په انترکانتی ننتال هوټل کی پیل شوی ۰

د کب ۲۰ ـ ۱۳۵۵ :

دهیوادنامتوفیلسوف علامه سیدجمال الدین افغانی دمړینی داتیایم کال دنمانځنی دغونډی شاملا نو دجلال آباد دښار او هډی فارم او غیر منقول موزیم وکتل ۰

د کب ۲۱ ـ ۱۳۵۵ :

دحیوانی او نباتی نارو غیو په خلاف د درملو دوی ډیپوګانی دافغان کیمیاوی سری شرکت دفراه او نیمروز دولایتونو په مرکز کی پرانستلی ۰

دکب ۲۲ ـ ۱۳۵۵ :

دعلامه سید جمال الدین افغانی دلمانځنی دبین المللی علمی سمینار دغرمی ورروسته غونډه کی دمصر دعربی جمهوریت دبانکو نو بیمو اومالی موسسو دکنفدراسیون دسکرتر جنرال ښاغلی دبوراو د عمـان د پـوهنتـون دپروفیســور ښاغلـی اکرم زعیتر او دمتحدو عربی اماراتو دعالمانو او پـوهانو لـه خـوا درارسیدلو تیلګرامونو متنـو نـه د غـنډی دمنشی له وا ولو ستل شول ۰

دکب ۲۲ ـ ۱۳۵۵ :

دننګرهار په ولایت کی داوبو لګـولو د پنځو پروژو په جوړیدو سره دشپږ زره هکتاره ځمکی له پاره داوبو لګو لو ښه لاره اواره شویده ۰

دکب ۲۲ ـ ۱۳۵۵ :

دزابل ولایت دمرکز کلات په ښار کښی دافغان کیمیاوی سری دشرکت له خوا دکرنی دآفاتو او څارویو دناروغی په‌خلاف ددرملو دپارلسمه ډیپو پرانیستل شوه ۰

دکب ۲۳ ـ ۱۳۵۵ :

د علامه سیدجمال الدین افغانی دنمانځنی دغونډی دبین المللی علمی سیمینارپه‌غونډو کی ددوستو هیوادو اوافغانی یو شمیر پوهانو دهیواد دنومیالی بچی حضرت سید دشخصیت او دهغه دخانګړو لوړو سجا یاوو په باره کی خپلی مقالی او مضمو نونه ولوستل .

دکب ۲۳ ـ ۱۳۵۵ :

دکرنی د وزارت دپرمختیایی پروګرام له مخی دکرنی دآفتونو او دخارویو دناروغــی ضد درملو خوار لسمه دیپو دپکتیا ولایت په مرکز ګردیز کی پرانستل شوه .

د کب ۲٤ ـ ۱۳۵۵ :

دهیواد دلوی فیلسوف علامه‌سیدجمال‌الدین افغانی ستر علمی غونډه او دیاد ونو نمانځنه دیوه پریکړه لیك په برابرولو سره‌سیمینار دبرخه والو له خوا پای ته ورسیده .

د کب ۲٤ ـ ۱۳۵۵ :

دکرنی دافاتو اوخارویو دناروغتیـا و په خلاف درملو یوه دیپو دافغان کیمیاوی سری دشرکت لخوا دتیر ینکوټ په ښار کښی‌جوړه شوی او دارز ګان والی پرانستی دی .

دکب ۲۵ ـ ۱۳۵۵ :

زمونږ دګران هیواد دنومیالی پوه سترزوی سیدجمال الدین دمړینی داتیـاوم کـال دتیریدو دنمانځلو دغونډی په مناسبت دکابل پوهنتون دکتا بتون پاسنی تالار دعلامه سید جمال‌الدین افغانی تالارپه نامه ونومول شول او دمراسمو په ترڅ کی دبهر نیو چارو د وزارت دمعین ښا غلی وحید عبد الله لخوا پرانستل شوه .

دکب ۲۵ ـ ۱۳۵۵ :

دبدخشان ولایت دقروغ او اوترا نشی د دبښتی داوبو لګولو دپروژی دجوړ یدو کارچه دهیواد په اووه کلن پلان کی شـامـل دی پیل شو .

دکب ۲۵ ـ ۱۳۵۵ :

باغوالاو کړوندګـرو دپـاره داسانتیـا و دبرابرولو په مقصد دغوربند د ولســوالـی دچار دهی او قرنجل په کلیو کـــی دوه کوپرا تیفو نه جوړ شویدی .

د کب ۲٦ ـ ۱۳۵۵ :

جمهور رئیس ښاغلی محمد داود دجمهوری دولت داساسی قانون دیو سلو در ویشتمی مادی دحکم سره سم نوی حکومت تشکیل کړ .

دکب ۲۷ ـ ۱۳۵۵ :

دنباتی آفاتو او خارویـو دناروغیو ضـــد درملویوه دیپودافغان کیمیاوی سری دشرکت له خوا په غزنی کی جوړه او پرانستل‌شوه.

دکب ۲۷ ـ ۱۳۵۵ :

دکابل دبریښنا ریاست دبریښنا وسولو په برخه کی دانکشافی پلانو نو له مخی‌دشه دپاسه یو شپیتو ملیونو افغانیو په لګښت تول دیوزرو شلور سوه دیر شو کیلو ولتو امپیرو په قدرت دری ترانسفار مرونه دبختیار په کلا او دچار دهی په دښت برچی کـــی فعال کړیدی .

د کب ۲۸ ـ ۱۳۵۵ :

دنوی حکومت غړیو دجمهور رئیس ښاغلی

محمد داؤد په حضوردجمهوري دولت داساسي قانون دنوي يمې مادې دحکم سره سم دلوړې مراسم په ځاى کړل .

**د کب ۲۸ ـ ۱۳۵۵ :**

دافغانستان دجمهوري دولت داساسي قانون د يو سلو شپږ ويشت مادې د دويمې فقرې دحکم سره سم‌دستري محکمې دجوړېدو تروختړه پورې‌دقاضي‌القضات ټول صلاحيتونه عدليه وزير او لوى څارنوال ته وسپارل شول چه دستري محکمې دوظيفو دسر ته رسولو له پاره داساسي قانون صريح نص له مخې لازم تدبيرونه ونيسي .

**د کب ۲۸ ـ ۱۳۵۵ :**

دهرات دهاشمي واټ دجومات دوداني کار چې دمغه ځاى دخلکو له خوا پيل شوى وه بشپړ شو .

**د کب ۲۸ ـ ۱۳۵۵ :**

دکرنې دافاتو او د څارويو دناروغيو ضد درملو يوه ډيپو دافغان کيمياوي سرې د شرکت له خوا دباد غيس دولايت په مرکز کلاى نو کښې پرانستل شويده .

**دکب ۲۹ ـ ۱۳۵۵ :**

دنوې حکومت غړي تر غرمې دمخه خپلو وظيفو ته لاړل او په کار يې پيل وکړ .

**د ورى لومړى ۱۳۵٦ :**

دملکي هوايي چلند دزياتو خدمتو نو د سرته رسولو له پاره دهرات په هوايي ډګر کې دمخابرې نوى دوه دستګاوې په کاراچول شويدې .

**د ورى ۲ ـ ۱۳۵٦ :**

دهرات ولايت دامام شش نور او سياوشان په کليوکې دکرنې او دبنوالي دپرمختيا لـه پاره دوه کوپراتيفو نه جوړ شوى او په‌کار يې پيل کړيدى .

**د ورى ۲ ـ ۱۳۵٦ :**

دننګرهار دولايت دکوز کونړ دولسوالۍ دشګې دکلي دنجونو دښوونځي دوداني دينسټ ډبره کيښنو دله شوه .

**د ورى ٤ ـ ۱۳۵٦ :**

دجمهوري دولت د ۱۳۵٦ کال د دوه ديرش مليارده اوه سوه دوه ديرش مليو نه څلورسوه اتيا زره دوه سوه افغانيـو عادي او پرمختيايي بودجه دوزيرانو دعالي مجلس په غونډه کې تصويب او دجمهور رئيس ښاغلي محمد داود له خوا منظوره شوه .

**د ورى ٤ ـ ۱۳۵٦ :**

دماليې د وزارت په پيشنهاد او دوزيرانو دعالي مجلس په تصويب دتقاعد دخزانې د رياست دديارلس سوه شپږ پنځوسم کال دعوايدو او لګښت بودجه د جمهور رئيس ښاغلي محمد داود لخوا منظوره شوه .

**د ورى ٥ ـ ۱۳۵٦ :**

دجوزجان دولايت دسر پل په ولسوالۍ کې دحضرت امام يحيى دروضـې جنـډه د جمهوري مترقي نظام په رڼاکې دهيواددلوړتيا او پرمختګ په هيله پورته شوه .

**د ورى ٥ ـ ۱۳۵٦ :**

دخوشحال خان مينې دپروژې دالف دبرخې دتطبيق کار په دوه سوه پنځه شپېته هکتاره

ځمکه کې دکابل ښار والي له خوا پیل شوی او دپروژې دلومړۍ برخې په بشپړیدو سره به څه دپاسه دوه زره کورنۍ کورونه پیدا کړي .

**د وری ٦ ـ ١٣٥٦ :**

دکونړ دلوی ولسوالۍ دمرکز اسعد آباد دیرش بستره ایز روغتون دمراسمو په ترڅ کې دعامې روغتیا وزیر پوهاند ډاکتر عبدالله عمر پرانست .

**د وری ٦ ـ ١٣٥٦ :**

ددوه ملیونو افغانیو په لګښت دابو حنیفه رح دمدرسې دودانۍ دیر ښنا د مزی دغزولو کار بشپړ شوه .

**د وری ٨ ـ ١٣٥٦ :**

دخوګیانیو د ولسوالۍ اساسي صحي‌مرکز او دسره رود د ولسوالۍ دسلطان پور دکلي دخښتلو داوبو شبکه دعامې روغتیا دوزیـر پوهاند ډاکتر عبدالله عمرله خوا یـوبه بل پسې پرانیستل شوی .

**د وری ٩ ـ ١٣٥٦ :**

دافغانستان دملي تلویز یون دودانۍ د بنسټ ډبره دمراسمو په ترڅ کې داطلاعات او کلتور وزیر پوهاند ډاکتر نوین له خـوا په انصاري واټ کې دراډیو افغـانستـان د ودانۍ په څنګ کې کیښودل شوه .

**د وری ٩ ـ ١٣٥٦ :**

دکرنې دآفاتو او حیواني ناروغیو په خلاف د درملو ځلیر ویشتم ډیپو دبامیانو دولایـت په مرکز کې دافغان کیمیاوي سرې د شرکت له خوا پرانیستل شوه .

**د وری ١٠ ـ ١٣٥٦ :**

دحضرت امام یحیی مبارکه جنده دجمهوري نیکمرغه نظام په رڼا کې دګران هیواد دترقي اولوړ تیا په دعا دکندز ولایت دحضرت امام په ولسوالۍ کې دخاصو مراسمو په ترڅ کښې پورته کړی شوه .

**د وری ١٢ ـ ١٣٥٦ :**

د جمهوري دولت دپرمختیایي پروګرامونو اودپوهنې دبنیادي ریفورم په پیـروي پــه تیرو دوو کلونو کې دلومړنیو ښوونځیو دپاره یو سلو پنځه دیرش اساسي ودانۍ او د پردیسو ښو ونکو دپاره داستو ګنې یوسلو پنځه دیرش ودانۍ دهیواد په مرکـزاوولایاتو کې له عصري شرایطو سره سمې بشپړې او داستفادې وړ ګرځیدلې دي .

**د وری ١٢ ـ ١٣٥٦ :**

دسید جعفر مجرد او خلیفه میر جهان ولي جنډه دقرآن پاك دځو آیتونو ډلوستل کیدو وروسته دهیواد او دعالم اسلام دترقي او لوړ تیا په دعا دپروان دمستوفي او دولایت دوکیل له خوا دچاریکارو داوفیان په کلــی کې پورته کړی شوه .

**د وری ١٣ ـ ١٣٥٦ :**

یو روغتیایي فرعي مرکز دنجراب دولسوالۍ دده قاضي په کلي کې نوی جوړ شو او په کار ئې پیل وکړ .

**د وری ١٤ ـ ١٣٥٦ :**

په اصلي بهیر باندې دغور بند دسیند داوبو داړولو په مقصد دخاورو دیوه بند د جوړیدو کار دفواید عامې او داوبو اوبریښنا

دوزار تونو په تخنيکي مرسته دپروان دولايت دانچو او توغ بردي په کليو کي پيل شو .

**د وری ۱۵ ـ ۱۳۵٦ :**

دپنجشير د سيند ديوی شيلي دپاسه ديوه پله دجوړيدو کار دپروان دولايت کليو د پراختيا دمديريت له خوا پيل شو .

**د وری ۱۵ ـ ۱۳۵٦ :**

دعامي روغتيا دوزارت په اجازه دننگرهار د ولايت دنادر شاه کوټ دعلاقه داری لـــه خلکو سره دمرستي په مقصد ددغی علاقه‌داری په مرکز کي يوملیون افغانيو په پانگه يو درملتون جوړشويدی .

**دوری ۱٦ـ۱۳۵٦ :**

دکرنی دوزارت دپرمختيايي پرو گرام له مخي دنادعلي په ولسوالی کي يو زراعتـــی کوپرا تيف جوړ شوی چي دهيلمند دوا لـــی له خوا پرانستل شو .

**د وری ۱۷ ـ ۱۳۵٦ :**

دممتاز او غوره ښوونکو دسويې دلوړيدو په مقصد د داخلي سکالر شپ لايحه په هغه غونډه کي چي دښوونی او روزنی د وزيـــر پوهاند ډاکتر محمد ابراهيم مجيد سراج پـــه مشری وشوه تصويب شوه .

**د وری ۱۷ ـ ۱۳۵٦ :**

دکابل انترکانتی ننټال هوټل پـــه آسيا اولری ختيځ کي دانترکانتی ننټال پـــه سلو هوټلونو کي لومړی درجه شوی او دلومړی درجي جايزه يی وړيده .

**د وری ۱۸ ـ ۱۳۵٦ :**

د نارنج دگل ميله ددرنډو مراسمو پـــه ترځ کي دننگر هار دولايت دمرکز دجلال‌آباد په ښار کي ونمانځله شوه .

**د وری ۱۸ ـ ۱۳۵٦ :**

دروغتيا نړيواله ورځ په ټول هيواد کي د روغتيا يی فرهنگي او ټولنيزو موسسنو لـــه خوا دغونډو په ترځ کښی ونمانځله شوه .

**د وری ۲۰ ـ ۱۳۵٦ :**

جمهور رئيس ښاغلي محمد داود دتيرو کلونو دحسابی راکړو ورکړو له پلوه پـــه خلکو باندی ددولتي ادارو او تصديو دباقياتو شخه دتيريدنی او تصفيی مقررات منظورکړل.

**د وری ۲۰ ـ ۱۳۵٦ :**

دکرنی دپراختيا يی پروگردم له مخي د مرديانو په علاقه داری کي دکرنی او مالداری يوکو پراتيف جوړ او دجوز جان دوالی لـــه خوا پرانستل شو .

**د وری ۲۱ ـ ۱۳۵٦ :**

دافغان ملي روغتيا دپروگرام په اساس اوپه ملي سطح کښی دصحي خدمتو نـــو دلگښتو نو دبيی دټيټوالي په مقصد داکسريز دفلمونو په بيه کي څه نا څه داتو مليونو په شاوخوا کي کموالی راغلی دی .

**د وری ۲۱ ـ ۱۳۵٦ :**

جمهور رئيس ښاغلي محمد داود د ۵٦کال دوری په يو ويشتمه نيټه دمطبو عاتو لـــه نمايند گانو سره په يوه مرکه کي دعامـــه ذهنيت په روښانه ولو او د ۱۳۵۲ کال د چنگاښ د ۲٦ ملي او مترقي انقلاب دهدفونو په تحقق کي دڅوور ټالستانو دنقش ټينگاروکړ.

**د وری ۲۲ ـ ۱۳۵٦ :**

دپکتیا دپروژو دکرنی درواجو لو دآمریت دودانۍ دبنسټ تیږه په ګردیز کی کیښودل شوه .

**د وری ۲۲ ـ ۱۳۵٦ :**

دتخار دولایت دخواجه غار دولسوالۍ دکرنی درواجولو دیونټ دودانۍ دبنسټ ډبره کیښودله شوه .

**د وری ۲٦ ـ ۱۳۵٦ :**

په خوا شینۍ سره مو خبر اخیستی دی چی دخپلواکۍ او دوطن دنجات دمعرکی یو قوماندان مارشال شاه ولی خان غازی دهغی اوږدی ناروغۍ له امله چی ورپیښه شوی وه دشپږ نوی کالو په عمر په روم کی مړ شوی دی .

**وری ۲۷ـ۱۳۵٦:**

د وطن دآزادۍ او نجات د لاری دمجاهد ارواښاد مارشال شاه ولی خان غازی فاتحه تر غرمی دمخه دجمهور رئیس ښاغلی محمد داود ، ښاغلی محمد نعیم ، ښاغلی سلطان محمود غازی او دهغه اروا ښاد نورو منسو بینو او دملی دفاع وزارت له خوا دپل خشتی په جامع جومات کی واخیستله شوه .

**وری ۲۷ـ۱۳۵٦:**

دخوشحال خان دلیسی دلیلیی ودانۍ چه ددولت له بودجی څخه دیو ویشت ملیو نو افغانیو په لګښت بشپړه شویده تر غرمی وروسته دمراسمو په ترڅ کی دښوونی او روزنی دوزارت دلومړی معین ډاکتر میر عبد الفتاح صدیق له خوا پرانیستل شوه .

**وری ۲۷ـ۱۳۵٦:**

د ښوونی او روزنی د وزارت دپرمختیایی پروګرام له مخی دکونړ دلویی ولسوالۍ دمرکز اسعد آباد دصنایعو لیسه پرانستله شوه .

**دوری ۲۹ـ۱۳۵٦ :**

دعامی روغتیا دوزارت دپرمختیا یی‌پروګرام او د افغان ملی روغتیا دپروګرام له مخی دمسلکی پرسونل دروزنی په مقصد دنرس قابلی یو ښوونځی دهرات په ولایت کښی پرانستل شو .

**د وری ۲۹ ـ ۱۳۵٦ :**

درودا تو دولسوالۍ دلا غرجو دکلی د هلکانو دښوونځی دودانۍ دجوړ ولو کار پیل شو .

**د وری ۳۰ ـ ۱۳۵٦ :**

دفاریاب دولایت داند خوی دښار عامه کتابتون دیوی غونډی په ترڅ کی پرانستل شو .

**د وری ۳۰ ـ ۱۳۵٦ :**

دفراه دښار دتجارتی مرکز دبنسټ ډبره دفراه والی کیښودله .

**دوری ۳۱ـ۱۳۵٦ :**

په ګرشک کی دپومبی دحلاجی او انډوی کولو دفابریکی دتاسیساتو دبنسټ ډبره د مراسمو په ترڅ کی دکانو او صنایعو دوزیر انجنیر عبدالتواب آصفی له خوا کیښودل شوه

**دوری ۳۱ـ۱۳۵٦ :**

دکروند ګرواوښوالو داقتصادی حالت دښه کیدو په مقصد دخلم په ولسوالۍ کی

دکرني يو کوپراتيف پرانستل شو .

**د غوايي لومړۍ ۱۳۵٦ :**

دکرني يو کوپراتيف دناد علي دولسوالۍ دمارجې په سيمه کښې دهيلمندوالي پرانيست

**د غوايي لومړۍ ۱۳۵٦ :**

دحيرتان په بندر کې دنفتي موادو دويش يو مرکز چې نوی جوړ شوی پرانستل شو .

**د غوايي ۲ ـ ۱۳۵٦ :**

دکندهار دولايت دسپين بولدك اوشوراباك دولسوالۍ تر منځ دتيلفون داساسي مــزی دغزولو کار بشپړ شوی ددغو دواړو سيمو او نورو سيمو تر مينځ تيلفوني مخابره جــاري شوه .

**د غوايي ۲ ـ ۱۳۵٦ :**

دايبکو دزاړه ښاردنجونو دلومړني ښوونځي دبنسټ ډبره کيښودل شوه .

**د غوايي ۳ ـ ۱۳۵٦ :**

د پنځه مليونو اوه سوه زره افغانيو پــه لګښت دمزار شريف دښار داويــو رسولو د پروژې ددوهم پړاو کار بشپړ شويدی .

**د غوايي ۳ ـ ۱۳۵٦ :**

دننګرهار دطب دپو هنځي د روغتــون د اکسريز دستګاه اوترانسفارمر په‌کار واچول شول .

**د غوايي ۳ ـ ۱۳۵٦ :**

د ښوونې او روزنې د وزارت دپرمختيايي پروګرام له مخې دبغــلان ولايت دخوست او فرنګ دولسوالۍ په مرکز کښې دنجونو يو نوی ښوونځی پرانستل شويدی .

**د غوايي ٥ ـ ۱۳۵٦ :**

دحبيبيې ليسې ودانۍ دځه دپاسه اووه مليونو افغانيو په لګښت دښوونې اوروزنې دوزارت له خوا دامريکا دبين المللي پرمختيا داداری په همکاری ترميم او په هغې کې ډير زيات تعديلات راغلي دي .

**د غوايي ٦ ـ ۱۳۵٦ :**

دکرني دمحصو لاتو داندازې دلوړ والــی په مقصد دکرني دوه کوپرا تيفو نه دننګرهار په ولايت کښې نوي جوړ شوی او دهغوغړيو په‌کارپيل کړيدی .

**د غوايي ۹ ـ ۱۳۵٦ :**

دکرني د وزارت دپرمختيايي پرو ګرام له مخې دلبنياتو دتوليد دپروژې دودانۍ دبنسټ ډبره دبغلان دوالي له خوا دبغلان په صنعتي ښار کښې کيښو دله شوه .

**دغوايي ۱۰ـ۱۳۵٦ :**

د تيلفون د ديرشو مزيو يو سوچبورډ دخوګيانيو دولسوالۍ په مرکز کښې پکــار واچول شو .

**د غوايي ۱۱ ـ ۱۳۵٦ :**

د کار او کار ګر بين المللي ورځ ټول هيواد کې په درندو او شاندارو ټولنو کــي ونمانځل شوه .

**د غوايي ۱۱ ـ ۱۳۵٦ :**

دمير بچه کوټ دښار دعامه کتابتون ودانۍ ديوی غونډۍ په ترڅ کښې پرانستل شوه .

**د غوايي ۱۱ ـ ۱۳۵٦ :**

د نهرين ولسوالۍ دخواجه هجــران د لومړني ښو ونځي دودانۍ دجوړ ولو کارپيل

شو .

**دغوايي ۱۲ـ۱۳۵٦ :**

د ښوونې او روزنې د وزارت دپراختيا پرو گرام او دپوهنې دبنيادي سمون لەمخې دلابرا تو ار دتكنيشن مسلكي ليسه له غرمې وروسته دمراسمو په ترڅ كې دابن سينا ليسې تر څنګ پرانستل شوه .

**دغوايي ۱۲ـ۱۳۵٦ :**

دتخار د ولايت په مركز پورې مربوطـــه دتمر او تودان دكليو دښوونځي دوداني د بنسټ ډبره دتخار والي له خوا كيښودل شوه .

**د غوايي ۱٤ ـ ۱۳۵٦ :**

دكيمياوي سرې دزير مې لس گدامو نه مازديگر پداسې حال كې چې دكورنيو چارو وزير ښاغلى عبد القدير دفوايد عامې وزير ښاغلى غوث الدين فايق او دكرنې وزيـــر ښاغلى عزيز الله واصفي حاضر وو دهېږ د فارم په ساحه كښې دعدليه وزير پوهانـــد وفي الله سميعي له خوا پرانستل شول .

**د غوايي ۱٤ ـ ۱۳۵٦ :**

دهرات دولايت داوبې د ولسوالۍ پـــه مركزكې دتيلفون دديرشومزيويو سوچبورد نوې په كار اچول شويدى .

**دغوايي ۱۵ ـ ۱۳۵٦ :**

د جنرياك در ملو قانون په هيواد كښــې نافذ شو .

**دغوايي ۱۵ ـ ۱۳۵٦ :**

دعقلي او عصبي نارو غانو دتداوې پـــه مقصد دسنايي روغتون دوداني دبنسټ تيږه له غرمې مخكې دلوړو ښوونو وزير پوهاند ډاكتر غلام صديق محبي كيښودله .

**دغويي ۱٦ ـ ۱۳۵٦ :**

دغزني د ولايت دكتواز په لويه ولسوالۍ كې داوبو لگولو دخوارلسو پروژو په بشپړ تيا سره دكرنې لږ پنځه سوه هكتاره ځمكې څخه دښې استفادې لاره اواره شويده .

**دغويي ۱۷ـ۱۳۵٦ :**

دكابل ننگرهار، غزني، زابل ، تخاراوفراه په ولاياتو كښې دغذايي موادو دپرو گرام له مخې داتو ويشتو بيلا بيلو پروژو دجوړ ولو كار دخلكو په مرسته دكليو دپراختيا درياست له خوا تر لاس لاندې نيول شويدى .

**دغويي ۱۷ـ۱۳۵٦ :**

دپوهې هر اړ خيزې پرمختيا ، طرزالعمل پيرودنې او دهغې دسپارنې په مقصد يـــو سيمينار دكانو او صنايعو او كرنې دوزارتونو په گډه همكارۍ ترغرمې دمخەدكانو اوصنايعو د وزير انجنير عبد التواب آصفي په وينـــا ددغه وزارت دكنفرا نسو نو په تالار كښې پرانستل شو .

**دغويي ۱۷ـ۱۳۵٦ :**

دخير خانې مينې دمنځنې ښوونځي ودانۍ چې ددولت له پرمختيا يي بودجې څخــه ددرې نيم مليونو افغانيو په لگښت دښوونې او روزنې دوزارت له خوا بشپړه شوې تــر غرمې وروسته دمراسمو په ترڅ كې پرانستل شوه .

**د غوایی ۱۹ ـ ۱۳۵٦ :**

دافغانستان‌دجمهوری‌دولت‌ملی بیرغ دپورته کولو شلورمه کالیزه په ټول هیواد کـی ونمانځل شوه ·

**دغوایی ۲۰ ـ ۱۳۵٦ :**

دوازی خوا دولسوالی دپتیاو دکلـی د لومړنی ښوونځی دودانی دبنسټ‌ډبره کیښودل شوه ·

**دغوایی ۲۰ ـ ۱۳۵٦ :**

دپروان دولایت دمرکز دمیری دکلی دجامع جومات دبنسټ ډبره کیښودل شوه ·

دغه جومات په دوه زره مربع متره ځمکه کی دسیمی دخلکو په لګښت جوړیږی ·

**د غوایی ۲۰ ـ ۱۳۵٦ :**

دانار دری د ولسوالی د روغتیایی مرکز ودانی دخه دپاسه د دری ملیو نو افغانیو په لګښت بشپړه شوی د فراه والی دمراسمو په ترڅ کښی پرا نیستله ·

**د غوایی ۲۱ ـ ۱۳۵٦ :**

دپومبی دمر اړ خیزی پرمختیا سیمینار چه دکرنی اوکانو اوصنایعو دوزارتونوپه گـډه همکاری جوړ شوی و پای ته ورسید ·

**د غوایی ۲۳ ـ ۱۳۵٦ :**

د مراجعینو دپاره داسا نتیاو دبرابر واو په مقصد دبانګی راکړی ورکړی یـوه غرفه دافغانستان بانك له خوا دتجارت په وزارت کی پرانستل شوه ·

**د غوایی ۲٤ ـ ۱۳۵٦ :**

دوردګو ولایت د دای میرداد دعلاقه‌داری دملایم طلا پر سیند ګوټی باندی دیوه پل د جوړ یدودبنسټ ډبره کیښودل شوه·

**د غوایی ۲٤ ـ ۱۳۵٦ :**

هغه نوی پل چه‌دفرخاردولسوالی‌دخم آب دسیند دپاسه جوړ شوی دمراسمو پـه ترڅ کښی پرانستل شو ·

**د غوایی ۲۵ ـ ۱۳۵٦ :**

د کجکی دبریښنا دلین دولو د مزی پروژه دمراسمو په ترڅ کی داوبو او بریښنا وزیر انجنیر محمدی له خوا پرانیستل شو ·

**د غوایی ۲۵ ـ ۱۳۵٦ :**

دکونړ دځنګلونو دپراختیا دمرکز دودانی دبنسټ ډبره د څوکی په ولسوالی کی د کونړ دلوی ولسوال له خوا کیښودل شوه ·

**د غوایی ۲۵ ـ ۱۳۵٦ :**

دکرنی دوزارت دپرمختیا یی پرو ګرام له مخی او دکرنی دمحصو لاتو دسطحی دلوړیدو په مقصـد دننګرهار دولایـت دکامی پـه ولسوالی کی دکرنی دوه کوپرا تیفو نه نوی جوړ شویدی ·

**د غوایی ۲٦ ـ ۱۳۵٦ :**

دافغانستان جمهوری دولت دددریو کلـونو دپاره دیونیسف داجرائیه شورا په غړیتوب ټاکل شویدی .

**د غوایی ۲۸ ـ ۱۳۵٦ :**

دشا جوی دولسوالی دکرنی دپرا ختیا د رواجو لو دیونټ دودانی دبنسټ تیږه دزابل والی کیښودله ·

**د غوایی ۳۱ ـ ۱۳۵٦ :**

د جمهور رئیس ښاغلی محمد داود پیغام په لو ستلو سره دښوونکی ورځ دهیواد په

مرکز او ولایتونو کې دټولنو په ترڅ کې ونمانځله شوه ۰

**د غوايي ۳۱ ـ ۱۳۵٦ :**

جمهور رئیس ښاغلي محمد داود دهیواد دښوونکو او استادانو له استازو سره دغونډو په ترڅ کې وویل : یوولس هغه وخت پرمختګ اولوړتیاته رسیږي چې ټول یوځای کار وکړي حقیقت دادی چې دحکومت او خلکوتر مینځ همکاري دغه مقصد ته درسیدو لومړی شرط دی ۰

**د غوايي ۳۱ ـ ۱۳۵٦ :**

د چاریکارو دښار په تجربوي او دوهم‌نمبر لومړنیو ښوونځیو کې دوه کتابتونو نه یو په بل پسې پرانستل شول ۰

**د غبرګولي ٤ ـ ۱۳۵٦ :**

د فوایدعامې وزیر ښاغلي غوث‌الدین فایق ترغرمې وروسته دلوګر دولایت په‌پل علم کښې دجمهوریت پل په نامه یو نوی پل پرانست .

**د غبرګولي ٦ ـ ۱۳۵٦ :**

د ګران وطن د آزادۍ دبیرته اخیستونه پنځو سمه کالیزه په ټول هیواد کې ونمانځل شوه ۰

زمونږ ملي مشر ښاغلي محمد داود د افغانستان د ولس ددغي پرتمنی او تاریخي ورځی له امله خپله وینا دراډیو افغانستان دلاري وکړه ۰

**د غبر ګولي ۷ ـ ۱۳۵٦ :**

دهیواد په یوه شمیر ولایاتو کې دکلیو د پراختیا درياست له خوا داوبو لګولـو او موا صلا تو دنهه شپیتو پروژو دجوړ ولو کار پیل شویدی ۰

**د غبر ګولي ۸ ـ ۱۳۵٦ :**

دګلبهـار دنساجي فابریکـي دپراختیا د پروژې لمړۍ برخه ترغرمې وروسته په دریو بجو دکانو اوصنایعو دوزیر انجنیر عبدالتواب آصفي له‌خوادمراسموپه‌ترڅ‌کي پرانستل شوه.

**د غبرګولي ۹ ـ ۱۳۵٦ :**

دجوز جان ولایت دآقچې دولسوالي دنفتي موادو دویش مرکز بشپړ شوی او پرانستل شو .

**د غبرګولي ۱۰ ـ ۱۳۵٦ :**

جمهور رئیس ښا غلي محمد داود ددولت دمامو رینو قانون منظور کړ ۰

**د غبرګولي ۱۱ ـ ۱۳۵٦ :**

دکابل دڅهار آسیاب دلیسې دښارندوی د اتاق دبنسټ ډبره تر غرمې وروستـه د افغانستان ښارندوی دټولني رئیس کیښوده۰

**د غبرګولي ۱۱ ـ ۱۳۵٦ :**

د خواجه غار دولسوالۍ دشتلا دسیمې د کرنې درواجو لو دیونټ داداری دودانۍ‌بنسټ ډبره کیښودله شوه ۰

**د غبرګولي ۱۱ ـ ۱۳۵٦ :**

د کرنې د وزارت دپر مختیایي پرو ګرام له مخې دکرنې اوباغوالي یو کـوپراتیـف دګذرې د ولسوالۍ دسیا وشان په کلي کې جوړ شویدی ۰

**دغبر ګولي ۱۳ ـ ۱۳۵٦ :**

د دولت دما مورینو قانون د رسمي‌جریدې په فوق العاده ګڼه کې د۱۳۵٦ کال غبرګولي

دمیاشتی په دولسمه نیټه خپور او نافذ شو.

**دغبر گولی ۱۳ ـ ۱۳۵٦ :**

دکرنی دوزارت دپروګرام له مخی دکرنی د پرمختیا په مقصد دکرنی یو سلو شلورم کوپراتیف دکندز ولایت دسه درك په کلی کښی پرانیستل شو .

**د غبرگولی ۱٤ ـ ۱۳۵٦ :**

د چاپیر یال نړیواله ورځ دغونډو پـه ترځ کی په ټول هیواد کی ونمانځل شوه .

**د غبرگولی ۱٤ ـ ۱۳۵٦ :**

د ښوونی او روزنی د وزارت دپرمختیا یی پلان له مخی دغورپه ولایت کی دوه لومړنی نوی ښوونځی جوړی شویدی .

**د غبرگولی ۱٦ ـ ۱۳۵٦ :**

د هیلمند داوبو دتړون مصدقه سندو نه تهران کی دایران دبهر نیو چارو په وزارت کښی دافغانستان او ایران دواکمنو استاز یو تر منځ مبادله شول .

**د غبر گولی ۱۸ ـ ۱۳۵٦ :**

د لغمان دولایت دمرکز میتر لام د ښار دیرش بستره ایز روغتون مازدیگر دمراسمو په ترځ کی دعامی روغتیا دوزیر پوهاندډاکتر عبد الله عمر له خوا پرانستل شو .

**د غبر گولی ۱۸ ـ ۱۳۵٦ :**

د بغلان ولایت د دهنه غوری دعلاقه دارۍ دروغتیا اساسی مرکز دودانۍ دجوړیدو کار پیل شو .

**د غبرگولی ۲۱ ـ ۱۳۵٦ :**

په شبرغان کی داترکانۍ یو کوپراتیـف نوی جوړ شو او په فعالیت یی پیل کړیدی .

**د غبرگولی ۲٤ ـ ۱۳۵٦ :**

د جمهور رئیس ښاغلی محمد داود دپیغام په لوستل کیدو سره دمور ورځ د درندو او شاندارو غونډو په جوړیدو سره په ټول هیوادکښی ونمانځل شو .

**د غبرگولی ۲٤ ـ ۱۳۵٦ :**

دبلخ ولایت دامنیه قوماندانی دمخدره موادو په خلاف دمبارزی داداری دودانۍ دبنسـټ ډبره دبلخ ولایت مستوفی او وکیل دمـزار شریف په ښار کښی کیښوده .

**د غبرگولی ۲۵ ـ ۱۳۵٦ :**

د اووه سوه هکتارو معادل دکرنی دری زره پنځه سوه جریبه ځمکه دپچی له مخـی دغزنی دسردی دبند په پروژه کی پردوه سوه یوولسو مستحقو کورنیو باندی وویشل شوه

**دغبر گولی ۲۷ـ۱۳۵۵ :**

د سمنگانو د ولایت دحضرت سلطان د علاقه دارۍ دکرنی درواجولو دمامـورینو د استوګنی دودانۍ بنسټ ډبره کیښـودلـه شوه .

**دچنگاښ لومړی ۱۳۵٦ :**

دپاکستان صدراعظم ښاغلی ذوالفقار علی بوټوچی خپل هیوادته یی دتګ په لاره کښی په افغانستان کښی دلنډی مودی دتم کیدوهیله کړی وه ترغرمی وروسته په دووبجو کـابل ته راورسیده .

**دچنگاښ لومړی ـ ۱۳۵٦ :**

جمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد ترغرمی وروسته په پنځوبجو دپاکستان صدراعظـم ښاغلی ذوالفقار علی بوټو دجمهـوری ارګ

دګلخانی په ماڼۍ کی ومانه اوله هغه سره یی په دوستانه فضاکښی دعلاقی وړموضوعګانو په باب‌کتنه اوخبری وکړی دغوخبرو دماښام داووبجو ترشاوخوا پوری دوام وکړ .

**دچنګاښ ۲ـ۱۳۵٦ :**

دپاکستان صدراعظم ښاغلی‌ذوالفقارعلی‌بوټو چی خپل هیوادته دتګ په لاره‌کی کابل ته راغلی ترغرمی دمخه په یوولس نیمو بجـو خپل هیوادته لاړ .

**دچنګاښ ۲ـ۱۳۵٦ :**

بهرنیو چارو دوزارت دبرنس ټایمزمدیرته دجمهور رئیس ښاغلی محمد داؤد دوینا په باره‌کښی دپاکستان ټایمز درسمی ورځپاڼی دپرونیو خپرونو او دافغانستان دعسکـری سوقیاتو په باب ددغی ورځپاڼی دبی‌اساسه ادعاپه باره‌کښی دباختر‌آژانس دنماینده دیوی پوښتنی په ځواب کی وویل :

دافغانستان‌حکومت دپاکستان ټایمزدرسمی ورځپاڼی مغرضانه او غیر مسئولانه خپرونی پدی وخت‌کی چی دپاکستان صدراعظم‌ښاغلی ذوالفقار علی په خپله غوښتنه افغانستان ته سفرکوی په کلکه غندی بیخی یی بی‌اساسه بولی اوردوی یی .

دغه شان خپرونی دهغی هیلی سره توپیر اوتضادلری چی دواړه خواوی دخپلو روابطو دښه والی دپاره لری نطاق زیاته کړ ه چی زمونږ‌دپښتنو اوبلوڅو وروڼو له حقه حقوق څخه دپلوی په باب دبرنس ټایمزمدیر تـــه دجمهور رئیس ښا غلی محمــد داؤد وینـا دافغانستان دپرله پسی دریځ سره سمه ده اوکوم نوی شی ندی .

**دچنګاښ ۳ـ۱۳۵٦ :**

دمحمدآغی دولسوالی دسرخ آب دمنځنـی ښوونځی دودانی دبنسټ ډبره‌کیښودله شوه.

**دچنګاښ ۳ـ۱۳۵٦ :**

دشولګری دولسوالی دچشمه صفا دسیند دپاسه دایلتن کلی دپل دبنسټ ډبره دبلخ والی کیښوده .

**دچنګاښ ٤ـ۱۳۵٦ :**

دکابل استانبول ترمنځ څمکنی کـــربښه پرانستله شوه اودملی بس دتصدی لمړنـی بس ترغرمی وروسته په دریوبجوترکیی تـه روان شو .

**دچنګاښ ٤ـ۱۳۵٦ :**

دالیشنګ د ولسوالی دمرکز دلمړنـی ښوونځی ودانی بشپړشویده ددغه ښوونځی ودانی چه‌په یوهکتارځمکه‌کی‌ددولت په‌لګښت اودخورکی شیانو دپروګرام له مخی جـوړه شوی پرانستل شوه .

**دچنګاښ ٥ـ۱۳۵٦ :**

دجبل السراج په ولسوالی‌کی یودرملتون پرانستل شوه .

**دچنګاښ ٦ـ۱۳۵٦ :**

دمخابراتو وزارت دبی سیم مخابره دنویو دستګاؤ دتږلو کارپیل شویدی .

**دچنګاښ ٦ـ۱۳۵٦ :**

دبرکی برك دولسوالی دمرکز دخښتلوداوبو دپروژی کار دلوګروالی پیل کړ .

**دچنګاښ ۷ـ۱۳۵٦ :**

دغزنی دولایت په مربوطاتوکی داوبورسولو

اوهواصلاتو دنهوپروژو دجوړولو کارپیل شو.

**دچنګاښ ۷ـ۱۳۵٦ :**

دکندز دولایت دکلای زال د ولسوالـی دروغتیا دمرکز دودانۍ دبنسټ ډبره دهغـی ولسوالی په مرکز کښی کیښودل شوه .

**دچنګاښ ۸ـ۱۳۵٦ :**

دکلنګار دویالی دسربند دجوړولو کـار دلوګروالی لهخوادهغه دبنسټ دډبری ایښودو سره پیل شو .

**دچنګاښ ۱۱ـ۱۳۵٦ :**

دپښتو ټولنی دجوړیدو خلوېښتمه کالیزه ماښام دیوی میلمستیاپه ترڅ کی پهانترکانټی‌نټال هوټل کی ونمانځل شوه .

**دچنګاښ ۱۳ـ۱۳۵٦ :**

دفراه دولایت دامنیت قوماندانۍ دمخدره موادو پـرخلاف دمبـارزی داداری دودانـی دبنسټ ډبره دهغه ځای والی کیښوده .

**دچنګاښ ۱۳ـ۱۳۵٦ :**

دکرنی دوزارت دپرمختیایی پروګراملهمخی دکیمیاوی سری دیوه زیرمتون دجوړولو کار دفیض آباد په ښارکی پیل شویدی .

**دچنګاښ ۱۳ـ۱۳۵٦ :**

دمخابراتو وزارت په ۱۳۵٦ کال دټکټونو دخپرولو په لړکښی دعلامه سیدجمال الدین افغانی دمړینی داتیایمی کالیزی لهاملهدپستی یوډول فوق العاده ټکټ خپور کړیدی .

**دچنګاښ ۱۳ـ۱۳۵٦ :**

زمونږوطنوالوته بهپه یادوی چی د۱۳۵٤ کال دزمری دمیاشتی په ٥ ماښام دیـوی مفسدی ډلی اودیوشمیر ګډوډی پیداکوونکی اومرتجع کسانو دنیولو خبر خپور شوی ؤ چی غوښتل یی دپروان، لغمان، ننګرهار او پکتیاولایاتو کی په لارشوکولو اوورانکارۍ لاس پوری کړی بی امنیتی اوګډوډی پیداکړی چی دامنیتی قوا ؤ په زیارپه تیره بیادپروان لغمان، ننګرهار اوپکتیادخلکو په صادقانـه همکارۍ اوفداکارۍ له هغووسلواودورانکاری له وسایلو سره چی ورسره ؤ بالفعل نیول شوی ؤ پخوادوخت واکمن محکمی (عسکری حکومت دیوان حرب ) لـه دغـو ګـډوډی پیداکوونکو اومرتجع کسانو څخه یوشمیـر قانونا اوددوی دجرایمو ددرندوالی له مخـی دبنداواعدام په بیلا بیلو جزاګانو محکـوم کړی ؤ داچی دهیواد داساسی قانون داحکامو په اتکا داعدام جزاء دجمهوررئیس له توشیح څخه پرته نشی تطبیق کیدای نو دواکمنـی محکمی فیصله ښاغلی جمهوررئیس حضورته دتوشیح دپاره وړاندی شوه ښاغلی جمهور رئیس دقانونی ورسپارلی شوی واك له مخی دخلرویشتو تنوله جملی څخه چی دمحکمی له خواپهاعدامباندی محکومشوی ؤ دیوویشتو تنوداعدام مجازات یوه درجه کم یعنی پـه دوامدار بند منظورکړل اوددریو تنو داعـدام جزایی توشیح کړه .

**دچنګاښ ۱٤ـ۱۳۵٦ :**

دغزنی په نوی ښارکی دکیمیاوی سـر ی ګدامونه دخه دپاسه ددریو ملیونو افغانیوپه لګښت جوړ شوی دی .

**دچنګاښ ۱٥ـ۱۳۵٦ :**

دجمهوری دولت دکلتوری پالیسی لهمخی

دغزني ولايت دخينو تاريخي ودانيو اوخلو درميمولودويم پراو داطلاعات اوكلتوروزارت دلرغون پوهنې اودتاريخي آبداتو دساتنې دلوى مديريت دهيات له خوا پيل شو .

**دچنګاښ ۱۵ـ۱۳۵٦ :**

دسمنګانو دولايت دخلم دنوى ښارلوړمړۍ برخي دنقشى دكرښو په اچولوسره ددغې ولسوالي دمركز دښار دپلان تطبيق پيل شو.

**دچنګاښ ۱۵ـ۱۳۵٦ :**

دجوزجان ولايت په مركز شبرغان كې دخلكو داستفادى له پاره دڅښلو دصحي اوبوشبكى او شپاړس واټرپمپونه درول شويدى .

**دچنګاښ ۱۷ـ۱۳۵٦ :**

دهرات دښار دڅښلو د روغتيايي اوبو دزياتوالي دشبكى ددوهم پړاوكار ترغرمې وروسته دفوايد عامى وزير ښاغلي غوث‌الدين فايق پرانست .

**دچنګاښ ۱۷ـ۱۳۵٦ :**

دشبرغان دعامه هوساينى په برخه كې دجمهوري دولت دپرمختيايي پروګرامونو له مخي دشبرغان، ميمنى دلوى واټ قير اچول دمراسمو په ترڅ كې پيل شول .

**دچنګاښ ۱۷ـ۱۳۵٦ :**

دكورني دلارښوونې دتولنى فرعي كلينيك له غرمې مخكي دمراسمو په ترڅ كې دملي دفاع دوزارت دلوژستيك درئيس ډګر جنرال محمد نذيركبيرسراج لخوا دپتې په پريكولو سره دجمهوري دولت دوسلسه وال پوځ دروغتون دپولي كلينيك په ودانۍ كي پرانستل شو .

**دچنګاښ ۱۸ـ۱۳۵٦ :**

دميمنى اوبلچراغ دولسوالي دمركزتوميڼځ يوځلوپنځت كيلومتره اوږد اوشپږمتره پلن ديونوى سړك دجوړولو كار پيل شو .

**دچنګاښ ۱۸ـ۱۳۵٦ :**

دفارياب دولايت دبلچراغ دولسوالي دمركز دښاري پلان ددوبرخي كرښي چه نقشه يې دفوايد عامى دوزارت دښار اوكور جوړولو درياست له خوا طرحه شوى و اچول‌شوى.

**دچنګاښ ۲۰ـ۱۳۵٦ :**

دجمهور رئيس ښاغلي محمد داؤد خاص استازى ښاغلي محمدنعيم كابل ته راغى .

له ښاغلي محمد نعيم سره دكابل په بين المللي هوائي ډګركي دكابينى غړيو دجمهوري دفتررئيس اوكابل والي ستړى‌مشى وكړل .

دښاغلي جمهور رئيس خاص استازى ښاغلي محمد نعيم درومانيا دسوسياليستى جمهوريت په بلنه هغه هيواد ته ديورسمي اودوستانه سفر له پاره دسږكال دغبرګولي

دمیاشتی په لومړیو وختوکی بخارست ته تللی وو .

**دچنګاښ ۲۱ــ۱۳۵۶ :**

دجمهوریت د څلورم نیکمرغه جشن درارسیدوله امله مطبوعاتی اوکلتوری جایزی مازیګر دمطبوعاتو دکلوپ دمحمود طرزی په تالارکی دیوی غونډی په ترڅ کی پر مستحقو کسانو باندی وویل شوی .

**دچنګاښ ۲۱ــ۱۳۵۶ :**

دجوزجان دولایت دکوهستان دعلاقه داری دجرغان دکلی دهلکانو، دلومړنی ښوونځی دوداني دبنسټ ډبره دهغه ځای والي کیښوده.

**دچنګاښ ۲۲ــ۱۳۵۶ :**

دقرغی دځنډلو داوبو پروژه بشپړه شوه

اوتړوغړی مخکی دفواید عامی وزیر ښاغلی غوث الدین فایق دپټی په پریکولو سره پرانستله اودلیږدولوپه مزی کی ښارته اوبه روانی شوی .

**دچنګاښ ۲۲ــ۱۳۵۶ :**

دعامی روغتیا موسسی مرکزی ورکشاپونه اوستاک مابښام په شپږنیموبجو دعامی روغتیا دوزیر پوهاند ډاکټر عبدالله عمرله خوا پداسی حال کی چی دمخابراتو انجنیرعبدالکریم عطائی هم حاضرؤ دیوی غونډی په ترڅ کی په خیرخانه مینه کی پرانستل شو .

**دچنګاښ ۲۲ــ۱۳۵۶ :**

دپکتیاوالی مازیګر دیوی غونډی په ترڅ کی دمامو رینو دروغتیا بیمی نمایندګی پرانستله .

**دچنګاښ ۲۳ــ۱۳۵۶ :**

دکیمیا دانستیتوت دبنسټ ډبره د خاصو مراسمو په ترڅ کی دلوړو زده کړو دوزیر پوهاند غلام صدیق محبی له خوا دکابل پوهنتون دعلومو پوهنځی ترڅنګ کیښودله شوه .

**دچنګاښ ۲۵ــ۱۳۵۶ :**

دمخابراتو وزارت دجمهوریت دڅلورم نیکمرغه جشن په مناسبت د پستی پولو فوق العاده ټکټونه په ښکلی رنګ اوډیزاین سره چاپ کړیدی .